# د قلم له سنګره

## د مقالو او کالمونو مجموعه

**لیکوال:**

**قاري سعـــید**




**د کتاب ځانګړتیاوې**

نوم: د قلم له سنګره

لیکوال: قاري سعید زرمتی

ډیزاین: عبدالله لکن خېل

چاپ کال: ۱۴۴۰هـ ق ـ ۱۳۹۷هـ ش

چاپ وار: لومړی

د خپرونو لړ: ۱۹

خپرندوی: د ا. ا.ا. د فرهنګي کمیسیون د تألیف او ترجمې اداره

# فهرست







## دوهم فصل ـــ د افغانستان اسلامي امارت



## دریم فصل ـــ د امت مسائل



## څلورم فصل ـــ هیواد او اولس









## پنځم فصل ـــ دتاریخ له بوخڅې



## شپږم فصل ـــ تبلیغاتي یرغل او رسنیز جهاد

## اووم فصل ـــــ اشغال راوړې بدمرغۍ او جنګي جنايات



## اتم فصل ـــــ خاطرې او تأثرات

## د خپرندوی اداري یادښت

له ښه مرغه د فرهنگي کمیسیون د تـالیف او ترجمـې اداري د هیـواد د تکـړه لیکوال او شاعر قاري سعید صاحب د مقالو او کالمونو ټولگه (د قلم له سنگره) هـم چاپ ته چمتو کړه.

دا کتاب (د قلم له سنگره) د امریکـایي یرغـل ضـدجهاد شـهکارونه پـه گوتـه کوي. دین، وطن او ملت تـه د اسـلامي امـارت د ښـگڼو نمـونې وړانـدي کـوي. د یرغلگرو او گوډاگي رژیم له مظالمو او هر اړخیز فساده پرده پورته کوي.

د قلم له سنگره تـر افغانسـتانه محـدود نـه دی. د لـومړي نړیـوال جنـگ لـه ضروري تفصیل څخه مو خبروي. دمسلمان امت د لومړنۍ قبلـې (بیـت المقـدس) دغصب او ظلم ژړونکی داستان راسره شریکوي اومیانمار کې د روهنگي مسلمانانو نسل وژنه بیانوي.

دقلم له سنگره سیاسي، حماسي، فکري او تاریخي مسایل په خوږه او معیاري ژبې او ښایسته سبک وړاندي کړي دي.





دژباړې او تالیف اداري څـه مـوده وړانـدې د شـهید امیرالـؤمنین مـلا اخـتر محمد منصور تقبله الله د شخصیت، زعامت او کارنامو په اړه کتاب چاپ کـړ. تـر هغه مخکي یې د اشغال پر وړاندې د اسلامي امارت دریځ، د جهادي ادب سـتوري، زادالمعـاد، د افغانسـتان زندانونـه او نـاویلي حقـایق، دزنـدان خـاطرې او تجربـې، مجاهدینو ته دامیرالمؤمنین لارښوونې، د سپین کاروان سرلاري او... اثار هم چاپ کړي دي.

د تالیف او ترجمې اداره غواړي چې ټولنې ته علمي، جهادي، سـیاسي، ادبي او تاریخي اثار په پښتو اودري ژبو دکتاب په بڼه وړاندې کړي.

دافغانستان اسلامي امارت

فرهنگي کمیسیون

د تألیف او ترجمې څانگه

۱۴۴۰هق\۱۲\۵

۱۳۹۷هش\۱۰\۲۸

۲۰۱۹\۱\۱۸ز

# د جهادي ادب شهکار

د قلم له سنګره (کتاب) دنوميالي ليکوال او شاعر قاري سعيد صاحب دمقالو او کالمونو ټولګه ده. دهمدې مجموعې ليکنې په مختلفو چاپي او انلاين رسنيو کې خپرې شوي او له نيکه مرغه دادې همدا ارزښتمنې ليکنې دکتاب په بڼه چاپ ته هم چمتو شوې.

سعيد صاحب دجهادي ادب او ژورناليزم هغه ځلانده ستورى دى، چې ډيرو لار ورکو يې په ځلا خپله ورکه موندلې. سعيددافغانستان او نړيوالو قضاياوو په اړه سلګونه څېړنيزې مقالې او کالمونه ليکلي او د نثر ترڅنګ يې دنظم په برخه کې هم ډېر کار کړى، زياتې ترانې، غزلونه او نظمونه يې پنځولي دي.

د سعيد دليکنو ځانګړتيا داده چې هم يې ليکنيز معيار مراعات کړى او هم يې پر محتوى پام ساتلى. بله داچې نوموړى دډيرو مجربو ليکوالو په پرتله دموضوعاتو پر انتخاب برلاسى او دمنطق او استدلال له قوي قوت څخه برخمن دى.

دسعيد صاحب دليکنو له لوست څخه دنوموړي ښه استعداد، پراخه مطالعه، لوړ ادبي ذوق، سياسي بصيرت او د قلم پياوړى ځواک ښه محسوسيږي. دځوان سعيدليکنې او شننې د ډيرو هغو ليکوالو ترليکنو هم معياري او دتحقيق له اصولو سره برابرې دي چې يوازي ليکنيزه سابقه يې دسعيد د عمر همزولې ده.

ترکومه ځايه چې زما مطالعه او مشاهده ده، روان جهادي – مقاومتي ادب کې دسعيد ليکنې دڅومره والي او څرنګوالي په لحاظ بې ساري دي.





داچې خبره راڅخه اوږده نشي، نو دګران سعيد صاحب له يو منثور اثره (د قلم له سنګره) يې راپيلوم. ددې کتاب دلوست پرمهال چې مې کوم تأثر اخيستى، غواړم همدغه تاثر او نظر مې له قدرمنولوستونکو سره شريک کړم.

د قلم له سنګره يوه ځانګړتيا داده چې په معياري ژبه ليکل شوى، تکراري ترکيبونه پکې نشته، جملې يې لنډې او روانې دي. له موضوعاتو سره، سرسري چلند نه دى پکې شوى، ضروري تفصيل وړاندې کوي او په زير بحث سکالو په اسانه او ښايسته اسلوب د لوستونکي سر ورخلاصوي.

د قلم له سنګره ليکنې په داسي حالت او وضعيت کې ليکل شوي، چې ډيرى قلموال له اصلي رسالته تښتېدلي، په فروعاتو او يا کړو لارو کې ذوب شوي دي. يو لوى پاړکي خو آن خپل وجدانونه او قلمونه ديرغلګرو چوپړ ته وقف کړل. ځينو بيا دحق او باطل، ظالم او مظلوم ترمنځ روانه مقابله کې دبې طرفۍ دريځ وينو. بعضو پټه خوله بهتري وبلله. خو هغوبااحساسه قلموالو چې دشمېر او شهرت له مخې حساب نه پرې کيده، خپل اصلي رسالت درک او پسې ټينګ کړ. د ظالم په وړاندي يې دحق خبره اعلان کړه اود (ولايخافون لومة لائم) دمصداق په توګه يې افغانستان اشغال او پر ضد يې په ځان، مال او ژبه جهاد شرعي او وجداني وجيبه وبلله.

تېره يوه نيمه لسيزه کې چې دکرايه کړل شوو ليکوالو او فرهنګيانو څومره په وس پوره وه، هغومره يې ديرغلګرو او ډيموکراسۍ په درنه او دمجاهدينو او اسلامي نظام په سپکه خپلې ژبې او قلمونه ستړي کړل او دخپل تاريخ، کلتور او ارزښتونو دبدرنګه کولو او مسخه کولو ډيرې هڅې يې وکړې. ددوى په مقابل کې دبااحساسه ليکوالو او فرهنګيانو يوې وړې ډلې ميدان ته راودانګله، په ډيرو کمو امکاناتو او ترينګلو حالاتو کې يې ددښمن مظالم، مکر، فساد او ډير ناويلي حقايق او واقعيتونه تر خلګو ورسول.

د قلم له سنگره دسيکولرانو، کمونستانو او په ټوله کې ديرغل پلوه فرهنگيانو پر مخ په بل حساب هم يوه کلکه څپېړه ده، هغه داچې دوی تل وايې ملا او طالب له ادب، تاريخ او سياست څخه ناخبره دی. خو سعيدچې زده کړي يې په ديني مدرسو او مسجدونو کې پای ته رسولې، نه يوازې داچې د قلم له سنگره په واسطه يې د پردي پالو فرهنگيانو له څېرو، جنايتونو او شومو اهدافو پرده پورته کړې، بلکې دهمدې اثر په وړاندې کولو سره يې دقلم په سنگر کې هم وننگول.

دقلم له سنگره پېچلي موضوعات په داسي اسلوب او معيار وړاندي کړي چې که کوم سيکولر او کمونيست ليکوال ليکلي وای؛ نو په هر فصل به د کوم پوهنتون او اکاډمۍ له لوري دڅېړنيار او پوهنيار رتبو ته پرې ترفيع کړل شوی وای.

د قلم له سنگره دافغانستان او اسلامي نړۍ پر موجوده وضعيت مشتمل دی، پر جهادي او سياسي ارزښت سربيره تاريخي اهميت هم لري.

تېره يوه نيمه لسيزه کې چې ديرغل پرخلاف او دجهادي مقاومت دکم او کيف په اړه څومره کتابونه ليکل شوي، دقلم له سنگره په شان دشکل او محتوی په لحاظ معياري او غني اثر مې نه دی پکې تر سترگو شوی.

دقلم له سنگره د جهادی ادب شهکار دی. لوست يې ذهنونه تنويروي. جهادي، سياسي او تاريخي پيښې په منصفانه ډول څېړي. نوځوانان او مشران يې هرومرو بايد مطالعې ته وخت ورکړي.

قدرمن ورور سعيد صاحب ته دقلم له سنگره ارزښتمن اثر د چاپ مبارکې وړاندې کوم، الله تعالی دې خدمتونه قبول او دخپلې رضاء سبب وگرځوي. امين!

په مينه او درنښت

نوراحمد سعيد

۱۳۹۷هش، جدي ۲۹مه





# دا کتاب او دا ليکنې

الحمد لله رب العلمين و الصلوة و السلام علی أشرف المرسلين سيدنا محمد و علی آله و صحبه أجمعين و بعد:

پوره لس کاله وړاندې د ۲۰۰۹ م کال همداسې يخه څپله او د ژمي موسم و، په يوه ختين مسجد کې اوسيدم او نږدې مدرسه کې مې د وړې دورې کتابونه ويل چې يوه ورځ مبايل ټيلفون ته زنگ راغی. نمبر نابلده و، خو له سلام او عليک وروسته راته معلومه شوه چې د اسلامي امارت په تشکيل کې د رهبري شورى غړى او د هغه وخت د فرهنگي کميسيون مشر جناب متقي صاحب دی. متقي صاحب د تيلفوني خبرو په لړ کې دې ته تشويق کړم چې په قلمي برخه کې جهادي خدمت پيل کړم.

له همدې ځايه زما د معمول ژوند مسير بدل شو. که پخوا به د درسونو له اختتام وروسته نورو جهادي خدمتونو ته تلم دا ځل د وړې دورې د کتابونو له ختميدو وروسته فرهنگي کميسيون ته راغلم او له قلم او کمپيوتر نه په استفاده په جهادي خدمت بوخت شوم.

د ليکوالۍ په الويزانده لار دا سفر له سختيو، نابلدۍ او گڼورو نورو ستونزو سره مل و. ما چې د يو عام طالب په حيث، ژوند په کليوالو مدرسو، جوماتونو او حجرو کې تېر کړی و، نه خو مې د ليکوالي لپاره زده کړې او تجربه درلوده او نه هم د قلمي مبارزې په چل او هنر پوهيدم. خو دا د الله تعالی ځانگړی فضل او د صليبي کفر په وړاندې زموږ د پرتمين جهاد يو ښکاره کرامت او د حقانيت نښه

ګنم، چې ما ته یې پر دې لار د ګام اخیستلو شیمه راکړه او کرار کرار مې په مقاله لیکلو قلم روږدی شو.

له هغه وخته تر اوسه لس کاله تېر شوي. د دې لسیزې په امتداد کې مې په بیلابیلو مستعارو نومونو ګڼې مقالې لیکلي. قاري حبیب، زخمي افغان، عبدالرؤف حکمت، خالد افغان زوی، حبیب مجاهد او څو نور نومونه. هیڅکله مې دا فکر نه و کړی چې یو وخت به له دې لیکنو کتابي مجموعه جوړېږي. یو وخت راته استاد عبدالهادي مجاهد صاحب یادونه وکړه چې ټولې لیکنې باید په ډېر دقت محفوظې وساتم او که ممکنه وي په کتابي بڼه یې چاپ کړم، ځکه په دې لیکنو کې د دې جهادي دوران د سړو تودو، حماسو، ستومانیو، بریاوو، ستونزو او ابتلاوو ژوندي انځورونه خوندي دي. د تاریخ په یوه سخت پړاو کې زموږ د احساساتو، عواطفو، قربانیو او قهرمانیو ترجماني کوي او راتلونکو نسلونو ته زموږ د جمعي روحیې او رواني حالت څرنګوالی لیږدوي.

څو میاشتې وړاندې د فرهنګي کمیسیون د تألیف او ترجمې د څانګې مسؤل (نور احمد سعید صاحب) راته وویل چې د خپلو مقالو یوه ټولګه تیاره کړه تر څو په کتابي بڼه چاپ شي. په دې ډول مې د ګڼو لیکنو له منځه دا لیکنې را انتخاب کړې چې په اړه یې څو نکات عرض کول ضروري بولم.

۱ــ لیکنې په تېرو لسو کلونو کې د بیلابیلو حوادثو په اړه لیکل شوي چې ډېری یې په ویب پاڼو او ځینې یې په مجلو کې هم له مستعارو نومونو سره نشر شوي دي. د هرې مقالې د لیکلو تاریخ د عنوان په خوا کې ورسره لیکل شوی دی.

۲ـــ له مقالې سره د لیکلي تاریخ هدف دا دی چې لیکنه باید د هماغه مشخص دوران په تناظر کې مطالعه شي. د لیکنې ژبه، ادبیات او عاطفي کیف





اصلا د هماغو اضطراري حالاتو څرنګوالی ښیي چې په لیکنو کې یې انعکاس موندلی.

۳ــ یوه اوږده مقاله (د افغانستان د خرڅلاو د قرارداد پایلې او زیانونه) چې پخوا یې پښتو بڼه د کوچنۍ رسالې په حیث چاپ شوې وه، د لا افادیت لپاره مې یې دري بڼه د (پیامد و عواقب پیمان فروش افغانستان) تر عنوان لاندې په دې مجموعه کې راوړه چې دري ژباړه یې هغه مهال د لیکوال ملګري (موفق افغان) له خوا شوې وه. له دې یوې ژباړې پرته نورې ټولې لیکنې په خپل اصلي او ابتدائي لیکل شوي شکل راوړل شوي دي.

۴ــ د بیاکتنې په مهال مې یوازې د لیکنښو، یاګانو او یا ځینو کلماتو د ادلون بدلون تر حده سمونه کړې. د لیکنو محتوی او لیکنیز اسلوب مې په خپل حال پرې ایښی.

په پای کې د الله تعالی شکر اداء کوم، چې د دې لیکنو د لیک توفیق یې راکړئ. لوستونکي د لیکنو مطالعې ته رابولم، بویه که د مطالعې تنده یې پرې خړوبه شي.

په درنښت

ستاسو د دعاءګانو طلبګار

قاري سعید

د هجرت ژوند

۲۰۱۹ د جنورۍ د میاشتې لسمه

## لومړی فصل - د صليبي اشغال په وړاندې مسلح جهاد







# په جهاد د پنجابيتوب الزام، سيکولران د ډاګيز ارتداد پر لور

۲۰۱۳/۹/۱۸ ميلادي

افغان اولس په نړيواله سطحه د هغو دريو بختورو قومونو له جملې دي، چې على الاستغراق يې اسلام منلی دی. څېړني ښيي چې په نړيواله سطحه يوازې عرب، ترک او افغان قومونه ټول په اسلام کې داخل شوي، چې هيڅ فرد يې کافر نه دی پاته شوی.

افغان اولس کابو څوارلس سوه کاله ټول مسلمان وو او هيڅ کافر او مرتد په کې پيدا نه شو. که به کوم مرتد په کې پيدا کيده، نو دشرعي فيصلې له مخې يې يا بيرته اسلام ته راجع کاوه او يا يې د ردت د حد له مخې واژه.

په افغان اولس کې لومړني ښکاره کافران هغه وخت پيدا شول کله چې کمونيستي د هري افکار زموږ هيواد ته راداخل شول. شوروي کمونيستي اتحاد افغانستان ته په ډېر اهميت کتل، دوی فکر کاوه چې دا هيواد د ګرمو اوبو او سوسيال هند په خوا ديوه پله حيثيت لري، نو په هره بيه چې وي بايد کمونيست کړای شي. خو دلته دکمونيستي د هري افکارو د خپريدو په وړاندې تر ټولو ستر خنډ د افغانانو ديني اعتقاد (اسلام) و، نو ځکه خو کمونيستانو تر هرڅه مخکې په اسلامي عقائدو او ارکانو بريدونه پيل کړل او هڅه يې کوله دمؤمنو افغانانو په سترګو کې يې بې ارزښته کړي.

له دې جملې هغه څه چې افغاني کمونيستانو ورباندې ځانونه کافران کړل، د اسلام دوهم رکن لمونځ او پنځم رکن حج ول، کمونيستانو په دې دواړه اسلامي

ارکانو باندې د (عربيت) ټاپه ووهله. دوی ويل لمونځ هسې عربي واژې (لغاتونه) دي، چې بدوي عربانو به د ورزش په وخت زمزمه کولې، لمونځ له ورزش پرته بله هيڅ معنی هم نه لري. کمونيستانو دغه راز د اسلام په معظم رکن (حج) باندې هم دعربيت ټاپه ولگوله او ويل به يې چې حج دعربو يوه اقتصادي پروژه ده، چې غواړي په دې بهانه خپل دسياحت کاروبار ته رونق ورکړي او له خلکو پيسې راټولې کړي. کمونيستانو به ويل چې شوروي اتحاد د افغانانو لپاره د گاونډيتوب په لحاظ ترعربستان ډېر مستحق دی، هغه افغانان چې دحج په نامه د عربو په سيل ځي، بايد د مکې او مدينې په ځای د لېننگراد او ماسکو منظرې وکړي او دلينن دموميايي شوي جسد زيارت ته لاړ شي.

څرنگه چې د کمونيستي تبليغاتو په مهال د افغانستان په سطحه د جهاد مسئله دومره متعارفه او د بحث وړ نه وه، نو ځکه کمونيستانو دلمانځه او حج غوندې عباداتو باندې ځانونه کافران کول، او په ډاگه يې ترې انکار کاوه.

اسلام يو بشپړ دين دی چې دعقيدې، عباداتو، اعمالو او معاملاتو په برخو کې خپل احکام او ارکان لري. اسلام ديوه مجزا دين په توگه له هر ډول کفري دين سره په يوشکل د اشکالو په ټکر کې واقع دی، که د اسلام اقتصادي نظام دکمونيستانو له اشتراکيت سره ټکر و، نن سبا بيا د نړيوالو سيکولرانو لپاره د اسلام ستر حکم (جهاد) داسې څه گرځيدلی چې د ټولو وطني، محلي او نړيوالو بيدينانو خوبونه يې تښتولي دي.

له همدې امله خو معاصر بيدينان (سيکولران) اوس مجبور دي، چې د الهي حکم جهاد په وړاندې کټ مټ داسې پروپاگند پيل کړي، لکه کمونيستانو چې د لمانځه، حج او د اسلام د نورو احکامو په وړاندې کول.





لکه څرنگه چې وايي (الکفرملة واحده) د کفر او گمراهۍ بيلابيل مکاتب د عقيدې، عمل او اسلام دښمنۍ په برخه کې نهايتا سره ورته وي، کمونيستان او سيکولران هم په ډېرو کړنو کې سره ورته بريښي، مثلا د اسلامي احکامو د اهانت په برخه کې، که کمونيستانو لمونځ او حج په عربيت تورناوه او دا يې عربي رواجونه بلل، همدا نن مې ولوستل چې معاصرو بيدينانو په ستر الهي حکم (جهاد) باندې رسما د پنجابيتوب ټاپه لگولې او دغه اسلامي منزل حکم يې د پنجاب پاليسي بللې وه.

د نړۍ په بيلابيلو برخو کې مړتت مسلمانان د کفارو د خوشالولو لپاره ځينې له شرمه ډکې کړنې ترسره کوي. څوکاله وړاندې چې کويټ هيواد د خپلې دفاع لپاره امريکايي پوځيانو ته په خپله خاوره کې اډې ورکړې، نو د دې لپاره چې د امريکايانو په وړاندې د کويټ دنوي نسل کرکه راونه پارېږي، دکويټ د معارف وزارت دښوونځيو له کتابونو څخه هغه آيتونه لرې کړل، چې د جهاد ذکر په کې شوی و، يا د يهودو او نصاراوو سره دښمني په کې ياده شوې وه.

کويت هيواد هغه مهال دغه ناځوانمردانه او اسلام ضد عمل سرته ورساوه، خو په رسمي کچه يې له جهاد څخه انکار ونه کړ، مگر راشئ زموږ بي دينانو ته چې ښايي د نړۍ په سطحه تر ټولو احمق سيکولران ورته ووايو، ځکه دغه جاهلان چې ترڅو رسما له الهي احکامو انکار ونه کړي او د مطلق ضلالت په پوله ونه دريږي ترهغو يې شيطان لوټلی وجدان صبر نه کوي.

څو کاله وړاندې دپاکستان په ټاکنو کې په پښتونخوا ايالت کې دعوامي نشنل گوند ډېرې رايې وگټلې او په پښتونخوا کې يې حکومت جوړ کړ، د دې گوند غړي پرته له دې چې کوم اجبار يا اړتيا موجوده وي، د ښوونځيو په کتابونو کې د جهاد په آيتونو پسې راسم شول، د ولي خان د عدم تشدد (عدم جهاد) دفلسفې په

رڼا کې يې د جهاد ټول الهي اوامر د ښوونځيو له کتابونو لرې کړل او نوی نصاب يې چاپ کړ، چې ترپايه په کې د جهاد نوم هم نه و اخيستل شوی او نه په کې له يهودو او نصاراوو سره دښمني ذکر شوې وه.

له څوکاله حکومت وروسته څه موده وړاندې په پښتونخوا کې بيا انتخابات وشول، چې داخل په کې ډيرې رايې دعمران خان په مشرۍ تحريک انصاف وګټلې، سره له دې چې عمران خان هم د نشنليانو په شان سيکولر مزاج لري او کوم د ښې لار ځښتن نه دی. خو د ده دحکومت په راتګ سره دپښتونخوا په تعليمي ادارو کې يوشمير مؤمنو معلمينو او متعلمينو غوښتنه وکړه، چې دوی ته دې بيرته هماغه پخوانی نصاب تدريس شي، هغه نصاب چې نشنليانو ترې جهادي آيتونه نه وو حذف کړي. دپښتونخوا حکومت د دې معترضينو غوښتنه ومنله او بيرته يې هماغه زوړ تعليمي نصاب جاري کړ، چې دنشنليانو ترحکومت وړاندې تدريسېده.

د ښوونځيو په کتابونو کې د جهادي آياتونو او له يهودو او نصاراوو سره د ولاء او براء دمضامينو بيرته ورداخلولو نه يوازې په پاکستان کې دننه سيکولران سخت په غوسه کړي دي، بلکې تاو يې تر کابله هم رارسيدلی او دلته يې هم دبيدينانو سينګې پړسولي دي.

د کابل چاپ محور ورځپاڼه چې د اباسين بريال په نوم پروژه يي ليکوال يې چلوي او به غالب ګومان کوم بهرنی سفارت يې اکمالوي، دپښتونخوا د ښوونځيو په نصاب کې د جهادي آياتونو د داخلولو په موضوع يوه داسې مقاله ليکلي ده، چې دسوچه انکار او د اسلام د اعظم رکن (جهاد) د توهين بوی ترې راځي. په دې مقاله کې محورخپلو جهاد رسما په پنجابيتوب تورن کړی دی، کټ مټ لکه کمونيستانو به چې لمونځ او حج په عربيت تورناوه. دوی د جهاد دقرآني مضمون په اړه ليکي (د خيبر پښتونخوا ايالتي حکومت منلې، چې د توپکو، کارتوسو او جنګي مقابلې د





لېږد مضامين د ښوونځيو تعليمي نصاب ته شامل کړي. ځايي پښتانه وايي، دا د هغې ستراتيژۍ يوه برخه ده، چې لويديځ هېوادونه د پنجابي استخباراتو په مرسته نوی پښتون نسل په ايډيالوژيک لحاظ د جنګ په روحيه روزي او ترهګري به د پښتنو مزاج ته داخله کړي.)

جاهلو محورخپلو په دې مقاله کې له جهاد څخه (دکارتوسو، توپکو او جنګي مقابلې مضمون) باندې تعبير کړی دی چې دا رسما د دې ستر ديني رکن سپکاوی دی. له بلې خوا محورخپلو جهادي مضمون دلويديځو هيوادونو او پنجابي استخباراتو ستراتيژي بللې ده.

لوستونکي بايد پوه وي، چې دغه مضمون چې بيدينان يې پارولي دي، دباروت جوړولو، جنګي زده کړو او وسلو کوم عملي مضمون نه دی، بلکې د درستو اسلامي هيوادونو د نصاب غونډې د جهاد عام اسلامي مضمون دی. د دې موضوع په اړه ما د بي بي سي د رفعت الله اورکزي مفصل راپور هم وليد، چې ويل يې په نصاب کې يوازې د جهاد ديني مفهوم اوقرآني آياتونه بيرته داخل شوي دي. ښايي دا په اسلامي نړۍ کې يوازينۍ پېښه نه وي، ځکه جهاد د يوه ديني مفهوم په حيث د ديني علومو مهمه برخه ده، همدا اوس دسعودي عربستان، ايران او نورو ډېرو اسلامي هيوادونو په تعليمي نصابونو کې د جهاد مضمون تدريسيږي، ځکه جهاد د اسلام يولوی حکم او ستر باب دی، چې رسول لله صلی الله عليه وسلم ورته ذروة سنام الاسلام (د اسلام تر ټولو هسکه څوکه) ويلي دي.

که څوک په مطلق ډول جهاد ديوه الهي حکم، اسلامي فريضې او ديني ارزښت په توګه په رسميت ونه پيژني بلکې اهانتا يې په پنجابيتوب تورن کړي، په ټيټه ورته وګوري او په وړاندې يي معارضه او مقابله وکړي، نو دا له دې اسلامي

حکم څخه دځرګند انکار او ارتداد معنی لري او کیدای شي انسان ورباندې کفر ته ووځي.

لکه دکمونیستانو داوج او موج په وخت کې چې د عربیت او اخوانیت ټاپه د هر چا موډ ګرځیدلې وه او په هراسلامي عمل، فکر او پدیده به یې دعربیت ټاپه وهله، نن سبا د غرب زده دیموکرات سیکولرانو په عصر کې دپنجابیتوب ټاپه لګول همداسې دچپ لاس لوبه بلل کیږي.

دلته دپېټ سترګو، جاهلو او لارورکو سیکولرانو په منځ کې داسې انګیرل کیږي، لکه قرآن چې له لوح محفوظ څخه نه بلکې له لاهور څخه راغلی وي، اسلام دپاکستانیانو بومي کلتور وي او جهاد دپنجاب سیاسي ستراتیژي.

له همدې امله خو جهاد ته دپنجاب ستراتیژي ویل کیږي، دیني علم دپنجاب علم بلل کیږي، دیني مدرسه دپنجاب استخباراتي فابریکه بلل کیږي، دکلي او ښار تر ټولو پاک طالب او متقي انسان دپنجاب ځری بلل کیږي. مسواک، ږیره، جهاد، شهادت، اسلامي اخوت او نورې ټولې دیني پدیدې اسلامي ارزښتونه نه بلکې پنجابي ارزښتونه بلل کیږي.

په اشخاصو او افرادو باندې د بیلابیلو ټاپولګول او پیغورونه ورکول شاید دومره حساسه مسئله نه وي، که ماته د اسلامي اتباع په جرم پنجابی ویل کیږي، هیڅ پروا نه کوي. زه تر رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دلوړې مرتبې خاوند نه یم، هغه ته په همدې اسلام باندې لیونی، جادوګر او کاهن ویل شوي او ډول ډول پیغورونه ورکړل شوي. پرېږده چې د اسلام دښمنان ماته هم په دې اسلام پیغورونه راکړي، ترڅو خو مو له پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره یو بل (مابه الاشتراک) صفت پیدا شي.





خومسئله داده چې معاصر غرب زده بیدینان (سیکولران) اوس په اسلامي احکامو پسې هم راسم شول او دکمونیستانو غوندې یې په اسلامي ارکانو او احکامو باندې هم د تورلګولو او داغمن کولو لوبه پیل کړه.

خو دلته داخبره باید روښانه کړو، چې که معاصر بیدینان د اشخاصو غوندې په اسلامي سوچه احکامو باندې دپنجابیتوب ټاپه لګوي، هم زموږ لپاره کوم تاوان نه کوي، لکه څرنګه چې د دوی په رګونو کې بې دینی نفوذ کړی، زموږ په روح او بدن کې اسلام همداسې نفوذ کړی دی، چې د الله تعالی په فضل به یې دهیڅ شیطان وسوسه او تشویش هم رانه ونه تروړي. مؤمن اولس پوهیږي چې جهاد یوالهي حکم دی، چې الله تعالی د نبوي هجرت نه وروسته دجبریل علیه السلام په واسطه رالیږلی اوموږ ته یې ویلي دي چې (وقاتلوهم حتی لاتکون فتنة و یکون الدین کله لله... ژباړه: او له کافرانو سره ترهغو وجنګیږئ چې فتنه پاته نه شي او دین ټول د الله لپاره وګرځي)

موږ پوهیږو، چې في سبیل لله جهاد تر پنجاب، پاکستان، آی ایس آی، حمیدګل او نورو بلابترو چې سیکولران یې بیا بیا یادوي، ډېر مشر دی. د جهاد مرتبه خوراعالي ده، جهاد انساني امر نه دی بلکې الهي امر او حکم دی، چې له اسمانه راغلی دی. جهاد یو ثابت حکم دی چې هیڅوک یې محو کولای نه شي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم جهاد ته دا ګُفت ورکړی چې (الجهاد ماض الی یوم القیامة) جهاد به ترقیامته روان وي، جهاد کوم ګونګ، ورک او مبهم عبارت او مفهوم نه دی، په جهادي مضمون باندې قرآن، احادیث او کتابونه ډک دي، نو ځکه موږ مطمئن یو چې بیدینان په خپلو پوچو تبلیغاتو سره جهاد او جهادي فکر ته تاوان نه شي رسولای.

خو په دا ډول جاهلانه لیکنو سره دوی یوازې خپل ځان ته تاوان رسوي، ځکه د اسلامي شریعت له مخې د یوه مسنون حکم په استخفاف (سپکاوي) سره سړی کفر ته وځي، نو اوس تاسو اندازه ولګوئ چې څوک د جهاد غونډې دفرضي حکم سپکاوي وکړي، نتیجه به یې څه وي؟.

موږ معاصرو بې دینانو ته یوازې همدا وایو چې په هرڅه مو لوریږئ، خو په کفر مو بالله که لوریږئ. هرڅه وکړئ، خو له اسلامي څرګندو احکامو سره ډېر احتیاط کوئ، په جهاد او اسلام د عربیت او پنجابیت ټاپې مه لګوئ، جهاد کومه دتوطیې تیوري نه ده، چې په اړه یې له ځانه په خلاص مټ انګیرنې او قضاوتونه وکړو. جهاد یو څرګند او ثابت اسلامي قرآني حکم دی، که د مسلمانانو په خاوره کافران یرغل وکړي، لکه اوس چې امریکا زموږ په هیواد یرغل کړی دی، جهاد په ټولو مسلمانانو فرض عین ګرځي.

موږ باوري یو، لکه څرنګه چې کمونیستانو دلمانځه او روژې دیني ماهیت مسخ نه شو کړای او نه چا ورسره دعربیت الزام ومانه، معاصر سیکولران هم نه شي کولای، تلپاتو قرآني احکامو ته تغیر ورکړي، خو دغه ډول جسارتونه یوازې همدوی بې دینان د ډاګیز کفر په سټیج درولی او په دنیا او عقبی شرمینده کولای شي.



د قلم له سنګره
دصلیبي یرغل په وړاندې مسلح جهاد

## کوړنګل، چې ښکیلاک په کې ستومانه شو

۱۷ اپریل ۲۰۱۰\

څه موده وړاندې مې په یوه پښتو وېب پاڼه کې یو جالب خبر ولوست. خبر په اروپا کې د عکسونو د مسابقې و، چې یو داسې عکس په کې لومړی مقام ګټلی و چې په افغانستان کې اخیستل شوی و. د دې عکس لپاره د مسابقې ممیزینو د (ستومانه سرتیري) عنوان غوره کړی و. په عکس کې ښودل کیدل چې د افغانستان په ختیځ د کونړ ولایت په کوړنګل دره کې یو امریکایي سرتیری د ګرمې جګړې په تاوده مورچل کې له جګړې ستړی شوی، وسله یې غورځولې او په داسې حال کې چې د ګنګستیا او وارخطایۍ نښې یې په څیره کې له ورایه ښکاري، ډډه یې اچولې اوژور سوچ په مخه کړی دی. د خبر د تفصیلاتو له مخې دې عکس د نړۍ په سطحه ځکه د نورو په پرتله ډېرې نومرې وګټلې او په اول نمبرکې راغی، چې له ټول ساده والي سره سره یې له یوه لوی حقیقت نه پرده پورته کوله. د مسابقې ممیزینو استدلال کاوه چې د جنګ په ډګر کې د مسلح سرتیري دومره ستوماني نادره ده او دا جزئي پېښه په حقیقت کې دی وه اولس ستوماني په ډاګه کوي اوداسې څرګندوي چې امریکاد افغانستان په اوږده جګړه کې سخته ستومانه شوې او لرې نه ده چې دې جګړې ته راوړي وسایل خوشي کړې او د جګړې له صفه عقب نشیني وکړي.

د افغانستان په یوه لرې پرته سیمه (کوړنګل) کې د یوه سرتیري ستوماني به ښایي هغه مهال ډېرو ته کومه د تأمل وړ موضوع نه وه او دا به ورته بیځایه بریښیده چې له دې څخه په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو راتلونکی اټکل

کړي. مګر له څو ورځو راپديخواپه همدې سيمه کې ځينې داسې واقعيتونه ګورو چې د (ستومانه سرتيري) له تصوير نه رابوتيدلي اټکلونه اوګنګوسې پرځای ثابتوي.

څو روځې وړاندې مطبوعاتو د امريکايي ځواکونو له قوله داسې خبرونه نشر کړل، چې امريکايان غواړي د کنړولايت دمانوګي ولسوالۍ د کوړنګل په غرييزه سيمه کې خپلې څلور واړه اډې تخليه کړي او دلته خپل شپږکلن خونړي اشغال ته دپای ټکی کيږدي. دې خبرې ته په لومړيو کې د امريکايي ځواکونو دن ورو ادعاوو غوندې ډېرو د شک په سترګه کتل، خوله سيمې نه وروستي راپورونه وايي چې همدا اوس امريکايانو ډېرى سرتيري له دې سيمې ايستلي او نږدې ده چې په بشپړه توګه ټولې اډې تخليه کړي.

کوړنګل څنګه ځای دی؟ اوځه پکې پيښ شول چې امريکايي په وسلو بارسرتيرو پکې د زياتي ګوزارې مورال بايلود؟ راځئ! يوه شيبه د دنيا له سترګو پناه، دې سيمه ته سر ورښکاره کړو اويوه شيبه د دې انکشاف په بيلابيلو خواوو سره وګرځيرو.

کوړنګل د کونړ د مرکز اسعداباد ښار لويديځ ته پرته د مانوګي ولسوالۍ مربوط يوه غرنۍ سيمه ده، چې الوېزانده درې او پيچلې اراضي لري. دختيځ له لورې د شوړېک په نامه له يوې غرنۍ سيمې سره نښتي، جنوب ته يې د نرنګ باډيل او دڅوکۍ ولسوالۍ د دېوه ګل سيمې پرتې دي، دلويديځ په خوا د کنډې ولسوالۍ له مربوطاتو سره نښتې او شمال ته يي هم د برکنډۍ او مانوګي ولسوالۍ مرکزي سيمې پرتې دي. دکوړنګل درې په بيلابيلو برخو کې ګڼ کلي پراته دي، چې اوسيدونکي يې په پښتو او پشه يي ژبو خبرې کوي. داسيمه د روس ضد جهاد په وخت کې هم د ګرمو معرکو ډګر وه او له دې وجې چې زياتره اوسيدونکو يې





هجرت نه و کړی اوپرځای وو، دروسانوپه وړاندې يې سخت مقاومت کاوه، تر دې چې روسانو ترپايه په دې سيمه کې دپښې تم کولو او استقرار فرصت ونه موند.

د امريکايي ځواکونو له راتګ سره دوی په لومړي سر کې يوازې د مانوګي ولسوالۍ په مرکز کې يوه پي آرټي جوړه کړه، خو څنګه چې د کوړنګل او شاوخوا نورو درو له لوري پرې مجاهدينو متواتر بريدونه کول، نو ځکه اړشول چې له دوه کاله تلفاتو زغملو وروسته د کوړنګل په شمول په نورو اطرافي غرنيوسيمو کې هم پوځي قرارګاوې جوړې کړي. په دې لړکې امريکايانو د کوړنګل غرنۍسيمې ته خورا ډېره توجه راوګرځوله او د دې سيمې په ډيډيال، ميداني، علي اباد او ځينو نورو سيمو کې يې خورا پاخه بيسونه جوړکړل. امريکايانو د خپلو اډو شاوخوا په راوتاو غرونو هم ګڼې کوچنۍ پوستې جوړې کړې ترڅو د مجاهدينو دبريدونومخه ونيسي. خوپه دې اړه يو بل دردناک واقعيت داو چې څنګه کوړنګل يوه غرنۍ سيمه ده اوخلک يې د کرهنې لپاره لږ مناسبه ځمکه لري، امريکايانو خپلې قرارګاوې په همدې کرهنيزو ځمکو کې جوړې کړې چې دې کار د خلکو سخته نارضايتي راوپاروله اوپه بيابيا په مطبوعاتو کې د شکايتونو سبب وګرځيد. په دې نويو جوړوشويو بيسونوکې په سلګونو امريکايي عسکرو سربيره په ګڼ شمير کې داخلي عسکر، د اجيرې اردو سرتيري او ځيني د شخصي امينتي کمپنيو کرايه شوي وسلوال هم په دنده بوخت وو.

له تيرو شپږو کلونو راهيسې چې امريکايان د کوړنګل غرنۍ سيمې ته ورختلي، تل په سختو جګړو کې ښکيل وو او درانه تلفات يې ورکول. په دې موده کې د کوړنګل په مربوطاتو کې، د امريکايانو پنځه په افرادو بار چورلکې د مجاهدينو په بريدونو راغورځول شوي، چې دښمن يې هم تصديق کړی دی. دغه راز په بيلابيلو جګړو کې دردوی ګڼ شمير سرتيري، ټانګونه او بيلابيل پوځي وسايط او وسايل له منځه تللي اوداخلي عسکرو هم په کې سخت تلفات ليدلي.

دکوړنګل درې اوسیدونکي وایي چې تیرشپږ کلونـه د دوی لپـاره تـر ټولـو لـه بدمرغۍ او ستونزو ډک کلونه وو، ځکه امریکایانو به تل د خپلـو تلفـاتو غـچ لـه بې وسلې اولسي خلکو اخیست او هرشپه به یې د دوی په کورونـو کـې تلاشـۍ کـولې. دغه راز یې هر وخت له خپلو قرارګـاوو ړانـده توپونـه وارول، چـې زیـاتره بـه یـې د هستوګنې په کلیو او کورونو لګیدل، له همدې امله خوبه داسې ورځې ډیـرې کمـې وې چې له کوړنګل نه دې د دښمن پـه توپـو د لګیدلواولسي- شـهیدانو او زخمیـانو خبر نه وي اوریدل شوی. ښایي په دې عمل سره به د دښـمن هڅـه داوه، ترڅـو پـه دې توګه په اولس کې ویره خپره او په سیمه کـې خپـل نظـامي حضـور تـه پایښـت ورکړي. خو ولیدل شـول چـې د دښـمن لـه وحشـیانه چلنـد سره ولسي- قهـر لا پـه زیاتیدو و او د دښمن د ټول زور له استعمال سره سره ورځ په ورځ په کوړنګل کې د مجاهدینو ځواک او بریدونه په ډیریدو ول او دښمن د بې شمیره مصارفو او تلفـاتو ورکولوپه مټ ونه توانیدچې دکوړنګل ځمکه دځان لپاره ارامه کړي.

خواوس چې له دې سیمې د امریکایي ځواکونو د وتلو خبرې کیږي، ویلای شو چې له شپږ کاله خونړي مقاومت نه وروسته امریکـایي مغـرورو لښـکرو پـه داسـې حال کې په دې سیمه کې د اضافي جګړې مورال بایلود او د ستومانۍ احسـاس یـې وکړ چې متقابل جهادي مقاومت لا په ځواکمنیدو او تاندیدو دی. په دې جګړه کې که امریکایي ځواکونو د خپل استدراجي ساینس او جنګي تکنـالوژۍ وروسـتی زور دریغ نکړ، نو مجاهدینو هم په کوم ډول قربانۍ باندې صرفه ونکړه او د دښمن پـه مقابل کې یې له هر ډول چال او تاکتیک څخـه کارواخیسـت. مجاهـدین لـه ډېـرو خفیفو اوناچله وسلو سره د امریکایي ځواکونو د پرمختللي هـوایي او زمینـي ځـواک په وړاندې د غرونو په شان ودریـدل، پـه سـپکو وسـلو یـې لـه چورلکـو سره ډغـرې ووهلې اوپه بیابیا د ژوند په بیه د دښمن په پخو مورچلو وروختل. سره لـه دې چـې دا ډول سرپه لاس جګړو به کله ناکله دردوونکي پـایلې اوتلفـات هـم درلـودلي وي،





خو دا دی بالاخره یې دښمن ته وروفهموله چې نشي کولای په دې خاوره دارام ساه واخلي.

له کوړنګل څخه د امریکایانو شاتګ دې څوک کومه عادي پرمختیانـه بـولي، بلکې که خدای کول دابه په درست کونړ او نور افغانستان کې د امریکایي اشغال د ماتې پیلامه وي، لکه همدا اوس چې همداسې ګنګوسې اوریدل کیږي. ځکه داسـې ویل کیږي چې څوورځې وړاندې د امریکایي ځواکونـو پـه فرمـان د کـونړ دوو تنـو غدارو مشرانو (دکونړپخوانی والي جانداد خان اوملک زرین) د جانـداد پـه کـورکې غونډه جوړه کړې وه او د کونړ د بیلابیلودرو مشران اوسپین ږیري یې راغوښتي وو اودایې ورته ویلي و چې امریکایان په کونړکې سخت تنګ شوي او نور نشي- کـولای تلفات وزغمي نو ځکه د کونړ واګې مونږ (جاندادخان اوملک زرین) ته راپریږدي او دوی به مو یوازې مالي اکمال کوي، نو تاسې په خلکو کې داسې تبلیغ وکړئ چې لـه مونږسره ودریږي. وایي چې دې غوښتنې د کونړ په قومي مشرانو سـخت بـد اغیـز وکړ، د دوی غوښتنه یې په کلکه ردکړه اومخامخ یې دغـه دواړه مشرـان سـخت بې آبه کړل او د امریکایانو مزدوران یې وبلل په هرحال..

له دې پرمختیاوو داسې بریښې لکـه امریکـایي فرعـوني طاقـت تـه چـې نـور تقدیر په بله شوی وي، ځکه په تدریج سره لومړی د یوه سرتیري ستوماني بیا د یـوه ستر جنګي محاذ ستوماني او لـړې نـده چـې د دښـمن د ځواکونـو دا سـتوماني پـه افغانستان کې ټولو میشتو بهرنیـو قواووتـه سرایـت وکـړي، چـې بیـا بـه یـې پښـې دټینګې نه وي. په پای کې ویلای شو چې دکوړنګل په دره کـې دلویـدیځ دفرعـوني ښکیلاک مورال په داسې مهال ستومانه شوی چې د پسرلي د موسم له رابریدو سره دمست کونړي (کونړسیند) غوندې جهادي مقاومت هـم پـه مسـتۍ او ځپاندیـدو دی، دمتعال خدای له ستر دربارنه امید لـرو چـې دا زیـرې مـو د مـومن اولـس او سرلوړی هیواد د سرتاسري آزادی پیلامه شي.

## د سنګين حماسه تر دې ډېره ستره ده

۲۰۱۵/۱۲/۲۳

او دا دی بالاخره همدا نن چهارشنبه د ۱۳۹۴ لمريز کال د مرغومي په دوهمه نېټه مجاهدين وتوانېدل چې د سنګين ولسوالي بشپړه فتحه او د اسلامي نظام او خپلواکۍ توغ ورباندې ورپوي.

دا له څوارلس کلن اشغال وروسته لومړی ځل دی چې سنګين ولسوالي په بشپړه ډول د اشغال له خبثه پاکيږي او د آزادۍ وړمې تنفس کوي، نن به د سنګين د فتحې په اړه ډېرې رسنۍ خبرونه او بحثونه نشر کړي، ډېر کارپوهان به ورباندې وګړيږي مګر د دې حماسې عمق ته به کله هم ورکوز نه شي، هغه چې د څوارلس کلنو قربانيو، رشادتونو او حماسو اوږد پس منظر تر شا لري.

د سنګين حماسه د يوې ورځې خبره نه ده او نه هم کوم داسې معمولي رويداد دی چې په څو راډيويي خبرونو او تحليلونو کې راونغښتل شي، دا فتحه تر شا څوارلس کلن داستان لري، دا فتحه د سترو قربانيو په بدله حاصله شوې، دلته يوازې داخلي اجير پوځيان نه دي مات شوي، بلکې د برتانيا، امريکا او ګڼو نورو اروپايي هيوادونو يرغلګرو هر يوه په سنګين کې بخت ازمويلی دی. خو په پای کې د ټولو بيرې د سنګينوالو د وينو مستو څپو او قربانيو له ځان سره لاهو کړې دي.

نن مې د سنګين د حماسې د څوارلس کلن داستان په اړه خپلو يادداښتونو ته مراجعه وکړه، د قربانيو او رشادتونو له يوه اوږده تسلسل سره مخامخ شوم هغه چې د افغانستان هره سيمه همداسې ناليکلی خو وياړلی تاريخ لري، د سنګين ټول داستان دومره لنډ او کم نه دی چې زما قلم يې بوج پورته کړای شي او يا يې دا لنډه ليکنه احتواء کړي نو ځکه په مشت نمونه خروار باندې بسنه کوم.





### له سنګين سره شناخت

د هلمند د سنګين نوم مې له پخوا اورېد، مګر دا سيمه مې هغه وخت د يوې جهادپالې او يرغلګرو ته د خطرناکې سيمې په حيث وپيژندله کله چې د ۲۰۰۷ م کال په لومړيوکې برتانوي عسکر دې سيمې ته لاړل او په خونړيو جګړو کېوتل، ښه مې په ياد دي چې هغه مهال به بي بي سي په دې خبره ډېر تعجب کاوه چې برتانويانو له سنګين څخه په يوه اونۍ کې د خپلو سرتيرو لس جنازې پورته کړي، په هماغه شيبو کې مې په هلمند کې د برتانوي جنرال ريډېټلر مرکه هم په ياد ده چې د سنګين جګړو خښمولی و او د انتقام له جذبې سره په ډېر غرور غږېده. ريډېټلر ويل: د يوه پوځي په حيث باور لري چې په سنګين کې به د ميوند تاريخ تکرار نشي، يعني انګريز سرتيري به له کليوالو افغانانو شکست ونه مني.

دا د يوه مغرور پرنګي هغه پېټکه وه چې تقدير غلطه ثابته کړه، پرنګيان تر پخوا په ډېر ذليل حالت له سنګينه وتښتيدل.

په هماغه کال مې د پيښور په باغبانانو نورالمدارس مدرسه کې سبق وايه، د ملاناصر په نوم يو طالب مې ملګری و چې د سنګين د جوشالي سيمې و، هغه به راته د سنګين د جګړو ناويلې بيانولې چې ډېر ځله به زما زړه ته نه لوېدې. مګر وروسته يوه شوم چې هلته د حماسه آفرينۍ کچه رښتيا همدومره دنګه او اټکلونو له چټې وتې وه.

### د ټانګونو په وړاندې تبر په لاس کليوال

دا کيسه راته د هلمند يوه مجاهد ملا روح الامين روحاني په ۲۰۰۹ م کال کې هغه وخت وکړه چې د روزګان جهادي مسؤل و، ملا روحاني چې اصلا د هلمند دی د سنګين په څاروان کلا کې يې د لومړيو کلونو د يوې جګړه داستان داسې بيان کړ.

یوه ورځ د سنګین د څاروان کلا په یوه کلي کې ډېر مجاهدین ناست وو چې خبر راغی: دکجکي ولسوالۍ له لورې یوه لویه قوه درووته، مونږ یو څه انتظار وکړ، چې د ۳۲ ټانګونو او رینجرانو یو لوی کتار د څاروان کلا سیمې ته راداخل شو، په کتار کې د امریکایانو او انګریزانو ټانګان هم وو خو زیاتره د داخلي ګوډاګیانو رینجر وو. د څاروان کلاعلاقه درې وتونکي لارې لري. چې یوه د سرو پوزه بولي. بله دکنګیانو مانده ده اوبله دبابافقیرلاره ده. مجاهدینو په خلکوهم غږ وکړ، د خلکو په همکارۍ یې درې واړه لارې د دښمن په مخ بندې کړې اوبیایې په دښمن حمله وکړه. دا وخت کلیوال هم له وسلو سره راووتل اوپه دښمن یې بریدونه پیل کړل، ترڅو چې ما یوه ښځه ولیده چې په توپانچه یې په انګریزانو ټکان کول، یوکوچنی ماشوم مې ولیدچې تبر ورسره و او د جګړې میدان ته یې راځغاستل. یوه سپین ږیري په پخواني یو ټکه ټوپک باندې انګریزان په نښه کول. انګریزان او داخلي عسکر دغې سختې حملې ډېر بد وارخطا کړل اوحواس یې وبایلل. مونږ لیدل چې موټر به یې له قصده له لارې وغورځاوه اوله څنګ سره به یې ووهل اکثروېې موټر او ټانکونه پریښول او شاوخوا غونډیو ته یې منډې پیل کړې، چې په غونډیو به ختل مجاهدینو به د شا له خواوویشتل. لنډه دا چې د دوی د ۳۲ نظمي وسایطو څخه یوازې دوه د سنګین د ولسوالۍ په خوا وتښتیدل او خلاص شول نور ټول له مهماتو سره مجاهدینو ته په لاس ورغلل ۲۸بیخی روغ پوځي موټران پدې جګړه کې مونږ ځینې غنیمت کړل.

دغه راز د دوی بیخي ډېرې اسلحې هم دلته ترې پاته شوې، چې له دې جملې څلور پایې هاوانونه وو چې له هر یوه سره ۳۰۰ فیره مرمۍ هم وې. مجاهدین د دې غنیمتونومحفوظو سیموته په نقلولو بوخت وو چې مازدیګر مهال دوی تقریبا د ۳۰ چورلکو سره په سیمه چاپه واچوله په مجاهدینوېې غرض ونه درلود، یوازې یې خپل وژل شوی او ځای ځای پټ شوي عسکر ورسره واخیستل او بیرته لاړل.





## د ملا عبیدالرحمن له روایته

ملا عبیدالرحمن د طالبانو د وتلي قومندان شهید ملا اخترمحمد عثماني صاحب خوریې دی، ما ورسره د ۲۰۱۰ م کال د می په لسمه نیټه لیدنه درلوده، هغه مهال پنځه ویشت کلن ځوان و او په سنګین کې یې د یوه جهادي محاذ مشري په غاړه وه، نوموړي د سنګین د هغو ورځو وضعیت داسې راته تصویر کړ.

دګرشک له حدودو نیولې بیا دسنګین ترمانده پورې چې بیخي کمه ساحه ده دښمن تقریبا ۳۰ امنیتي پوستې جوړې کړې دي چې خارجي او داخلي عسکر په کې اوسي. دغه راز دوی دسنګین دبازار او مجید چوک په ساحو کې هم ډېرې لویې قرارګاوې لري او ډېرزیات عسکر په کې پراته دي په سنګین کې دښمن تر ډېره هڅه کوي چې یوازې همدا دکجکي په خوا تللې لویه لار پرامنه کړي نو ځکه خویې ټول قوت په همدې مصروف کړی او د سنګین نورې ټولې اطرافي سیمې د مجاهدینو په ولکه کې دي.

د دښمن پیاده ګزمې یا ټانګونه که له خپلو پوستو او قرارګاوو راوځي، نو بیخي په نږدې واټن کې مجاهدین ورباندې عیار شوي ماینونه پټاووي، که چیري ماین نه وي د مجاهدینو چریکي ګروپونه پرې د هشتادو، درازنوفونو او له دوی څخه د نیول شویو ایم شپاړس ټوپکو ډزې کوي. ډېرځله داسې پیښیږي چې په دې ډول بریدونو کې د دوی څوتنه ولګیږي نوریي سره او شنه دود خپرونکي ګرنیټونه وغورځوي او په همدې لړو کې بیرته ننوځي. د سنګین له ساحې د تیرې شوې لویې لارې پر سر پرتې پوستې په دومره واټن کې دي چې غږ یې سره اوریدل کیږي، مګر بیاهم دوی د دې پوستو تر مابین په آسانه تګ راتګ نه شي کولای.

دمجیدچوک په سیمه کې چې د اشغالګرو کومه قرارګاه ده، ګڼ سرایونه پرې راګرځیدلي دي. مجاهدینو په دیوالونو کوچني کوچني سوري کړي دي، له همدې

ځخه د دښمن د قرارګاه په شاوخوا کې د دوی عسکر څاري، کله چې کوم يو ورته لېرابښکاره شي، نو په دوربين دار ټوپک يي په نښه کوي. په دې توګه مجاهدينو حتي د دښمن د قرارګاه په پيره دارخانه کي څوت نه عسکر وژلي، له همدې امله خو اوس دوي په دې سيمه کې د خپلو قرارګاوو په پيره دارخانو داسې جالۍ غوړولي دي چې پيردار په کې ډير په مشکل ليدل کيږي.

په دې سيمه کې مجاهدينو دريموټي او تارکشي ماينونوپه واسطه هم ددشمن ګڼ شمير نقليه وسايط له منځه وړي اوړسپاره عسکر يې وژل شوي دي. څرنګه چې دښمن د سنګين په شاوخوا سيمو کې موثر استخبارتي منابع نه لري نو د مجاهدينو د کشفولو لپاره د جګړې په وخت يا په عامو حالاتو کې له خپلو قرارګاوو څخه کوچنۍ بې پيلوټه الوتکې راپورته کوي اوپه سيمه دورې ورکوي، مګر د دې الوتکو د رانسکورولو لپاره اوس مجاهدينو ډېرښه چل زده کړی، هغه دا چې که د درازنوف په مرمۍ وويشتل شي، په يوه مرمۍ راغورځي. دغه ډول ۱۲ دانې کوچنۍ الوتکي چې ځيني پلاستيکي دي اومختلف اشکال لري، تراوسه زموږ مجاهدينو رانسکورې کړي او راسره دي. تيره يوه نيمه مياشت کې مجاهدينو د اشغالګرو تر ۳۵ ډېر ټانګونه په بيلابيلو فرصتونو کې په بمي او راکټي بريدونو کې له منځه وړي دي.

## په ماين پلټونکي روباټ بريد

ملا عبيدالرحمن په هماغه ورځ دا کيسه هم وکړه، چې مجاهدينو څرنګه په سنګين کې د امريکايانو د ماين پلټونکو روباټونو تاکتيک شنډ کړ؟ ده وويل: دسنګين ولسوالۍ دجوشالي په سيمه کې له کليوالو سيمو لوړ دسرک په غاړه د امريکايي او برطانوي عسکرو يو ډېره ستره قرارګاه ده، خو د سنګين ولسوالۍ د نورو سيمو غوندې دلته هم بهرني اشغالګر يوازې د خپلې قرارګاه دننه د سکون





ساه کاږي او له قرارګاه بهر ډېر نه راوځي. په دې سيمه کې دوی ته ډېر تلفات له هغوماينونو څخه اوښتي چې مجاهدينو له قرارګاه څخه د کليوالو سيمو په خوا په غزيدلي سړک ورته ښخ کړي. همدې ماينونو په دې وروستيو کې د دوی ګزمي له يوې مخې په ټپه درولي دي.

دماينونو له دې جنجال څخه دخلاصون لپاره امريکايانو له خپلو ټولو ناکامو هڅو وروسته په دې اواخرو کې يونوی اقدام وکړ. هغه دا چې يوډول (روباټونه) چې د لاسي ګاډۍ نه يو څه کمه بدنه لري او په ډېره پرمختللي ټيکنالوجۍ سمبال دي خپلو مهمو قرارګاوو ته يي راوړل. دوی به دجوشالي له همدې قرارګاه څخه دغه ارابه لرونکی روباټ په سرک راخوشی کړ، په داسې حال کې چې امريکايانو به قرارګاه څخه د ريموټ په واسطه کنټرولاوه، ګام په ګام به يي سرک پرې معاينه کاوه او چې چيرې به يې ماين وموند، نو بيرته به وګرځېد، دا ځل به يي بارود راوړل، د ماين په خوا کې ځای به يي ژورکړ، باورد به يي ورسره کيښودل او په انفجار ورکولو سره به يي ماين ضائع کړ.

دې روباټ چې د مجاهدينو ډېر ماينونه خنثی او خوارۍ يې ور ابته کړې، نو يوه ورځ دوه تنه مجاهدين له موټرسايکل سره دسرک په غاړه يوه پټنځي کې ورته کمين شول او دې ته انتظار وو چې روباټ ورنږدې شي. کله چې دغه ماين پلټونکی روباټ بيا له قرارګاه راووت او د مجاهدينو خوا ته ورنږدې شو، يوه تن مجاهد په داسې حال کې چې له قرارګاه څخه امريکايي عسکرو فيرونه هم کول، په روباټ يې حمله وکړه، په خپل څادره کې يې روباټ پنډه کړ او له خپل بل ملګري سره چې له وړاندې يې موټرسايکل منډې ته اماده کړی و، سپور شو او روباټ يې روغ رمټ ولجه کړ.

ددغو عملیاتو برخوال مجاهدین وایي چې تر ډېره پورې چې روباټ د دوی په ولجه کې و، هم چالان و او قسماقسم اوازونه ترې راوتل خو نور ټیکنالوجۍ د ایماني همت په وړاندې دځه کولو وس بایللی و او دتخنیک معجزه سره اوسپنه ګرځیدلې وه.

## ګمنام اتلان

د سنګین د حماسي غونډې د تاریخ ټولې سترې حماسې په واقعیت کې هغه څوک د خپلو وینو او قربانیو به برکت ګټي چې نومونه یې هیڅا ته هم یاد نه وي، هغه چې د اسلامي تاریخ د ټولو ګمنامو جانبازانو غونډې یوازې د الله تعالی د رضا لپاره سر په لاس کې نیسي او له توپانونو سره ډغرې وهي.

په سنګین کې به ډېرو اتلانو ډېر قسمه اتلولۍ کړې وي، خو دا شیبه زما په زړه د سنګین د ښاروان کلا د الکوزو د کلي هغه سپین ږیری راواروېد چې د ۲۰۱۱ م کال د جنورۍ په اتلسمه یې په دې سیمه کې د مسؤل امریکایي قومندان په ککره د ډبرې ګوزار وکړ، امریکایي قومندان یې په خپل درانه ګوزار د مرګ په خوب ویده کړ او وروسته خپله هم په امریکایي مرمیو غلبیل او د شهادت لوړ مقام ته ورسېد. د هغه سپین ږیري نوم مې له ذهنه وتلی، مګر هغه زلمی چې له دې پیښې څو میاشتې وروسته یې د سنګین په بازار کې دوه امریکایي پوځیان په چاړه ووهل او خپل ایماني دریځ یې وروښود، جلات خان نومېده.

دلته به ښه نه وي چې د هغو اتلانو له یادونې پرته تیر یرو چې د سنګین په جګړو کې یې د شهادت جامونه نوش کړي او نړیوال کفر ته یې خپل د دین حقانیت او لوړتیا په اثبات رسولې. راځئ دلته د سنګین هغه شهیداتلان رایاد کړو چې نن یې موږ د قربانیو په برکت د سنګین فتحه لمانځو. هغوی لکه: ملاعبدالباري، حاجي نصرالله، مولوي سعدالدین، حافظ نسیم، ملا محمدنذیر





فاروقي، ملا عبدالقوي، ملا امین طوفان، ملا عبدالغفار ملا لالا، حاجي احمد، حاجي ملا محمد جمالي او داسې نور سلګونه اتلان الله تعالی دې یې شهادتونه قبول کړي.

## هیښوونکي تاکتیکونه

د ۲۰۱۰ م کال له سختو جګړو وروسته امریکایان او برتانویان د هلمند د نورو سیمو غونډې د سنګین په ډېرو سیمو هم واکمن شول، دوی کلي په کلي قرارګاوې او پوستې جوړې کړې او مجاهدین اړ شول چې په وړاندې یې مخفي عملیاتو او چریکي جګړې ته دوام ورکړي.

دا مهال له امریکایانو سره د مجاهدینو جګړه په عجیبو تاکتیکونو روانه وه، چې د هر برید لپاره یې بیل تاکتیک سنجول کېده. مثلا د هلمند د یوه جهادي مسؤل ملامحمد داود مزمل له قوله، یوځای د امریکایانو څو اډې په ډېره لنډه فاصله کې وې، هره خوا یې د څار برجونه و، د شپې مهال به بي پیلوټه طیارو څار کاوه او مجاهدینو نه شوای کولای چې امریکایانو ته ماینونه کیږدي، خو د دې امریکایي پوستو تر مابین یو ځای څو د توتو ونې ولاړې وې، چې امریکایان به یې سیوري ته سره پنډېدل.

یو ورځ څو تنه مجاهدین د توتو راټولولو په پلمه همدې ونو ته ورغلل، له ځان سره یې په پټه څو کوچني ماینونه هم واخیستل، مجاهدین چې په عادي لباس کې و یو د توت ونې ته وروخوت، چې توت راوځنډي او نورو لاندې ورته لوی ټاټ ونیو. دوه نور مجاهدین تر ټاټ لاندې د ماینونو په ښخولو بوخت شول. د امریکایانو د څار برجونه نږدې وو، هغوی مجاهدین په کلکه څارل او فکر یې کاوو چې توتان تویوي، مجاهدین هم د توتانو په راتویولو بوخت وو، خو تر هغو چې د توتانو کار خلاصیده هغو دوو نورو مجاهدینو د ماینونو د ښخولو کار هم پای ته

ورساوه، مجاهدین له توتانو سره له سیمې لاړل، خو څه وخت وروسته چې امریکایان د ونو همدې سیوري ته د مجلس او بانډار لپاره راغونډ شول، مجاهدینو په ریموټ باندې ماینونه منفجر کړل او د امریکایانو هډونه یې په هوا کړل.

## د لومړي نړیوال جنگ تاکتیک

سنگین ولسوالي امریکایانو او انگریزانو تقریبا ټوله ونیوله، د طالبانو علني حضور ته یې د پای ټکی کیښود، طالبان مجبور شول چې علني تشکیلات په چریکي تشکیلاتو بدل کړي، امریکایانو وروسته په ښاروان کلا او د سنگین په نورو سیمو کې د اربکي سازي په پروژه پیل وکړ، په ښاروان کلا کې یې لسگونه د اربکیانو، اردو، پولیسو قرارگاوې جوړې کړې او کله چې د دې سیمې په امنیت ډاډمن شول نو د خپلو قواوو په ایستلو یې پیل وکړ.

طالبانو سنگین ته د ورگرځیدو عملیات د ۲۰۱۳ م کال د مې په نولسمه پیل کړل، په هغه ورځ سلگونه مجاهدین د هلمند د ښپاند سیند له څپو سره له ډغرو وهلو وروسته د ښاروان کلا غاړې ته پورې وتل او د اربکیانو په پوستو یې بریدونه پیل کړل. له همدې ورځې په سنگین کې د طالبانو تصفیوي تهاجمي عملیات بیا شروع شول، طالبانو د اربکیانو او اردو پوستې په اسانۍ ورټولې کړې اما د هغو پخو بیسونو او سترو قرارگاوو فتح کول سخت و، چې امریکایانو ډېرې محکمې جوړې کړې او اوس یې داخلي پوځ ته پرې ایښي وې. طالبانو له دغو قرارگاوو سره داسې چل وکړ، چې امریکایانو ته د فرانسویانو هغه تاکتیک وریاد کړ چې سل کاله پخوا یې دلومړۍ نړیوالې جگړې په مهال د جرمني ځواکونو د دفاعي خط تباه کولو لپاره کارولی و.

د هلمند د یوه جهادي مسؤل له قوله مجاهدینو له یونیم سل متره لرې مسافې څخه دغو بیسونو ته تر ځمکه لاندې تونلونه ورتېر کړل، چې دا یو سخت او





ستړی کوونکی کار و. وروسته یې د دې مراکزو لاندې تونلونه له بارودو ډک کړل، او تقریبا له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۲۰۰ کیلوگرامه چاودیدونکي مواد یې په کې ځای پر ځای کړل، کله چې په ښاروان کلا عملیات پیل شول، مازدیگر مهال د دښمن دغو مراکزو ته چې دوی خوندي بلل، هم انفجار ورکړل، ددرنو چاودنو له امله مراکز په بشپړ ډول له منځه لاړل یوازې په یوه بیس کې یوه برج روغ پاته شو او کیدای شي کوم عسکر په کې ژوندی پاته شوی وي، نور دغه مراکز مکمل تباه شول او دې حیرانوونکي برید دښمن له سختې وارخطایي سره مخامخ کړ.

## وروستۍ صحنې

د هلمند جهادي مسؤل ملا عبدالمنان آخند د سنگین په ستراتیژیک اهمیت پوه و، نو ځکه په تیرو دوو کلونو کې د دې ولسوالۍ لاس ته راوړلو ته د بلې هرې سیمې په نسبت ډېر متوجه و. د نوموړي تر مشرۍ لاندې طالبانو په تدریج سره په سنگین کې پرمختگ وکړ، ښاروان کلا یې مکمله ونیوله او د کجکي لار یې وتړله، ورپسې یې د گرشک او سنگین تر منځ پوستې له منځه یووړې چې په دې ډول په سنگین کې پراته عسکر محاصره شول. د دغو پرمختگونو په مقابل کې حکومت د ۲۰۱۵ م کال په فبرورۍ کې په سنگین کې د ذوالفقار په نامه ظالمانه عملیات وکړل، د مالمند بازار یې وسوځاوه او د گرشک ـــ سنگین د لارې په امتداد کې یې شاوخوا یونیم زر کورونه او باغونه ونړول. خو دې مظالمو د سنگین د ساتلو په چاره کې گټه ونه رسوله، بلکې نوره یې هم اولسي ـ غوسه راوپاروله. تردې چې قدم په قدم سقوط په پایله کې دا دی همدا نن د ۱۳۹۴ لمریز کال د جدي په دوهمه سنگین ولسوالي په بشپړه توگه د اشغالگرو او گوډاگیانو له واکه ووتله.

د سنگین د واقعاتو او په ټوله کې د هلمند د حالاتو په اړه د کابل چارواکي دومره ناخبره او د فیل په غوږ کې ویده دي. چې په خپلو ټولو ناکامو سترگې

پېښوي، د بي بي سي له قوله نن چې د سنګين له سقوط وروسته د دفاع له سرپرست وزير معصوم ستانکزي څخه د هلمند د حالاتو په اړه وپوښتل شول، ده وويل چې حالت بيخي نورمال دي، په هلمند کې د طالبانو د پرمختګ دعوې ټولې درواغ دي، طالبانو هيڅ ولسوالي نه ده نيولې يوازې په باغران ولسوالۍ کې د برامچې سيمه د دوی په لاس کې ده!!!

په باغران کې برامچه؟؟ دا داسې مثال لري لکه څوک چې ووايي يوازې د نيمروز د ولايت په وردوج ولسوالۍ کې طالبان شته. ځکه باغران د هلمند په شمالي سر او برامچه په جنوبي سر کې ده، د دفاع وزير چې تر اوسه د هلمند په جغرافيه نه دی خبر نو د نوزاد، موسی، کلا، ديشو، خانشين، باغران، بغني او بالاخره سنګين د سقوط څخه په انکار خو يې هيڅوک هم ملامت نه شي بللی.





## ديرغلګرو په خلاف نوی جهادي محاذ

۱۰/ اګست /۲۰۱۲

د روان ۱۴۳۳ هـ ق کال درمضان المبارک په يوويشتم ماښام د هلمند ولايت دسنګين ولسوالۍ دڅاروان کلا په سيمه کې داسد الله په نامه يوه افغان سرتيري خپله دټوپک شپيلۍ په امريکايي عسکرو راوڅرخوله، چې د لومړنيو معلوماتو له مخې يې څلور امريکايي سرتيري ځای په ځای ووژل او درې نور يې ټپيان کړل.

د هلمند دسنګين بريد په بهرنيو يرغلګرو د هغو بريدونو د لړۍ وروستی بريد دی، چې له تيرو څو کلونو راهيسې د کابل رژيم په امنيتي ليکو کې د دخيلو بيلابيلو وسله والو افغانانو لخوا په بهرنيو او کورنيو دښمنانو باندې ترسره کيږي او دښمن ته دسر درانه زيانونه اړوي.

هسې خو د امريکايي يرغل له لومړۍ ورځې څخه هر واقعي مسلمان افغان د امريکايانو او د هغوی د ګوډاګيانو په وړاندې د کينې او دښمنۍ زړی په زړه کې کرلی، چې دغه دښمني په مختلفو بڼو څرګندوي. ځنګه چې د کابل رژيم د امنيتي ځواکونو برخوال هم ټول افغانان او د همدې مسلمان ملت په کهول کې راستر شوي ځوانان دي، نو له ظاهري انحراف سره سره دا تمه ترې کيدله، چې ان شاءالله دوی به هم زموږ د عقيدوي دښمن په خلاف خپل مسؤليت سرته رسوي او په دښمن باندې به له دننه څخه مؤثر بريدونه پيلوي.

همداسې وشول، د امريکايي يرغل له پيل څخه لږ وروسته هغه مهال چې د امريکايانو راوستل شوي ګوډاګي حامد کرزي د کندهار له ښار څخه ليدنه کوله، د کندهار ولايت د مقام له دروازې سره يوه افغان عسکر چې د حامد کرزي لپاره

دتشريفاتو په کتار کې درول شوی و، خپل د ټوپک چوشکۍ يې دوو سترو امريکايي ګوډاګيانو (حامد کرزي او ګل اغا شيرزي) ته برابر کړ او ماشه يې ووهله، په دې اتلوال بريد کې حامدکرزی بچ شو او ګل اغا شيرزی سطحي ټپي شو، خو اتل بريد کوونکي په خپل جسورانه يرغل سره وښودله، چې يرغلګر او د هغوی ګوډاګيان دې هيڅکله هم دا خيال نه وهي، چې نور د افغانانو د ديني غيرت او استقلال خوښونې حس مړژواندی شوی او نور خدای مکړه نه شي کولای د خپلواکۍ معامله ګر په خپله سزا ورسوي.

په دې توګه په يرغلګرو امريکايانو چې بې له هغې هم له هرې خوا لاس ورلويدلی و او د مؤمن خان د ښامار غوندې هر چا په کې توره سره کوله (چا يې سرواهه او چا يې مال لوټه) له يوه نوي او معتدبها جهت څخه کاري ګوزارونه پيل شول. د کابل رژيم په امنيتي ليکو کې داخل افغانان چې امريکايانو په خپلو وسلو او امکاناتو تر سمبالولو وروسته خپل سکني ملاتړي بلل، په امريکايي ځواکونو ډزې يې په دښمن خورا درنې او تر زغم لوړې تماميدلې، نو ځکه يې ورسره برخورد هم خورا احساساتي و.

د طلامحمد په نوم د پکتيا د زرمت ولسوالۍ د اسلام خيلو اوسيدونکی هغه عسکر چې په لومړيو کلونو کې يې د پل چرخي په زندان کې په امريکايي مشاورينو خپل د پيکا شريد خالي کړ او وروسته د امريکايانو لخوا په شهادت ورسول شو، په امريکايانو يې اغيز کړی و، چې دغه اتل شهيد يې په مرګ مجازات کړ. په داسې توګه چې د نوموړي جسد يې تردوو مياشتو پورې کورنۍ ته ورنکړ چې دفن يې کړي. علاوه له دې يې د نوموړي بدن ته زهري کمياوي مواد تزريق کړل ترڅو يې رنګ تور واوړي او بدبويي ترې خپره شي، خو د امريکايانو دا دسيسه هغه مهال الله تعالی په خپل فضل سره شنډه کړه، کله چې د شهيد طلامحمد جسد خپلې سيمې ته راوړل شو. په داسې حال کې چې رنګ يې تک تور شوی او بدن يې





پړسيدلی و، خو يوه ځانګړي خوشبويي ترې خپريدله چې ټولو خلکو ته يې حقانيت او مقبول شهادت د لمر غوندې روښانه شو.

خو د دا ډول اتلوالو بريدونو او بريدکوونکو په وړاندې د امريکايانو د هر ځومره سخت چلند سره سره دا لړۍ ونه درېده. بلکې د وخت په تيريدلو سره نوره هم چټکه شوه. د باميانو طالب حسين په سنګين کې شپږ برتانويان له منځه يووړل، د ګلبدين په نوم سرباز هم په هلمند کې ورته اتلوال بريد ترسره کړ، پيلوټ احمدګل تره خېل تريو درجن زيات بهرني مشاورين په خپله ميګاروف توپانچه د مرګ په وخوب ويده کړل، چې په دې توګه په بهرنيو يرغلګرو او د هغوی په ګوډاګيانو د افغان عسکرو لخوا د بريد موضوع د ندرت او شذوذ له قيده راووتله او تقريبا د ورځې او اونۍ د خبر شکل يې خپل کړ.

د روان ۱۴۳۳ هـ ق کال د ربيع الاول د مياشتې په وروستيو کې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د کابل رژيم د پوليسو، ملي اردو او نورو امنيتي ځواکونو په ليکو کې د دخيلو افغانانو په نوم يو ځانګړی پيغام نشر شو، چې له دوی څخه غوښتنه شوې وه، ترڅو له خپل موقعيت څخه په استفاده په دښمن له دننه څخه ګوزارونه وکړي او په دې توګه خپل ديني مکلفيت سرته ورسوي.

د اسلامي امارت په دې ځانګړي پيغام کې راغلي و (د دې لپاره چې د کابل د اداري په امنيتي تشکيلاتو کې شاملو ټولو ځوانانو خپل ديني او افغاني مسؤليت ادا کړی وي او د خپلو تيرو کړنو ګناه يې جبيره کړې وي، دغه راز يې د اسلام او افغانستان په تاريخ کې خپل نوم په روښانه ټکو ثبت کړی وي، د افغانستان اسلامي امارت په دوی غږ کوي، چې د خپل اسلامي احساس، ملي ننګ او غيرت او اسلامي ورورولۍ له مخې دې د خپلو ټوپکو شپيلۍ د خپل اولس په ځای په پرديو کفري يرغلګرو وراوړي، ترڅو په دې توګه له کفري يرغلګرو د خپل مظلوم اولس د

لس کلنو غمیزو انتقام واخلي او د اسلامي غازیانو په صف کې خپل ځانونه ثبت کړي، دغه ځوانان باید په یاد ولري چې دوی د دنیوي او اخروي بریالیتوب لپاره همدا اوس تر هر چا ښه فرصت په لاس کې لري. نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي (لایجتمع کافر وقاتله فی النار) څوک چې کافر قتل کړي، نو هغه بیا له هغه کافر سره په جهنم کې نه یوځای کیږي بلکي جنت ته به ځي. معلومه شوه چې د یوه حربي کافر قتل د جنت د دخول سبب ګرځي، دغه راز داسې غازیان په دنیاوي لحاظ هم په مرګ او ژوند دواړو د اولس په منځ کې د اتلانو په نامه یادیږي او هر څوک یې په کارنامو ویاړي. کوم ځوانان که په داسې اتل والو بریدونو لاس پورې کوي، نو اسلامي امارت هم د خپل دیني مسؤلیت له مخې هوډ لري چې داسې قهرمان ځوانان به تقدیروي او په هره ممکنه وسیله به یې ملاتړ او لاس نیوي ته ور دانګي.

اسلامي امارت خپلو ټولومسئولینوته هدایت کړی چي که په مخالف صف کې څوک د اشغالګرو په ضد اقدام وکړي، شخصا له هغوی او د هغو له کورنو سره دي پوره پوره همکاري کوي او د لا زیات ناز لپاره دې مشرتابه ته معرفي کوي، قدرونه دي کوي او د قهرمانانو په څیر دي استقبال کوي)

د اسلامي امارت د دې پر ځای اقدام نه وروسته په ګډ دښمن باندې له دننه څخه بریدونو نور هم زور واخیست. په دې وروستیو دوو اونیو کې په پکتیکا، کاپیسا، هلمند، کندهار، میدان وردګ، هرات او د هیواد په نورو سیمو کې په دښمن باندې له دا وړ منسجمو، پرله پسې او دقیقو بریدونو څخه څرګندیږي، چې اوس د امریکایانو په خلاف د خپل جنګي صف دننه هم یو خورا خطرناک جهادي محاذ پرانیستل شوی دی، چې د مقابل مشهود جهادي محاذ غوندې په ورځني شکل یرغلګرو ته درانه تلفات اړوي.





دا محاذ لکه څومره چې د سر د زیان اړولو له درکه د امریکایانو لپاره خطرناک دی، په همدې کچه یې په دښمن رواني اغیز هم خورا ژور او تلپاتې دی. موږ ولیدل چې تېر کال د کورنیو چارو په وزارت کې د یوه افغان سرتیري لخوا د دوو امریکایي سلاکارانو وژلو یرغلګر دې ته اړ کړل، چې له ټولو ادارو څخه خپل سلاکاران وباسي او د ساتنې لپاره یې نوي پرمصرفه پلانونه طرحه کړي. دغه راز په فرانسوي ځواکونو یوه برید فرانسویان دې ته اړ کړل چې له افغانستان څخه د خپلو سرتیرو د وتلو په پلان کې عجله وکړي.

په عسکري اصطلاح د مخالف غلیم په صف کې رخنه ګر جوړښت ته (پنځم ستون) وایي. تاریخ ثابته کړې هر هغه پوځ چې په تشکیل کې د مخالف جهت استازي شتون ولري او له داخلي بحران او مقاومت سره لاس او ګریوان وي، د بریالیتوب مخ نه شي لیدلی. لله الحمد نن امریکایان او ګوډاګیان یې په همداسې دریځ کې دی، د دوی د افغاني ملاتړو یوه لویه برخه دستوري یا نفوذي مجاهدین دي، چې یوازې خپل وار ته ګوري. هغوی چې د دښمن په لیکو کې د اسلامي امارت د (پنځم ستون) رول ادا کوي، دغه اتلان به که د الله تعالی رضا وه د امریکایي یرغلګرې اډانې لپاره د وژونکي سرطان په دود ثابتیږي او امریکایي سټه به له داخله شپیلوي او له منځه وړي.

د یرغلګرو په خلاف د دې نوي مهم جهادي محاذ دپاللو لپاره باید ډېر څه ترسره شي، ترڅو په کامیابۍ سره خپل عملیات انجام کړای شي. افغان اولس باید خپل هغه زامن او قربیان چې د دښمن په امنیتي لیکو کې شتون لري دې ته تشویق او دعوت کړي، چې په دې محاذ کې داخل شي او په خپلو اتلولیو سره دا سنګر وپالي. دغه راز هغه اتلان چې په دې محاذ کې عملیات ترسره کوي، که په شهادت رسیږي او یا هم ژوندي خلاصیږي په دواړو حالاتو کې یې باید فوق العاده

قدرونه وشي، ځکه دوی بې له شکه د روان جهاد کمساري اتلان دي، چې په خورا خطرناکو ظروفو کې خپل عملیات سرته رسوي.

د افغانستان اسلامي امارت چې په دې وروستیو کې یې د داډول عملیاتو د بریالیتوب لپاره مختلف پروګرامونه طرح کړي دي، باید نور هم د یاد شوي محاذ د بریا لپاره کار وکړي، د دا ډول اتلانو کارنامې باید په مختلفو طریقو تمجید شي، ترڅو د دې سترو اتلانو قدر په ځای شوي وي.





# په مارجه کې امریکایان په سپیانوپسې پل وهي

٢٣/ می /٢٠١٠م

## مارجه داسې نه ده لکه ګلاب منګل چې وایي

تیره شپه له بي بي سي رادیو سره په مرکه د هلمند امریکا پلوي والي ګلاب منګل وویل چې مارجه یې په بشپړه توګه ترکنترول لاندې راوستي او اوس د ده په ټکو کومه ستونزه په کې نه ده پاتې. مګر که څوک له نږدې د مارجې ورځنی حالت ووینې پوه به شي چې وضعیت د هغه څه سل فیصده اپوټه دی چې ګلاب منګل یې تعبیروي. په مارجه رښتیا هم درانه عملیات وشول خو دا چې امریکایانو ولسيـ همکاري له ځانه سره نه درلوده، نو ځکه یې د نورهیواد غونډې دلته هم د واک ساحه یوازې تر خپلو قرارګاوو رالنډه شوه. همدا اوس له امریکایي قرارګاوو نه بهر د مارجې حالت بیرته هماغه وضعیت ته ستنیدونکی دی چې له مشترک عملیاتو وړاندې و. دا چې ګلاب منګل تراوسه آزاد خبریالان نه دي پرې ایښي چې مارجه په خپلو سترګو وګوري، بنیادي علت یې د همدې راز همداسې محرم ساتل دي.

## قرارګاوې اوڅواک دېردی خواغیزیې محدود دی

په مارجه لکه څنګه چې د عملیاتو په وخت د یرغلګرو قواوو شمیر بې ساری و، همداسې یې که اوسنیو قرارګاوو او هلته پاته ځواکونو ته حساب وشي، ښایي د هیوادپه سطحه بې ساری وبلل شي. مارجه چې یوه محدوده ساحه ده امریکایانوپه کې ګام په ګام لویې اوکوچنۍ قرارګاوې جوړې کړې دي. لویې قرارګاوې یې د تریخ ناور، کیمپ، کروچاراهي، لوچاراهي، وکیل وزیرچارراهي، پمپ چاراهي، د

سیستاني سیفن، کوز او بر ششرک باندې دغه راز په قاري صدي کي دي. مګر که وړې هم ورسره حساب شي په درسته مارجه کې یې ښایي شمیرله پنځوسو واوړي. اشغالګرو زیاتره قرارګاوې په عامو سرکونو او څلورلارو جوړې کړې او په خالي شویو کورونو کې یې اړولي دي. له خپلو ډېرو قرارګاوو یې ریګي جوالونه راتاو کړي چې ټوله ورځ د همدې جوالونوشاته پټ وي او ډېرکم راوځي، تردې چې ډېرځله مجاهدین دردوی درقرارګاوو څنګ ته ورځي په دوی بریدونه کوي مګر دوی په راوتلوکې ډېراحتیاط کوي له همدې امله خو اوس څوک چنداني ری نه پکې وهي اوله جوالي محدودې د باندې یې هیڅوک هم واکمني نه مني.

## امریکایان په مارجه کې په سپو پسې پل وهي.

مارجې ته راغلي یرغلګرعموما موټریزې ګزمې نه کوي. ځکه سړکونه له رهبري کیدونکو ماینونو ډک دي او مجاهدین یې همیشه تر څار لاندې ساتي. اشغالګر چې کله له یوې قرارګاه بلې ته ځي او یا هم کله ناکله کوم عملیات کوي، نو د سل دوو سووپه حساب پوځیان چې داخلي اوخارجي ګډوډ وي په یوه ځل له قرارګاه څخه راوځي او بیا پیاده ګزمې پیلوي. مګر د دوی دغه پیاده ګزمې ځانګړی خندنی سبک لري چې ښایي تراوسه بل ځای چانه وي لیدلی. دا چې په سرکونوکنترولیدونکي ماینونه دي او په فرعي لارو اوپولو باندې چې په کومه خوا د دوی مخه وي، مجاهدین ورته همغه شیبه د پرسونل ضد ماینونه ښخوي، چې اوس دوی د دې چاودنو له وجې په لوی جنجال کیوتي او تراوسه یې سخت تلفات تري لیدلي دي. اوس نوچې دوی په کومه خواګزمه باسي، ترمخ یې یوه ګله سپیان خوشي کړي وي چې پرله پسې څوس کاږي، ورپسې ماشین پلاس ماین پاکان وي او د پیاده پوځي کتار لپاره لار بي غمه کوي. ترشا بیا نور پوځیان وي دغه راز د مجاهدینو د ښه ویشتونکو له ډاره دوی څلورخواوو ته څارنه هم د ګزمي یوه





ضروري برخه بولی. د کتار په سر او پای او یوې بلې غاړې ته ګمارل شوي کسان څک غوږونه بیدار بیدار شا اوم خ ته ګوري چې دغه ټولې ننداري اوس د مارجه والو لپاره د یوې کمیډي مشغولا ښه غوره کړې.

## اولس له یرغلګروسره سخت ضد راخیستی

د مارجې اولس لکه څنګه چې یې تمه وه دیرغلګرو په وړاندې یې سخت نفرت ښکاره کړی او د دوی هره دسیسه یې ورشنډه کړې. امریکایانو د مرستندویه ادارو له لاري څوځله هڅه کړې چې خلک د پیسو له لارې د ځان کړي، مګر تراوسه یي دغه ډول ټولې هڅې ناکامۍ شوي دي.

هغه څوسوه ماشینونه چې د خلکو د غولولو لپاره راوړل شوي وو، تراوسه همداسي خره پراته دي او هیڅوک یې هم نه غواړي. ډېر ځله امریکایانو قومي مشران ورغوښتي او ځیني امدادي توکي یي په زور وربارکړي، مګر مشرانو چې راوړي ټول یې سوځولي دي. د وخت په تیریدو سره اوس د ولسي مشرانو له زړونو هم پخوانۍ رعب لوړ شوی او په مخامخ غونډو کې یې امریکایان او داخلي ګوډاګیان په بیابیا سخت ترټلي او په ښکنځلو لمانځلي دي. د یوه قومي مشر له قوله چې اوس امریکایان له دې اړخه هم له لویې ستونزې سره مخ دي ځکه عام خلک او مشران که ورته هرڅومره ترخې خبرې کوي دوی ورته د مجبوریت په خندا ځواب ورکوي. ځکه دوی پوهیږي چې د غبرګون ښودل ښایي حالات نور هم کړکیچن کړي. د ولسي نفرت یو لامل دا هم دی چې دوی زیاتره قرارګاوې په عامه سیمو کې جوړې کړي دي. که په امریکایانو د ګزمي په مهال ډزې وشي نو بې پوښتنې په پردیو کورو ورننوځي او دستي بامونو ته خیژي.

په مارجه کې په دنده بوخت یوه داخلي پوځي سیمه ییزو خلکوته ویلي چې په مارجه کې که همدومره نور عسکر ځای په ځای شي هم کامیابي نه

شوپيداکولای، ځکه خلک يي مونږ نه غواړي د ده په وينا هره ورځ د خلکو د دروازو تر مخه په مونږ ماينونو الوځي مگر خلک يي ښخوونکي نه راپه گوته کوي.

## د مجاهدينو د عملياتو نوعيت او موثريت په ښه کيدو دی

په مارجه کې چې په لومړيو کې مجاهدينو يوازې له ځمکنيو چاودنو څخه کاراخيست، اوس يې د پخواپه نسبت پراخ تعرضي عمليات هم پيل کړي دي. همدا اوس په مارجه کې په مقاومت د بوختو مسلحو مجاهدينو شمير تر زرو تنو اوړي چې په دريو محاذونو کې تشکيل شوي دي. د مارجې په مرکزي ساحو کې، چې د دښمن حضور په کې زيات دی، مجاهدين چريکي فعاليت لري. مگرپه اطرافي سيمو لکه تريخ ناور، قاري صدي او سيستاني کې بيا په منظم ډول ښکاره گزمې لري د دښمن د گزمو په وړاندې د ماينونو نصبوونکي گروپونه هم په هره خوا د دښمن حرکات څاري. دغه راز په انفرادی ډزو د دښمن د عسکرو په نښه کوونکو مجاهدينو هم تراوسه دښمن ته د پام وړ تلفات اړولي. دغه نښه ويشتونکي عموما له لرې مسافې او په ځينو مواردو کې له ډير نږدې يعنی شل متری او ديرش متری څخه د دشمن پياده سرتيري په نښه کوي چې د خطا کيدوامکان يي ډير لږ وي.

مجاهدين وايي چې پر دښمن د دوی د دا ډول عملياتو رواني اغيز خورا دروند دی او اوس زياتره داخلي مورال بايللي عسکر له جگړې څخه د تيښتې لاره نيسي. د دوی په وينا دوی ځوځله داسې موارد ليدلي چې داخلي عسکرو خپلې وسلې او دريشی په غنمو او کروندو کې پرې ايښې او له ساده لباس څخه په استفاده يې د تيښتې لارې غوره کړې وي، چې دا حقيقت د مارجې د جگړې حالت په ښه توگه انځورولای شي.





## په صحرا باغ کې رښتيا څه تير شول؟

٦/جون/٢٠١٢

د ۱۴۳۳ هق کال د رجب د مياشتې په يوولسمه نيټه د خوست ولايت د صحراباغ په ستره امريکايي اډه باندې د اسلامي امارت د مجاهدينو لخوا يو لړ بريالي عمليات ترسره شول چې په ترڅ کې يې په گڼ شمير کې بهرنيو او داخلي عسکرو ته تلفات واوښتل.

سره له دې چې په صحرا باغ ترسره شوی ډلييز بريد دالفاروق عملياتو په لړ کې کم ساری و، خو دښمن د خپلې جنگي پاليسۍ له مخې د دې بريد په اړه حقائق او واقعيتونه په بشپړه توگه سانسور کړل او هيڅ لويې يا وړې رسنۍ ته يې اجازه ورنکړه چې د دې بريد د تلفاتو او پايلو په اړه رازونه افشاء کړي.

د خوست ولايت ځينو ميشتو خبريالانو د شخصي ارتباطاتو په لړ کې ويلي، چې د امريکايي سرتيرو غوښې او هډونه يې په خپلو سترگو ليدلي چې د درنې چاودنې له امله له هډې څخه يوې او بلې خوا ته خپاره شوي وو، خو دا چې د بهرنيو او کورنيو چارواکو لخوا ورباندې سخت بنديز نافذ شوی، نه شي کولای په مطبوعاتو کې په دې اړه واقعيتونه نشر کړي.

دا چې د دې پيښې واقعيت څنگه و؟ شايد په الاماره ويب پاڼه کې مو په دې اړه په هماغو شيبو کې لومړني معلومات لوستي وي، په دې راپور کې هڅه کوو چې د دې تاريخي بريد او سترې کفر ځپونکي معرکې په اړه تفصيلات درسره شريک کړو. په دې اړه مو د دې تندريز بريد طراح او تنظيموونکی حافظ بدر الدين

حقاني راغړولی چې را روان تفصیلات ټول د نوموړي د معلوماتو په بنسټ ارائه کیږي.

## د عملیاتو قبلي ترتیبات

د صحراباغ امریکایي اډه چې له بګرام او کندهار وروسته په افغانستان کې د امریکایانو دریمهستره اډه ده، د خوست ښار په ختیځ کې موقعیت لري. د دې اډې په اړه ویل کیږي چې په یوه وخت په کې تر لس زرو ډېر بهرني سرتیري اوسیږي. امریکایان په کې ستر هوایي ډګر، تعلیمي مراکز او استخباراتي ادارات لري. د دې اډې وظیفوي حساسیت ته په پام سره یې ساتنه هم خورا سخته کیږي، له هرې خورا پرې اغزن موانع او ریګي جوالونه راګرځول شوي دي، دغه راز یې د مختلفو څارګرو وسائلو په توسط هم څارنه کیږي.

څرنګه چې دا اډه د دښمن خورا مهم او ستراتیژیک مرکز دی، مجاهدین تل په دې هڅه کې وو ترڅو ورباندې عملیات ترسره کړي. سره له دې چې له دې وړاندې هم په دې اډه بیلابیل توغندویي او فدایي بریدونه ترسره شوي وو، مګر دا ځل مجاهدینو کوښښ وکړ چې له نویو تاکتیکونو په استفاده په دښمن یو مؤثر او وژونکی برید وکړي.

په دې توګه مجاهدینو د خپلو دقیقو اطلاعاتو په مټ دا وموندله، چې د صحراباغ اډې په جنوبي اړخ کې د امریکایي سرتیرو د ډوډۍ خوړلو سالونونه او د اوسیدلو ځینې تاسیسات (خیمې او لرګین اطاقونه) شته. دغه راز د الوتکو د دریدلو ځای هم همدلته نږدې دی، په همدې استقامت د اډې جنوبي اړخ ته نږدې د کجیري کلی دی. دلته یوه فرعي لاره ده چې د کجیرې کلي څخه راوځي له اډې سره په پنځوس مترۍ کې تیریږي. له لارې ها خوا تر اډې پورې پټې دي چې موټر کولای شي حرکت په کې وکړي، په دې توګه له هر اړخیزې بر رسي





وروسته معلومه شوه، چې د ورځې په یوه بجه هغه وخت چې د اډې د داخل په راستورانتونو کې د امریکایانو د ډوډۍ خوړلو وخت وي، که چیرې له همدې دیوال سره متصل درنه چاودنه وشي، نو د اډې په داخل کې په لرګینو کوټو او خیمو کې رایوځای شویو امریکایانو ته درونډ زیان اړولی شي.

له همدې ځایه د عملیاتو لپاره ترتیبات پیل شول. د امریکایي تاسیساتو او سرتیرو د له منځه وړلو لپاره له ټیلر موټر نه په استفاده یو قوي موټر بم جوړ کړای شو، چې ۸ ټنه پوټاشیم کلورایډ، دوه ټنه TNT بارود، ۲۰ بنډله پریمي کاټ او څو د ټانګ ضد ماینونه په کې کاریدلي وو، چې د چاودیدونکو توکو مجموعي وزن یې ۱۰ ټنو ته رسیده. د دې لپاره چې د اډې په جنوب کې د کجیرې کلي اولسي خلکو ته مرګ ژوبله ونه رسیږي، د اسلامي امارت د تخنیک کارانو لخوا دغه ستر موټر بم په توجیهي بڼه جوړ شو، یعني په داسې ډول چې زور او ضربه به یې ټول د امریکایي اډې په خوا ځي او نورو خواوو ته به د پاموړ زیان نه اړوي.

دغه راز په امریکایي اډې د برید لپاره لس تنه روزل شوي فدایان چې ۲ تنه راکټ چیان (هریو له ۱۵ مرمیو، ۱ توپانچې او ګرنیټونو سره) ۲ تنه د پیکا چلوونکي (هریو له یو نیم زر مرمیو سره چې اکثره یې زري وې، ۱ توپانچې او لاسي بمونو سره) او ٦ تنه د کلاشینکوف او نارنجک انداز والا (چې له هر یوه سره ۲۰ نارنجک ۱۱ شاجوره د کلاشینکوف مرمۍ او ترلسو ډېر لاسي بمونه ورسره وو) دا مجهز فدایان دې لپاره آماده شول چې له چاودنې وروسته سمدستي په اډه ورننوځي او په سربداله امریکایي عسکرو مخامخ بریدونه پیل کړي. د دې لپاره چې په فدایانو د چاودنې دوړې او لوګي بداغیز ونکړي، ټولو ته ځانګړې ماسکونه او بندې عینکې ورکړل شوې، دغه راز په دې خاطر چې په سمه توګه تر هدفه ځان ورسوي، د امریکایي پوځیانو په شان لباسونه او ظاهري ډول ورته انتخاب شو.

ځرنګه چې په دې اډه کې تقريبا د زرو په شاوخوا کې داخلي غداران د ترجمانانو، ساتونکو، خدمتګارانو، جاسوسانو او په نورو نومونه کار کوي، نو د دا ډول بريدونو په مهال زياتره دغه کسان د اډې لويديځې دروازې ته ځان رسوي او هلته ترمراقبت لاندې ساتل کيږي. په دې ځای کې د همدې داخلي مؤظفينو د موټرو او موټرسايکلو پارک ځای هم دی، چې هر سهار په سلګونو موټر او موټر سايکل په کې دروي او مازديګر بيرته پرې خپلو کورونو ته ځي. د اسلامي امارت مجاهدينو په همدې افغاني ګوډاګيانو د ګوزار لپاره يو موټر سايکل په ډېرو قوي چاوديدونکو توکو (RDX) باندې مجهزکړ، ترڅو يې د عملياتو په ورځ د داخلي ارتباطيانو په واسطه په همدې ځای کې ودرول شي او بيا د ريموټ يا ټايمر په واسطه په مناسب فرصت انفجار ورکړي.

د دې لپاره چې په دښمن ګوزار نور هم موثر شي مجاهدينو له دريو خواوو ځخه درې درې د BM۱۲ميزايل هم د ګوزار لپاره اماده کړل، ترڅو د عملياتو په مهال په اډه باندې فير شي.

## دعملياتو تطبيق

د ۱۴۳۳ هق کال د رجب د مياشتې په يوولسمه نيټه د عملياتو لپاره ټول ترتيبات نهايي شوي وو او همدا ورځ د بريدلپاره ټاکل شوې وه، د ورځې په پيل کې د امريکايي قرارګاه په شاوخوا کې سختې ګزمې او تلاشۍ روانې وې، چې په پيل کې خو يې مجاهدينو ته د عملياتو د اجراء په اړه شک ورواچاوه. د دې مشکل د رفع لپاره مجاهدينو په پرله پسې توګه دعاګانو او د الله تعالی په دربار کې زاريو او عجز ته توجه وکړه تر څو دا عمليات له مشکل سره مخامخ نه شي. د الله تعالی فضل و ځومره چې د مجاهدينو لخوا د عملياتو لپاره ټاکل شوی وخت (ماسپښين يوه بجه) رانږدې کيده، همدومره د دښمن ګزمې او تلاشۍ کميدې او ختميدې





تردې چې د عملياتو تر ټاکل شوي وخته ټول امريکايي عسکراو ټانګونه د اډې له شاوخوا نه ورټول شول او اډې ته ننوتل.

د پکتيا ولايت اوسيدونکی مولوي صاحب شمس الله چې د خليج په هيوادونو کې عصري ژوند، تجارت، دنيايي عيش او نوش او د څلورو اولادونو پلرنۍ مينه يې د الله تعالی په لار کې د استشهاد له مينې قربان کړي وو، په دې ورځ يې د موټر بم د انفجار مسؤليت په غاړه و. نوموړي چې په سيمه کې پوره بلديت درلود، په ډېر اطمينان يې موټر بم امريکايي اډې ته ورساوه او له پروګرام سره سم يې په خپل مناسب وخت انفجار ورکړ. دا انفجار معمولي انفجار نه و، د لس ټنه بارودو له انفجار سره د امريکايانو مستهدف تاسيسات چې دا مهال په کې امريکايان په ډوډۍ خوړلو بوخت وو له بنسټه ونړيدل. د اډې په ځينو برخو کې اور ولګيد او هغه پوځي ترانسپورتي الوتکه چې له انفجار څو دقيقې وړاندې همدلته نږدې پارک شوې وه، په بشپړه توګه ويجاړه شوه.

له انفجار سمدستي وروسته لس تنه مسلح فدايان (عظيم خان د پکتيا، محمدنعيم، عتيق الله، محمديعقوب ابراهيمي او کريم الله د غزني د ګيلان، ذبيح الله شبير د غزني د مقر، حافظ سيف الله د پکتيکا د خوشامند، امداد الله د پکتيکا د وازيخوا، عبد الله د ننګرهار او عبدالرحمن د لوګر اوسيدونکي) چې په مناسب فرصت په خپل فلاينګ کوچ موټر کې همدې سيمې ته رارسيدلي او منتظر وو، خپل موټر ته يې اور ورکړ او په خورا لوی زړه او متينو ګامونو په امريکايي اډه ورننوتل. له دې صحنې ځخه اخيستل شوي ويډيو ښيي چې د درانه انفجار له امله دښمن په خورا وراخطا او ترهيدلي حالت کې دی، د مجاهدينو له ورننوتو وروسته سره له دې چې د دښمن ځينې چورلکې هم په هوا کې شته خو ددشمن لخوا هيڅ فير نه کيږي، تردې چې لږ ځنډ وروسته فدايي مجاهدين خپلو اهدافو ته له

رسيدو بعد د نارنجک او پيکا په فيرونو سره جګړه پيلوي او په دښمن بريدونه کوي.

ځرنګه چې مجاهدين د امريکايي سرتيرو په لباس کې امريکايي قرارګاه ته ننوتي وو، له بريد وروسته دښمن په بشپړه توګه لاروركى كيږي، د مجاهدينو د رسا بريدونو په مقابل کې په ړندو ډزو لاس پورې کوي او چورلکې يې سره له دې چې په هوا کې دورې کوي، خو د بمبار لپاره هدف نه شي تشخيص كولاى. تردې چې څه ځنډ وروسته دښمن اعلان کوي، چې طالبانو د امريکايي سرتيرو په لباس کې په اډه بريد کړی، نو ځکه بايد پوځيان له خپلو ځايو حرکت ونه کړي او له ډېر احتياط څخه کار واخلي. همدا مهال د مجاهدينو د مخابروي کشف د مسؤلينو د معلوماتو له مخې له کابل څخه د ملي امنيت مسؤلين هم په ټول خوست کې افغان چارواکو ته خبرداری ورکوي، چې د دوی په وينا خارجي دوستان وايي: تر دوهم امر پورې څوک پوځي اقدام او حرکت ونه کړي ځکه طالبانو خورا ستر بريد کړی او موږ ته د دوست او دښمن تفکيک ګران شوی دی.

په دې توګه د ماسپښين له يوې بجې د اډې په منځ کې پيل شوې جګړه د مازديګر تر څلورنيمو بجو دوام کوي. تردې مهال ۴ تنه فدايان د شهادت لوړ مقام ته رسيږي او پاتې نور يې د دوهم بريد لپاره وخت سپموي. دا وخت امريکايانو اعلان وکړ چې عمليات پای ته ورسيدل، خو د دوی دا اعلان هغه مهال دروغ ثابت شو کله چې د ماښام له تيارې سره بيا په دوی د فداييانو لخوا بريدونه پيل شول، چې دشپې تر ۱۱ بجوروان وو.

د دې جګړې په مهال که له يوې خوا په اډه باندې اماده شوي توغندي پرله پسې لګيدل، بله خوا د مازديګر په پنځو بجو د اډې لويديځې دروازې ته څيرمه چيرته چې په لسګونه داخلي امريکايي اجيران راغونډ شوي وو، اماده شوي





موټرسايکل ته انفجار ورکړل شو، چې خورا درنه چاودنه يې رامنځته کړه. په دې چاودنه کې په سيمه کې موجود د دښمن تر ۱۷۰ پورې موټر سايکل او موټر يا په بشپړه توګه له منځه لاړل او يا هم تخريب شول، دغه راز ترشلو زيات کورني اجيران په کې ووژل شول.

په دې بريد کې د امريکايانو د تلفاتو په اړه ويل کيږي، چې ترسلګونو رسيږي. هغه دوه صالونونه چې په دې عملياتو کې بشپړ له منځه تللي ويل کيږي چې د ډوډۍ خوړلو په وخت به تر ۴۰۰ زيات امريکايي سرتيرې په کې پنډېدل، له دې علاوه د دوی نورو تاسيساتو ته هم سخت تلفات اوښتي، د عيني شاهدانو په قول له عملياتو وروسته څو امبولانسي الوتکو له اډې څخه ۱۸ ځله پروازونه کړي، چې مړه اوټپيان يې بګرام ته انتقال کړي دي، داپه داسې حال کې ده چې امريکايان په همدې اډه کې هم خورا ستر او مجهز پوځي روغتون لري.

ځرنګه چې دابريدپه خورا حساسه موقع شوی، چې له يوې خوا په امريکا کې د اوباما انتخاباتي تبليغاتي منډې ترړې روانې دي او له بلې خوا په نړيوالو ميډيا کې امريکايان په لويه سطحه د طالبانو د زور اوبه کولو لاپې وهي، نو ځکه دښمن ټوله هڅه وکړه چې د دې بريد په اړه حقائق له عامه انظارو پټ وساتي. که واقعيت ته وګورو ښايي دوی تر يوه حده وکړای شي د دې پيښې مطبوعاتي انګازه کنترول کړي، خو د پيښې اصلي ماهيت چې اوس واقع شوی دی هيڅکله هم نه شي بدلولی. په دې بريد کې چې کوم امريکايي سرتيري وژل شوي هغه اوس مړه دي چې په دروغجنو تبليغاتو او خبرو به کله هم راژوندي نه شي.

# آغاز گر جنگ کیست و راه آبرومندانه چیست؟؟

۵/ اکتوبر /۲۰۱۶ میلادي

در بروکسل پایتخت بلژیک کانفرانس جهانی در رابطه به موضوع افغانستان در جریان است. نمایندگان هفتاد کشور مختلف جهان بعلاوه هیئت های دهها سازمان مدنی و غیردولتی با هم جمع شده اند، تا در مورد مسئله افغانستان بخصوص کمک های مالی و نظامی به حکومت کابل با هم بحث و گفتگو نمایند.

امروز روز سخنرانی ها و یکی از روزهای مهم کانفرانس متذکره بود. وزیر خارجه ایالات متحده امریکا جان کیری یکی از کسانی بود که امروز اظهار مافی الضمیر خود را در خدمت شرکت کنندگان کانفرانس بعرض گذاشت. سخنان جان کیری طولانی بود اما یکی از نقاط مهم که رسانه های جهانی آن را جلوه دادند و بحیث سرخط خبری برآن پرداختند، این بود که جان کیری خطاب به طالبان افغانستان گفت (طالبان افغانستان باید بفهمند که این جنگ که از سوی آنان آغاز شده است اختتام اش هم مسؤلیت طالبان است. یگانه راه آبرومندانه برای نجات ازین حالت آغاز گفتگو با حکومت کابل و وارد شدن به پروسۀ صلح حکومت افغانستان است. صلح با حکمتیار بهترین نمونه است تا طالبان ازآن بحیث الگو استفاده نمایند و وارد پروسۀ صلح و مذاکرات شوند.)

جان کیری بحیث وزیر خارجه امریکا در این کانفرانس بکمال زرنگی کوشش کرد تا مسؤلیت جنگ، کشتار و حالت ناگوار افغانستان را از دوش امریکا بدور اندازد و طالبان را بحیث آغازگران جنگ جاری معرفی نماید. این که جان کیری





بنمایندگی مقامات امریکایی خود را مجبور میداند تا مسؤلیت کردار خود را بدوش دیگران بیاندازد دلائل بسیار دارد. جنگ افغانستان زخم ناسور و مایۀ سرافگنی امریکا گشته است. از همان روز که امریکا با افغانها وارد میدان نبرد شده است، وجهۀ و حیث جهانی امریکا رو به افول است. دورۀ تک قطبی جهان به پایان رسیده است و حالا امریکا در عرصه های سیاسی، اقتصادی و نظم جهانی دچار حالت ناکامی و سرافگندگی شده است که این حقیقت بر همه گان مبرهن و آشکار است.

غیر از امریکا دیگر کشورهای همپیمانش هم از جنگ افغانستان بمقدار مداخله و دست درازی شان طعم ناخوشایند شکست چشیده و بتلفات سنگین جانی، مالی و حیثیتی روبرو شده اند. کشورهای همپیمان امریکا که نمایندگان شان در کانفرانس بروکسل حضور دارند از امریکا علل شکست و تلفات خود می پرسند و از همین جهت جان کیری وزیر خارجه امریکا سعی میکند تا بار مسؤلیت جنگ افغانستان را بدوش طالبان بیاندازد.

اما جهانیان و همۀ افغانها شاهد هستند که چه کسانی از دورترین قاره دنیا با طیاره ها، کروزها و تانک های خود آمدند و اینجا در این کشور غریب و بیچاره بر ضد یک ملت مظلوم و فقیر، اتش جنگ استعمار خود را برافروختند.

جهانیان شاهد هستند که طالبان حاضر بودند برای حل معضله مذاکرات نمایند و از تعقل و مفاهمه کار بگیرند. مگر این زمامداران قصر ـ سفید و شخصاجورج واکر بوش بود که همواره دم از جنگ و کشتار میزد و بجهانیان بعلانیه میگفت که یا همراه ما شوید و یا هم بادشمن ما.

این سخن جان کیری درست و بجا است که: آغاز گر جنگ مسؤلیت اختتام جنگ را هم دارد. اما سوال مهم این است که آغازگر جنگ کیست؟ کیها به کشور

دیگران تجاوز نموده و خـاک و فضـا آنهـا را تحـت اشـغال خـود در آورده انـد؟ آیـا افغانها علیه امریکاییها اعـلان جنـگ نمـوده انـد یـا امریکاییهـا کشـور و اسـتقلال افغانها را بگروگان گرفته اند؟

واضح است که این جنگ با شلیک راکت هـای امریکـایی از بحیـرۀ عـرب بـه افغانستان آغاز شده است و مسؤلیت اختتام اش هـم متوجـه امریکـا و جنگـآوران همپیمانشان است.

جان کیری که آبروی کشوراش در خاور میانه، شرق اروپا و بسطح جهان بهـم ریخته است، حالا برای طالبـان راه آبرومندانـه نشـان میدهـد و فرمـایش دارد کـه طالبان هم بایدمثل گلبدین حکمتیار دست های تسلیمی خود را بالا کنند.

بنظر ما راه طالبان از اول تـا ایـن دم راه آبرومندانـه و راه عـزت و سربلنـدی است. طالبان برای آزادی و حاکمیت اسلامی جهاد و مقاومت میکنند. که دفاع از دین و وطن خود از مقـدس تـرین و پرافتخـارترین کارنامـه هـای بشـری پنداشـته میشوند. جان کیری بجای اینکه برای طالبان راه ابرومندانه پیشکش کند بایـد در فکر آبرو و حیثیت خود باشد که همین حالا در افغانستان و تمام جهان در معرض سقوط قرار دارد.

راه آبرومندانه برای امریکاییها شاید فقط این باشد که ازافغانستان، از هـمان نقطۀ آغاز آبروریزی شان شروع نموده و تمام اغلاط فـاحش شـان کـه در دو دوهـۀ گذشته صورت گرفته انداصلاح نمایند و اولـتر از همـه اشـغالگران خـود را از ایـن کشور آبرومند خارج نمایند.





## له امریکا سره سوله د عقل، نقل او عاطفې تر منځ

۲۰۱٦/ سبمتبر/۲۳

د مؤمنو انسانانو په حیث زموږ کردار په ټوله کې له دریو مراجعو څخه فرمان اخلي. الهي شریعت، عقل او عواطف. شریعت یادیني لارښـوونې انسـان تـه د اللـه تعالی له لوري ابلاغ شوي او د پیغمبر علیه السلام په توسط ورته رسیدلي هـدایات دي چې انسان یې په تعین او تقرر کـې کـوم نقـش نـه لـري. امـا عقـل او عواطـف انساني جواهر دي چې دانسان په بدن کې حلول او تقرر لري.

عقل د انسان په بدن کې هغه قیمتي جوهردی چې له امله یې انسان لـه نـورو حیوانات رابېل او د مکلف مخلوق مقـام تـه لـوړ شـوی دی. عاطفـه یـا احسـاس د انسان په وجود کې یوه بله قریحه ده چې د انسان ژوندته تحرک او تلـون ورکـوي او انسان د همدردۍ، مینې، صله رحمي، ایثار او دغسې نـورو عـاطفي کړنـو پـه کولـو مجبوروي، که څه هم عقل یې تقاضا نه کوي.

په اصل کې عقل او عاطفه د انسان لپاره دوه وزر دي چې په برکت یـې انسـان کولای شي د حیواناتو له ټولي څخه پـرواز وکـړي او د اشرف المخلوقـات مقـام تـه پورته شي. د دې پرواز په لړ کې عقل انسان ته د منطقي ادارک، تحلیل او محاسبې ځواک ورکوي او عواطف ورته هیجان، تحرک او ولوله ورکوي تر څو د انسـانیت پـه مزله کې ستومانه نه شي.

خوعقل او عواطف که هرڅومره قیمتي جواهر دي اما اللـه تعـالی د انسـان د رهبرۍ ټول واک دوی ته نه دی سپارلی. بلکې د انساني عقل او عواطفو د توجیه او

رهنمايي لپاره يې شريعت راليږلی دی. د انسان د عقل تر ټولو لومړنۍ او تر ټولو مهمه وظيفه دا ده چې شارع (الله تعالی) او شريعت وپيژني، حقانيت يې درک کړي او بيا د شريعت په رڼا کې د عقل او عواطفو په وزرونو دانساني اعتلاء په لوري پرواز وکړي.

له معتزله وو پرته د نورو مؤمنانو عقيده دا ده چې د افعالو حسن او قبح (ښه والی او بدوالی) شرعي دی. يعني د انسان په تګلوري ټاکلو کې تر ټولو مهم رول د شريعت دی. شريعت چې کوم څه ښه يا بد وبلل هغه همداسې دي اګر که انساني عقل يا عاطفه ور باندې بالعکس حکم کوي. مثلا د واده کړي مکلف زناکار انسان په ډبرو وژل يا رجم د شريعت له نګاه يو ښه او لازم عمل دی اما د ځينو خلکو انساني عاطفه حکم کوي چې دا سخت زړي او قساوت دی. دلته چې عاطفه له شريعت سره په مقابل کې درېږي عاطفه ناچله بلل کيږي ځکه تر ټولو ټاکوونکی لارښود شريعت دی چې د افعالو ښه والی او بدوالی ټاکي.

راځو له امريکايي طاغوت سره د جنګ اوسولې مسئلې ته. کټ مټ د رجم يا سنګسار د مسئلې په شان د امريکايي طاغوت په خلاف جهاد هم د ډېرو له انده د شريعت، عقل او عاطفې تر منځ په يوه متناقض فيها قضيه بدل شوی دی. ځکه: شريعت وايي جهاد فرض دی. امريکا او صليبي ملګرو يې په افغانستان او نورو اسلامي خاورو يرغل کړی دی، د محاربو کفارو د مسلح تجاوز په صورت کې په نر او ښځه. غلام او آزاد ټولو مؤمنانو باندې جهاد فرض عين ګرځي. ځکه د مسلمان يو مکلفيت همدا دی چې د الله تعالی د دښمنانو په مقابل کې قتال وکړي او مستضعف مؤمنين د کفر او کفارو له شر او تلوث څخه وساتي. نو بناء د کفر په مقابل کې جګړه ښه عمل دی او کفارو ته سرټيټی که څه هم د سولې په عنوان وي قبيح عمل دی.





عقل وايي: امريکايان ډېر په قوت کې دي، په سياست، اقتصاد، نظامي ځواک، تکنالوژۍ او نورو ډګرونو کې ورسره د مسلمانانو ځواک د پرتلې وړ نه دی. بله دا چې په جګړه کې مؤمنانو ته شايد ډېر زيان ورسيږي او وځپل شي که خبره د عقلي محاسبې شي نودا جنګ ګټلی نه شي نو ځکه ښه داده چې لاس ترې واخلي.

عاطفه وايي: جنګ دې ورک شي رنګ دې ورک شي. موږ سوله غواړو. په هرصورت او هر قيمت يې غواړو، جنګ د انسانانو کار نه دی، د دنيا ټول مادي او معنوي ارزښتونه که راجمع کړې بياهم په دې نه ارزي چې د ګټلو لپاره يې يو ځاځکی وينه تويه شي. له ادمه تردې دمه واقعي انسانان يوازې منډيلا، ګاندي او غفار خان وو چې د عدم تشدد په نظريه يې باور درلود. امريکايان که د مخ په يوه خوا څپيړه درکوي ته بايد ورته بله خوا واړوې او ورته ووايې چې يوه بله څپيړه مې هم ووهه. د امريکايانو په خلاف جنګ د انساني عاطفې له رويه سوچ ناروا او قبيح عمل دی.

پايله

اوس نو اساسي سوال دا دی چې په دغسې درى لارې کې د واقع کيدو په مهال به سړی څه کوي؟ هغوی چې په دين باور نه لري او يا هغوی چې باور ورباندې لري خو يوازې په تذکره کې د مسلمان ليکلو تر حده. نور په دې عقيده نه لري چې د انسان د رهنمايي تر ټولو اساسي او مهم ترين لارښود دين او شريعت دی. دغه وړ بي دينه کسان چې هر څه کوي او په هره تله يې تلي هغه د دوی کار دی زما خبره دوی ته متوجه نه ده.

اما هغه کسان چې په دين واقعي باور لري او دين ورته د لارښوونې تر ټولو عالي سرچينه بريښي. هغوی د شريعت له نګاه مکلف دي چې د شريعت، عقل او عاطفې د تناقض په صورت کې يوازې د شريعت ومني او بس. ځکه له ديني

ليدلوري له صريحو شرعي لاښوونو سره د تقابل په صورت کې عقل او عاطفه دواړه ناچله ګرځي.

دا چې نن سبا ډېر د جهاد او اسلام پروني دعوه داران وينو، هغوی چې ځانونه اسلامپال هم بولي او بيا هم د سولې په عنوان اشغالګرو ته د يوه طرفه تنزل او تسليمۍ لپاره تبليغاتي مبارزه کوي. د دې اساسي علت دا دی چې دوی دغې قضيې ته اساسا د شريعت له عينکو نه دي کتلي. دوی ورته د عواطفو، وطن پالنې، نشنليزم او عدم تشدد دمردودې فلسفې له عينکو ګوري. نو ځکه د الله تعالی بندګان د بيرغي کفر په وړاندې له فرض عين جهاد څخه بې چون و چرا لاس اخيستلو ته هڅوي.

دغسې بګيلو او مورال بايللو اسلامپالو ته به وواييو چې په خپلو ايمانونو وويريږي. اوسنۍ مرحله د افغانستان د روان جهاد په ترڅ کې تر ټولو سخته مرحله ده. کفارو موږ په يرغل، توپ او ټانګ مات نکړای شوو. مګر د تبليغاتي او رواني چاپيريال سازۍ او تهاجم په توسط يې د ډېری اسلامپالو پښې ولړزولې. هغوی چې په ۲۰۰۳ م کال کې د امريکا د پنځه زره سرتيرو په وړاندې د جهاد کول فرض عين بلل اوس د امريکا د شل زره سرتيرو اوګټو پخو اډو په مقابل کې وسله اېښودل جائز بولي.

دلته پوښتنه دا راپورته کيږي چې د دې پنځلس کلن جهاد هدف او فلسفه بالاخره څه وه؟ ولې وشو او ولې پای ته ورسول شو؟؟

په پای کې د ملا محمد عمر مجاهد هغه خبره را تکراروم: چا چې له دين سره جفا او خيانت کړی دی لوی خدای له ذلت او رسوايي سره مخامخ کړي دي.

نو له ذلته ځانونه وساتئ!





# د شوراب پرل هاربر

۱۷/ سپتمبر/۲۰۱۲

پرل هاربر په تاريخي لحاظ په امريکا تر ټولو ستر او زيان اړونکی بريد بلل کيږي. دا بريد چې د جاپان لخوا په ارام سمندر کې د امريکا په يوه ستره سمندري اډه ناڅاپه ترسره شوی و، امريکايي پوځ ته يې خورا دروند ځاني او مالي زيان اړولی و.

له هغه راپديخوا چې کله هم په امريکايانو دروند او ناڅاپي وار شوی، نو مطبوعات ورته د پرل هاربر اصطلاح کاروي، څو کاله وړاندې چې په خوست کې يوه مجاهد د CIA ګڼ کارکوونکي په فدايي بريد کې ووژل نو ځينو رسنيو دا پېښه د خوست پرل هاربر وبلله.

په داسې حال کې چې په خوست کې په امريکايي اډه ساليرنو باندې د مجاهدينو د ستر او ځيونکي بريد يوازې څو مياشتې تيريږي، د اسلامي امارت مجاهدين د الله تعالی په مرسته توانيدلي چې د وخت فرعوني ځواکونه برتانيا او امريکا په هلمند کې له يوه بل پرل هاربر سره مخامخ کړي.

د مجاهدينو دا بريد چې امريکا او برتانيا په تيره يوولس کلنه جګړه کې تر ټولو منظم، تاکتيکي، مؤثر او زيان اړونکی بللی دی، د هلمند ولايت په شوراب کې د امريکايي او برتانوي ځواکونو په تر ټولو ستره اډه ترسره شو، چې په ترڅ کې دپرل هاربر د حملې غوندې د امريکا او برتانيا ګڼې جنګي الوتکې، چورلکې، د سوخت ذخيرې او نور پوځي امکانات له منځه لاړل او په دروند ځاني زيان سربيره ورته په

ميليونونو ډالره مالي زيان هم واوښت. دا چې د شوراب پرل هاربر څنگه صورت ومومند د پيښې سياق او سباق په لاندې ډول بيانيږي.

## د شوراب پوځي قرارگاه

د هلمند د مركز لشكرگاه په شمال لويديځ كې د واشير ولسوالۍ په مربوطاتو كې پرته د شوراب قرارگاه چې بهرنيان يې **Camp Bastion** بولي په افغانستان كې د بهرنيو يرغلگرو له لويو او خورا مهمو اډو شميرل كيږي.

سره له دې چې د شوراب په اډه كې امريكايان هم اوسي خو دا اډه په افغانستان كې د برتانويانو اساسي او مركزي اډه ده، چې په ۲۰۰٦ ميلادي كال كې تاسيس شوېده. برتانويان وايي دا اډه له دوهم نړيوال جنگ وروسته له برتانيې بهر د دوی تر ټولو ستره جوړه شوې پوځي اډه ده، چې د ۲۸۰۰۰ سرتيرو او كاركوونكو د اوسيدنې امكانات لري. همداوس تقريبا ۱٦ زره بهرني او داخلي عسكر په كې اوسي او روزانه ترې ٦۰۰ د الوتكو او چورلكو پروازونه كيږي.

د شوراب پوځي اډه چې د چينوک او اپاچي چورلكو، بوينگ الوتكو، جټ جنگي او نورو بم غورځوونكو مختلفو طيارو د الوت كرښې او پاركځايونه، له دې علاوه پوځي هسپتال، زندان او د پوځيانو د اوسيدونې پراخ كمپونه لري، د لومړي او دوهم كمپ په نامه په دوو برخو ويشل شوې ده، چې په دوهم نمبر كمپ كې يې زياتره امريكايان، ډنماركيان دغه راز د استونيا او ړ كابل رژيم د اردو سرتيري اوسيږي.

د برتانيې پخواني ولسمشر ـ ټوني بلر د ۲۰۰٦ كال په نومبر كې د دې اډې د ليدنې په مهال دا اډه (يوه فوق العاده دښته) بللې وه. ټوني بلير چې د يوه برتانوي له دريځه د افغانستان له اقليم سره نابلده و هغه وخت يې په خورا غرور ويلي و چې (د يويشتمې پيړۍ سرنوشت به له دې دښتې څخه ټاكل كيږي) خو د نوموړي له هغې لاپې شپږ كال وروسته د برتانيې دفاع وزير فليپ هامونډ له همدې كمپ څخه د ليدنې په مهال اعلان وكړ، چې برتانوي عسكر به ډېر زر په يو مخيز ډول له افغانستان





څخه پښې سپكې كړي او ۲۰۱۴ كال ته به انتظار ونه كړي. د هامونډ له دې اعلان په شمار څو ورځې وروسته د برتانويانو او امريكايانو دا مهمه اډه د مجاهدينو تر يو داسې تاكتيكي او اغيزمن بريد لاندې راغله چې ښايي دښمن يې پخوا كله هم اټكل نه و كړی.

## د شوراب په پوځي اډه فدايي عمليات

څو ورځې وړاندې د برتانيې د شاهي كورنۍ دريم شخص (شهزاده هاري) افغانستان ته راغی، ترڅو په هلمند كې خپل پوځي ماموريت ترسره كړي. د طالبانو وياند ذبيح الله مجاهد له ډيلي ټيلگراف ورځپاڼې سره په مركه نوموړی يو مهم پوځي هدف وباله او ويې ويل چې په ټولو امكاناتو به هڅه وكړي نوموړی له منځه يوسي.

بل خوا په دې وروستيو كې په امريكا كې پادري تيري جونز يو بوړنووونكی فلم خپور كړ، چې د اسلام د پيغمبر حضرت محمد صلى الله عليه وسلم بي حرمتي په كې شوې وه. طالبانو د يوې اعلاميې په خپرولو سره د امريكايي تبعه تيري جونز دا عمل په سختو ټكو وغانده او گواښ يې وكړ چې د دې عمل انتقام به له امريكايي پوځ څخه واخلي.

د همدې دواړو تعهداتو د ترسره كولو لپاره د طالبانو لپاره تر ټولو وړ هدف د شوراب پوځي قرارگاه وه. ځكه په دې اډه كې كه له يوې خوا د نورو برتانوي عسكرو ترڅنگ شهزاده هري شتون درلود، له بلې خوا په زرگونو امريكايي عسكر هم په كې ميشت وو او طالبانو كولای شوای په يوه غشي دوه مرغۍ ښكار كړي.

د همدې لپاره مجاهدينو وپتېيله ترڅو په هلمند كې ديرغلگرو په دې سمبوليكه اډه مؤثر عمليات ترسره كړي.

په شوراب د بريد لپاره د مجاهدينو فدايي كنډک ترتيبات پيل كړل، د عملياتو لپاره پنځلس تنو فدايي مجاهدينو امادگي ښوده (محمد امين، زاهد او فتح خان د كندهار، محمدهاشم عابد د غزني د گيلان، نذيراحمد د كندهار د پنجوايي، نوراحمد

د کندهار د ښار، بشیراحمد د کندهار، محمد د کندهار، بلال د کندهار د ارغنداب، ابوذر د لوگر، حمزه د لوگر، عبدالقیوم د غزني د گیلان، عبد الله د کندهار د ژړی، حمد الله د زابل او عزت الله د زابل)

دې اتلو او د محبوب پیغمبر صلی الله علیه وسلم په مینه مستو شازلمیو تیاري وښوده، ترڅو په شوراب کې د پنډو کفارو په ستراتیژیکه اډه هجوم وروړي او یو ځل بیا د خپل ایمان او همت ننداره ورته وښیي.

د فدایانو له جملې ۳ تنه په راکټ لانچرو مسلح وو، چې له هر یوه سره ۱۱ د راکټ لانچر مرمۍ او توپانچې وې، ۳ تنه نور په ثقیل ماشیندار یا پیکا مسلح وو چې له هریوه سره د پیکا ۱۱ سوه مرمۍ او توپانچې وې. پاتې نور په کلاشینکوفونو مسلح وو چې له هریوه سره ۷۰۰ مرمۍ او شپږ شپږ لاسي بمونه وو. په دې سربیره له فدایانو سره یوه اندازه چاودیدونکي توکي او درانه ماینونه هم وو چې په مټ یې په قرارگاه کې دننه ستري چاودنې رامنځته شوې.

فدایان په دریو گروپونو ویشل شوي وو: د قرارگاه په ښي اړخ برید ته د حضرت بلال بن رباح گروپ گمارل شوی و، په منځنۍ برخه د برید لپاره د حضرت عمر فاروق گروپ او په چپه خوا د برید لپاره د حضرت خالد بن ولید گروپ گمارل شوی و. د دې برید تنظیموونکي مجاهدین د اوس لپاره دا راز نه افشاء کوي چې فدایان څرنگه وتوانیدل، په داسې دښتي سیمه کې د دښمن له ټولو څارگرو وسائلو او گزمو سره سره ځان د یرغلگرو تر ټولو مهمې قرارگاه ته ورسوي، له ټولو خندقونو او جوالونو تیر شي اغزن سیمونه او جالونه وشلوي او مخامخ په پوځي اهدافو بریدونه پیل کړي.

د ۱۵/۹/۲۰۱۲ مه د شنبې په شپه پوره لس بجې وې چې فدایان پرته له کوم خنډ څخه خپلو اهدافو ته ورسیدل او په برتانوي او امریکایي عسکرو یې بریدونه پیل کړل. فدایانو د برید له پیل وروسته په ټولو برخو کې په پوره قوت جگړې ته دوام ورکړ، د عمرفاروق استشهادي گروپ د امریکایي پوځیانو د اوسیدو په خیمو برید وکړ، خیمې





یې وسوزولې او د قرارگاه زړه ته یې ځان ورساوه. په نورو برخو کې هم فدایي اتلانو په پرلپسې ډول په امریکایي کمپونو، تاسیساتو، پوځیانو، ناستو الوتکو، چورلکو او پوځي ډیپوگانو باندې بریدونه وکړل. مجاهدینو د دښمن د تیلو درې ذخیرې والوزولې چې تر سبا غرمې یې لمبې پورته کیدلې.

د اډې په مابین کې مجاهدینود دښمن د خیمو ترسوزولو وروسته د AV_8B هریر جټ الوتکو پارک ځای ته ځانونه ورسول او په ولاړو الوتکو یې د راکټ لانچرو بریدونه او چاودنې پیل کړې. د اشغالگرو لخوا مطبوعاتو ته د ورکړل شویو معلوماتو په اساس په دې بریدونو کې په اډه کې ناستې د ناټو یوولس الوتکې په بشپړ ډول سوزول شوي او گڼې نورې زیانمنې شوي دي، دغه راز مجاهدینو د دښمن گڼ تاسیسات په بمونو والوځول او ناستې الوتکې او چورلکې یې په درنو وسلو په نښه کړې.

دبرید یوتنظیموونکی مجاهد وایي، د شپې ناوخته یې لیدل چې د اډې دننه تقریبا له یو کیلومتر مربع ساحې څخه د اور لمبې، لوگي او د چاودنو غړونه پورته کیدل. برید ماښام لس بجې پیل او سهار تر شپږو بجو یې (اته ساعته) دوام وکړ. د مجاهدینو د اطلاعاتو له مخې د برید په وړاندې د بهرنیو سرتیرو عکس العمل خورا پڅ او گډوډ و، دوی له یوه داسې برید سره مخامخ ول چې هیڅ اماده گي یې ورته نه درلوده، له بلې خوا د شپې تیارې له دوی څخه د برید د دفاع او ځان ساتنې فرصت اخیستی و. د سهار تر شپږو بجو پورې د تودې جگړې په ترڅ کې دښمن ته له سختو تلفاتو اړولو وروسته ټول مجاهدین په شهادت ورسیدل او دښمن د خپلو تلفاتو په نقل او پټولو پیل وکړ. د طالبانو ویاند قاري محمد یوسف احمدي الاماره ویب پاڼې ته وویل: د وروستیو دقیقو معلوماتو له مخې په دې ستر برید کې لږترلږه ۴۷ تنه بهرني عسکر وژل شوي دي چې دوه تنه یې لوړپوړې پوځي افسران دي. ۳۴ بهرني سرتیري ټپیان شوي دي او ۱۱ بیلابلې جټ الوتکې یې کاملا سوځول شوي دي. دغه راز د دښمن د تیلو ذخیرې او نورو پوځي تجهیزاتو ته هم سخت زیان اوښتی، دقاري محمد یوسف

احمدي په قول په عملیات کې ۱۵ واړه فدایان هم په شهادت رسیدلي (انا لله وانااليـه راجعون)

سره له دې چې د برید تلفات خورا ستر او له پټیدو وتلي وو، خو بیـا هـم دښـمن په مطبوعاتي برخه کې د تل غوندې هڅه وکړه، برید سطحي وښيي. دښـمن یـوازې د څو تنو سرتیرو وژ ل کیدل تایید کړل او ویې ویل چې د نورو ځاني او مـالي تلفـاتو پـه اړه په پلټنه بوخت دي، خو وروسته کرارکرار د پیښې جزیات رابرسیره شول.

## د برید په اړه څرګندونې

د برید په اړه د اسلامي امارت ویاند قاري محمد یوسف احمدي رسنیو ته وویـل چې حمله یې د امریکا لخوا د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د توهین د غـچ اخیسـتلو لپاره کړې ده او دغه مشـخص هـدف یـې ځکـه پـه نښـه کـړی، چـې دا د دښـمن یـوه ستراتیژیکه اډه وه او برتانوی شهزاد پرنس هري هم په همدې اډه کې و.

د برید له پای ته رسیدو څو ساعته وروسته د شوراب اخیسـتل شـوي ویـډیو پـه الاماره ویب پانه خپره شوه چې په نړیواله کچه یې ډېره توجه جلب کړه، نړیوالو رسنیو دا برید په تیرو یوولسو کلونو کې په یرغلګرو تر ټولو ستر برید وباله، چې دښمن ته یې سخت زیان اړولی.

د ناټو ویاند د یوې اعلامیې په خپرولو سره ومنله چې په برید کې یې ۸ AV_8B هریر جټ الـوتکې لـه منځـه تلـلي او سـوزول شـوي دي، دغـه راز دتیلـو درې سـترې ذخیرې، ٦ د الوتکو اوسپنیز پارک ځایونـه او ګـڼ نـور وسـائل یـې هـم پـه بشـپړ ډول سوزول شوي دي.

د امریکا چاپ نیویارک ټـایمز ورځپـاڼې د سـوزیدلو الوتکـو قیمـت ۲۰۰ میلیـون ډالره وښوده، خو یوه بې پرې احصائیه وایي چې په دې برید کـې امریکـا او برتانیـا تـه درې ملیارد ډالره مالي زیان رسیدلی. په دې سربیره یـې لسګونه عسـکر هـم مـړه او ټپیان شوي دي.





د برید په اړه ناټو په خپلو اعترافاتو کې ومنله، چې برید د هرکله په پرتله مـنظم، تاکیتکي او ترسره کوونکي یې ښه تربیه شوي وو، چې په پوره مهـارت یـې د شـوراب اډې ټول امنیتي او څارونکي حصارونه مات کړل او مخامخ یې پـه بهرنیـو ځواکونـو او الوتکو بریدونه پیل کړل.

د امریکا یوې بلې مشهورې ورځپاڼې (وال سټریټ ژورنال) د برید په اړه ولیکـل: طالبانو د دې بریدپه ترسره کولو سره په حقیقت کې له امریکـا څخـه غـچ واخیسـت. ورځپاڼې دې ته اشاره کړې چې طالبانو څو ورځې وړاندې ویلي وو چې د امریکا لخوا د توهین آمیز فلم د خپرولو غچ به اخلي، چې دا دی هماغه عهـد یـې پرځـای کـړ. د دې ورځپاڼې په باور طالبانو دب رتانوي شهزاده د راتګ په اړه خپله کړې خبره هم پرځـای کړه چې ویل یې نوموړی به هدف وګرځوو.

دا برید له دې امله هم د پرل هاربر له حملې سره تشبیه کیږي چې امریکایانو په کې یو ځل بیا په ګڼ شمیر جنګي الوتکې، چورلکې، د سوخت ذخیـرې او نـور جنګـي تجهیزات له لاسه ورکړل. د ناټو یوه ویاند د دې برید په اړه وویل: زموږ لپاره دا عادي ده چې کومه الوتکه مو د جګړې په میدان کې له منځـه لاړه شي، خـو د دې تصـور مـو هیڅکله نه و کړی چې الوتکو ته به مو په اډه کې دننـه دومـره پـراخ زیـان اوړي او لـه منځه به ځي.

# د شهيد احمدگل سرگذشت

۲۲/مي/۲۰۱۱

## له ماشومتوبه تر هوابازۍ

احمد گل له نن څخه ۵۰ کاله وړاندې کابل ښار ته نږدې د تره خېلو په کلي کې، د محمدگل تره خېل په کور کې وزېږېد. نوموړی لـه ماشوموالي د جسـماني ځـواک غوندې له پټو او فطري وړتیاوو هم برخمن و. د نوموړي د خپلوانو په وینا له وړوکوالي نه لکه څنگه چې الله تعالی روښانه اوجدي ځـيره، مضـبوط هډونـه، تـورې سـترگې او ښایسته بشره ورکړې وه، اراده او عزم یې هم په ټولو ژوند چارو کې آهنین و.

ماشوم احمد گل د څلورو کلونو و چې د خپل کلي په جومات کې یې د لومړني لارښود په توگه د مسجد ملاصاحب ته د شاگردۍ گونډه ماته کړه، په وړه ژبه یې د قران کریم زده کړه پیل کړه او له همدې ځایه یې دیني او وطني ننگ په زړه کې ځای وموند.

څنگه چې د نوموړي پلار د هماغه مهال په شاهي حکومت کې دولتي مـامور و، احمدگل شپږ کلن و چې پلار یې له تره خېلو څخه کابل ښار ته راکډه شو، په دې توگه له احمدگل نه د جومات زده کړې پاته شوې او خپلو لومړنیو او منځنیو زده کړو ته یې په کابل ښار کې دوام ورکړ.

احمدگل د منځنیو زده کړو له پای ته رسولو وروسته په ۱۳۵۴ هش کال د کابل په حربي پوهنتون کې داخله واخیسته او درې کاله وروسته ترې فارغ شو. لـه دې وروسته په هوايي پوهنتون کې داخل شو او دا چې د هوابازۍ له مسلک سره یې مینه وه، نو د پیلوټۍ دنده یې پیل کړه.





## له مرگ سره لوبې

احمدگل د افغانستان په خورا خطرناکو کلونو کې د پیلوټۍ دنده سرته رسوله، د خلقیانو د واک په وروستیو کلونو دغه راز، د مجاهدینو او وروسته د طالبانو د حکومت په ټوله دوره کې یې جنگي چورلکې الوځولې. په دې لړ کې د نوموړي چورلکه دوه ځله وغورځېده، لومړی ځل په پنجشیر کې او دوهم ځل د طالبانو د واکمنۍ په مهال د پروان په غوربند کې راولوېده، خو له دې دواړو خطرناکو پیښو احمد گل ژوندی ووت.

د نوموړي یو ملگری کیسه کوي، چې احمدگل سره له دې چې د کمونیستانو د واکمنۍ په مهال یې دولتي دنده اجراء کوله خو له روسي عسکرو څخه یې سخت نفرت درلود. نوموړی وایي: د ببرک کارمل د واکمنۍ په مهال له ډېرې مودې نه لیدلو وروسته مې یو وخت خپل ملگری احمدگل ولید چې په لکړو باندې روان دی او پښې یې ټپي شوي دي، ماپوښتنه ترې وکړه چې دا ولې؟ نوموړي خپله کیسه داسې راته تیره کړه: په پنجشیر کې مې د وظیفې په مهال چورلکه د مجاهدینو له خوا وویشتل شوه، او لکۍ یې اور واخیست (نوموړي په خندا وویل چې په دې وخت کې مې هم خپل کار وکړ او هسې راڅخه ونه غورځېده) احمدگل زیاته کړه چې دا مهال زما یقین و چې په څو شیبو کې به چورلکه سقوط وکړي، لاندې مې چې ځمکې ته وکتل، نو د روسي عسکرو یوه موقته قرارگاه زما له ساحې نه په څو متري کې پرته وه، په همدې وخت کې راپام شول، چې راځه د روسانو په خدمت کې د څوکاله مصروفیت کفاره په همدې وروستیو شیبو کې ادا کړه، لویدونکې چورلکه مې په هوا کې راوڅرخوله او د روسي عسکرو په قرارگاه مې ور برابره کړه، د احمدگل په وینا د دې غزا په نتیجه کې خدای پاک زه روغ وساتلم او یوازې مې پښې ماتې او د بدن ځینې برخې ټپي شوې، مگر گڼ شمیر روسي سرتیري مې له ځان سره ووژل. له دې پیښې وروسته نوموړی له روسي زخمي سرتیرو سره یوځای په عاجله توگه د پیښې له ځایه روغتون ته انتقال شو او زخمونه یې معالجه شول.

## هغه دوران چې احمدګل يې بدل کړ

د پيلوټ احمدګل قريبان او ملګري وايي، چې د طالبانو د واکمنۍ له راتګ وروسته، کله چې نوموړي د پيلوټ په توګه له اسلامي امارت سره دنده پيل او د هغوی کردار دين دوستی او وطن دوستي يې له نږدې وليدله، په نوموړي کې د تېر په پرتله بنسټيز بدلون راغی. د احمدګل ټول تعلق له مسجد، ديني احکامو او ديني علماء کرامو سره پيدا شو، د نوموړي د کورنۍ د غړو په وينا شهيداحمدګل دا وخت په خپل کورني ژوند کې ژور تحول راووست، خپل اولادونه يې ديني زده کړو او دين پالنې ته متوجه کړل او په خپله هم لوی عابد او د خدای عاشق انسان ترې جوړشو.

نوموړي ټول لمونځونه په جماعت اداکول او د اسلام هيڅ جزئي احکام يې هم نه پرېښودل. کله چې د طالبانو اسلامي امارت ونړېد، شهيداحمدګل هم د ډېرو خداي پالو او وطنپالو دولتي کارکوونکو غوندې له دولتي دندې لاس واخيست اوپه کور کيناست. په دې موده کې ترې بيا بيا د دندې اجراء کولو غوښتنه وشوه، خو ده رد کړه. وروسته د يوې ځانګړې انګيزې او نيت په اساس د پيلوټۍ دندې ته حاضر شو، چې دا په زړه کې کرلی راز او نيت يې د فاني ژوند په وروستۍ ورځ د ټولې دنيا په وړاندې افشاء کړ.

## د لوړو الوتونکی د فکر په ژورو کې

د شهيد پيلوټ احمدګل دوستان او قريبان وايي: احمدګل سره له دې چې دولتي دنده يې سرته رسوله مګر له امريکايي اشغاله راپديخوا يوه ژور سوچ په مخه کړی و، د هيواد په دې بد حالت سخت ځوريده، په هر مجلس کې يې له امريکايي اشغالګرو نه شکايت کاوه، په ځانګړي ډول د امريکايي چارواکو او مشاورينو په غرور او لوړتيا غوښتنه باندې ډېر خپه کېده. ده به ډېر ځله ويل چې





امريکايان تر روسانو هم بد او کبرجن اشغالګر دي، روسانو زموږ په چارو کې دومره مداخله نه کوله او نه يې موږ ته دومره په ټيټه کتل. امريکايانو خو له موږ نه، چې د دې ملک په پوځي ليکو کې کار کوو، غلامان جوړ کړي. دابه د نورو عامو افغانانو څه حال وي.

ډګروال احمدګل چې د کابل هوايي ډګر ته نږدې يې په هوايي قول اردو کې دنده اجرا کوله، سهار دندې ته تلو او ماښام بيرته د کابل په ښار کې خپل کورته راستنېده. د ده يو نږدې ملګری (د تګاب اوسيدونکی... ساپی) چې د ابتدايه او متوسطه زده کړو په مهال د ده همصنفي پاته شوی او په ډګروال شهيد احمدګل سربيره د نوموړي له کورنۍ سره هم نږدې شناخت لري وايي چې احمدګل مې د ده د حملې او شهادت له نيتې څو اوونۍ وړاندې يوه شپه راميلمه کړ، ماورسره مجلس کاوه، خو احمدګل يوه ژور سوچ په مخ کړی و، د پخوا غوندې يې آزاد مجلس نه کاوه، نوموړی به که غړيده يوازې يې دا ويل چې امريکايانو زموږ وطن اشغال کړی دی، هره ورځ د هيواد په مختلفو ولاياتو کې زموږ په وطنوالو بمباروونه کوي، له موږ سره هيڅ اختيار نشته او يوازې خپلې تنخواګانې نغدوو.

ساپی وايي چې دا خبرې راته غير عادي وبرېښيدې، خو ما هم اضافي بحث ورسره ونه کړ، سهارمې چې کله احمدګل رخصتاوه نو د پخوا په خلاف يې په ډېر ټينګار راته وويل چې ګوره ملګريه له کوچنيوالي مو ملګرتيا سره وپالله، هيله ده بخشش به راته کوې او په دعاګانو کې مو مه هيروه. ساپی وايي چې د احمدګل دې خبرو حيران کړم خو څه مې ورته ونه ويل او ډېر زړه مې پرې وسوزېد. دلته به نوره کيسه د شهيد احمدګل د همدې ملګري... ساپي له قوله رانقل کړو، چې د احمدګل د شهادت له پيښې وروسته د ده کور ته ورغلی او د شهيد احمدګل ميرمنې ورته جريان بيان کړی دی.

## د فاني ژوند وروستۍ شپه او د فراق شيبې

د۲۰۱۱ ميلادي کـال د اپرېـل ۲۷ مـه د چهارشـنبې شـپه پـه دې فـاني دنيـا د ډگروال احمدگل د ژوند وروستۍ شپه وه. د نوموړي ميرمن حکايت کوي: پـه دې شپه احمدگل بيخي په بل وضعيت کې و، د ماخوستن له لمانځه وروسـته تـر ډېـره په نفلي عبادت ولاړ و، وروسته يې د قرانکريم تلاوت پيل کړ او بيخي تر ډېـره يـې تلاوت کاوه. له دې بعد خپلې ميرمنې ته هم وايي چې نفلي عبـادات وکـړي، بيـا د لږ شيبې لپاره خوب کوي، خو ميرمن يې چې نيمه شپه راويښيږي وينې چې خاوند يې احمدگل د لوی رب په دربار کې په عبادت او دعاگانو بوخـت دی، تـردې چـې سهار کيږي. سهار نومـوړی لـه معمـول سره سـم مسـجد تـه ځـي او د جماعـت د لمانځه له ادا وروسته يو ځل بيا قرانکريم رااخلي او تلاوت پيلوي. په دې وخت کې يې ميرمن چای ورتـه راوړي، نومـوړی يـوه پيالـه چـای څښـي، خـو د پخـوا خـلاف ميرمنې ته وايي چې نن مې چای ته زړه نه کيږي، په دې وخـت کـې خپلـې لـور تـه وايي، چې د ځان مينځلو لپاره اوبه ورته تياري کړي، نوموړی حـمام تـه ځـي غسـل کوي او د خوشبويي لپاره عطر لگوي او وروسته بيـا د يـوې شـيبې لپـاره لـه خپلـې ميرمنې او اولادونه سره مجلس کوي. دا مهال خپل تر ټولو کوچنی زوی په بيـا بيـا په غيږ کې رااخلي په مخ باندې يې ښکلوي او مينه ورسره کوي.

ميرمن يې چې د ميـړه دا غيرمعمـول حرکـات وينـي پـه حيـرت ورتـه گـوري اوپوښتنه ترې کوي چې نن بيخي بل وړ يې خدای دې خير پيښوي، څه خو به پيښ شوي نه وي؟ طبعيت دې بدل دی. دی په خوشطبعي ورته وايي هيڅ کيسه نشـته، د هر وخت په نسبت اوس هوسايم، په همدې مهال خپله پوځي دريشي اغونـدي او د اولادونو په مخکې د خپلې ميگاروف توپانچې شاجورونه راخلاصـوي، لـه سره يـې صفا کوي او ټول له مرميو ډکوي.





دا مهال چې نور نو وظيفې ته د تللو وخت دی، لور يې غـواړي د تـل پـه شـان موټر ورته صفا کړي، خودی ورته وايي چې همداسې سپيره ښه دی، نن يې مـه صـفا کوه. په دې وخت کې هم بيا بيا خپل کوچنی زوی په غيږ کې راپورته کوي او حتی تر دې چې يو ځل د موټر په سيټ کې کينې خو د خپـل کـوچنی زوی سره د مينـې او ښکلولو لپاره بيا راکوزيږي. په آخر کې موټر ته خيژي او د موټر لـه سـيټ څخـه خپلې ميرمنې ته وايي: بخشش راته کـوه پـه ژونـد هـيڅ اعتبـار نشـته. ميـرمن پـه حيرت ترې پوښتي، خدای دې خير کړي څه خبره ده؟ او دی پـه لنـډو ورغبرگـوي چې په ژوند هيڅ اعتبار نشته خدای نخواسته موټر ټکر شي يا بل مشـکل پيـدا شي مطلب دعاگانې کوئ او بخشش راته کوئ. دا وخت يو ځـل بيـا پـه ژور نظـر خپـل اهل او اولادونو ته گوري او وروسته موټر ته حرکت ورکوي.

## د کابل هسک د تاريخي غزا ننداره کوي

ډگروال احمدگل په خپله ځانگړې دريشې کې، د خپلـې پرمختللـې ميگـاروف توپانچې له ډکو شاجورونو سره له کوره ووت. دا چې په لاره به يـې شـاهيني خيـال په کومو لوړو سر و؟ والله اعلم... خو مخامخ خپـل وظيفـه ځـای د کابـل د هـوايي ډگر په څنگ کې د هوايي قول اردو قومندانۍ ته ورغی. په دې قومندانـۍ کـې يـو ځانگړی محل و، چيرې چې د هوايي ځواک د رهبرۍ او تعليمي چارو په برخـه کـې مشاورين غربي چارواکي پنډيـدل او اوسيدل. احمـدگل خپـل مـوټر پـارک کـړ او سيده د خارجي مشـاورينو همـدې محـل تـه ورننـوت. د عينـي شـاهدانو پـه وينـا احمدگل لومړی د صالون په دروازه کې ناست بهرنی محافظ په ککرۍ وويشـت او دمرگ په خوب يې ويده کړ. په دې وخت کې چې په کوټه کې ناستو ۹ تنو لوړپوړو خارجي سلاکارانو وسله په لاس سړی وليد چـې د دوی محـافظ يـې وويشـت، ټولـو گمان وکړ چې بارودي واسکټ په تن فدايي مجاهد دی، نو ټولو د دې لپـاره چـې د

انفجار له پرخچو نه ځانونه په امان کړي، پړمخې پروت وکړ او انفجـار تـه منتظـر پاته شول. احمدګل چې د توپانچې شاجورونو يې ډک کړي وو، د همدې لحظـې پـه انتظار و. نوموړی له يوه سره پرې راسم شو، په نوبت يې د هر پراته خارجي پر ځټ توپانچه ورسر يښوله او ټک يې پرې کاوه، تر دې چې تر بله سره يې د ټولو سلاکارانو مغرورې ککرۍ وکوټلې او مرمۍ يې ترې وايستې. احمدګل چې کله له دغو کسـانو بيغمه کيږي، بهر راوځي او د پيښې ځای تـه پـه راتلونکـو نـورو خـارجي او داخـلي عسکرو بريد کوي، په دې ځای کې هم د دښمن پنځه شپږ تنـه عسـکر ولي او څـو تنه نور ټپيانوي. وروسته دی هم په هغه دفترکې چيرې چې يـې سـنګر نيـولی و، د اجل مرمۍ ته سيخيږي او د شهادت جام نوشوي.

د پيښې د يوه عيني شـاهد لـه قولـه د شـهيد ډګـروال احمـدګل تـره خپـل د شهادت صحنه هم عجيبه او زړه راښکونکې وه. نومـوړی چـې ويشـتل شـوی و پـه داسې حال کې په يوه ميز ورچپـه شـوی و، چـې ښـی لاس يـې تـر سر لانـدې و، پـه ورغوي کې يې وينه ډنډ شوې وه او ځيرې يې د موسکاحالات تمثيلاوه. (تقبله اللـه و أسکن روحه فی الخالدين)

## د تکبيرونو په شور کې د اتل وداعي مراسم

احمدګل له تندريز بريد وروسته خپله ښايسته او نوراني څيره هم، د شهادت په ګرمو وينو ولړله، د هوابازۍ لباس يې ابدي او تلپاتې جامه شوه او شـهيد جسـد يې د زخمي او قهريدلو مارانو (امريکايانو) لاس تـه ولوېـد. امريکـايي اشـغالګرو د نوموړي جسد تر يوې هفتې د ده کورنۍ ته ورنکړ او په يوه کانتينر کې يې وساته. امريکايان ډېر ځله د مجاهدينو د شهيدو مشرانو له جسدونو سره همدا چم کوي او ترهغو يې خپلو کورنيو ته نه ورکوي چې جسد بوی وکړي، ترڅو په عامو خلکـو کـې غلط برداشت مشهور کړي. خو د ډېری مجاهدينو غوندې د شـهيداحمدګل جسـد





هم نه يوازې چې بدبوی يې ونکړ بلکې ورځ تربلې يې تازګی زياتېـده او عطرورينـې وړمې يې شنلې. د می مياشتې په دريمه شـپه بهرنيـو ځواکونـو د شـهيد احمـدګل جسد د نوموړي کورنۍ ته وسپاره او په دې يې مأمور کړل چې په شپه شپه کې يـې خاورو ته وسپاري. مګر د نوموړي غيرتي کورنۍ او قوم د نومـوړی جنـازه تـر سبا اتو بجـو پـورې وځنډولـه چـې پـه دې لـړ کـې د کابـل او شـاوخوا سـيمو مشـهورو علماءکرامو او ګڼ شمير خلکو په جنازه کې ګډون وکړ. د نومـوړي جنـازه د ده پـه پلرني ټاټوبي تره خېلو کې خاورو ته وسپارل شوه. د عيني شاهدانو پـه وينـا پـه دې جنازه کې تقريبا ۱۵۰۰۰ تنه خلکو ګډون کړی وو او د تکبيرو په زمزمو کې يې زمـوږ د دې ستر اتل ګلګون جسد خاورو ته وسپاره.

انالله ونا اليه راجعون

روح دې ښاد او ياد دې تل وي

تامست نګردي نه کشي بار غم عشق

آرې شـتر مسـت کشــد بـار ګران را

# ژیړه ډبه

۹/ نومبر/۲۰۱٦

ژیړه ډبه چې ځینې ورته بوشکه هم وایي. ظاهرا یو معمولي او کم ارزښته شی معلومیږي مګر په حقیقت کې خورا ارزښتمن شی ثابت شوی چې زموږ د اولس خصوصا مجاهدینو خورا ډېر حوائج ورباندې رفع کیږي.

ژیړې ډبې چې کوچنې، متوسط او لوی سایزونه لري اصلا د خرڅیدونکو غوړیو لپاره د ظرف په حیث جوړیږي او استعمالیږي. اما لکه څرنګه چې په نورو هیوادونو کې د غوړیو له ختمیدو وروسته خلک له ژیړې ډبې سره نور کار نه لري او کباړ ته یې غورځوي، په افغانستان کې داسې نه ده. دلته د ژیړو ډبو له مختلفو سایزونو څخه بیلابیل کارونه اخیستل کیږي.

مثلا ماشومان په ژیړو ډبو کې کور ته اوبه راوړي. کلیوال یې سرونه غوڅ کړي او بیا د اوداسه د کوزو په حیث ترې استفاده کوي. د اضطرار په حالاتو کې د شرومبي جوړولو او غرکې کار هم ورکوي. ځینې خلک په سفر یا حضر کې د اوبه سړوونکي پتک یا فریج کار هم ترې اخلي هغه دا چې په ژیړه ډبه د سنیو بوجۍ تاو کړي، اوبه ورباندې تویې کړي او له اوبو ډکه یې هوا ته کیږدي چې ورسره د ډبې اوبه هم سړې شي او په ګرمي کې ترې استفاده کیږي.

خو د ژیړې ډبې یادې ټولې ګټې او خواص اصلي نه بلکې فرعي دي. د دې ډبې تر ټولو ستره کارنامه یا شهکار دا دی چې په جهادي مجال کې یې خورا ستر او نه هیریدونکی نقش اداء کړی دی.

که د روسانو خلاف جهاد کې د افغان تش لاسي اولس لومړنۍ مؤثره وسله هغه د تیزابو ډک بوتلونه وو چې ځانګړي محلول نه به یې ډکول او بیا به یې روسي





ټانګونه ورباندې ویشتل، نو په اوسني جهاد کې د مجاهدینو تر ټولو مؤثره وسله همدا ژیړې ډبې دي چې د امریکا هر ماډل ټانګ او هر وړ جنګي تاکتیک ته یې د الله تعالی په مرسته شکست ورکړ.

امریکایانو چې په افغانستان یرغل کاوه نو د خپلو ژورو مطالعاتو او معلوماتو له مخې په دې پوهیدل چې طالبان کومې وسلې لري او دوی به په کوم ډول وسلو هدف ګرځول کیږي؟؟ امریکایانو د دې په خاطر چې د مجاهدینو له ګوزارونو ځان خوندي وساتي له پیله یې افغانستان ته داسې پوځي او ناپوځي موټر راوستل چې د مجاهدین د سپکو وسلو او حتی ټانګ ضد راکټ لانچرو په وړاندې یې مقاومت درلود.

د خارجیانو همر او هاموې شوبلې دغه راز نور مرمۍ ضد موټر یې چې دوی ترې په ښارونو کې استفاده کوي تقریبا ټول یې د کلاشینکوف، پیکا او نورو عادي مرمیو په وړاندې مقاومت لري. په دغو امریکایي پوځي وسایطو د مجاهدینو راکټ لانچر څکه ډېر مؤثر نه و چې د دې ټانګونو په ځینو کې د اور ضد مواد کاریدلي چې په اسانه اور نه اخلي او یا یې په شاوخوا داسې جال لرونکې زغره راګرځول شوې چې د راکټ مرمۍ په هوا کې قف کوي تر دې چې د راکټ مرمۍ سرګلوله په ټانګ نه لګیږي چې انفجار وکړي.

د یرغل له پیل څخه د امریکا په ټانګونو د وسلې د مؤثریت کموالي مجاهدین دې ته متوجه کړل چې بایدپه بدیلو لارو غور وکړي. له مجاهدینو سره نه خو د کوم بل هیواد مرسته وه چې پرمختللې وسلې ورکړي او نه یې هم په دې محکومه نړۍ کې له کوم هیواد څخه داسې تمه کولای شوای. نو څکه مجاهدینو په خپل ابتکار د اغیزناکو وسلو پیدا کولو ته توجه وکړه او د نصرت او مرستې امید یې یوازې تر الله تعالی پورې محدود کړ.

الله تعالى د دې آيت په مصداق چې فرمايي: والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا... مجاهدينو ته يې د امريكا مرمۍ ضد ټانګونو د ماتولو وسله د ژيړې ډبې په شكل كې وښودله. د مجاهدينو پام شو چې كه د خپل لاس جوړ كړي باروت په يوه يا څو ژيړو ډبو كې تخته كړي او بيا يې امريكايي ټانګ ته كيږدي په كومک د الله تعالى سره په دې ناچيزه ژيړه ډبه كې دومره ځواک شته دى چې د امريكا درانه ټانګونه د ځمكې له مخ څخه پورته، په هوا كې ريز مريز او بيا يې د سپرو عسكرو له خرڅوړو او كباړ سره يوځاى پرمخي پرځمكه رانسكور كړي.

بس نو د مجاهدينو دې تاكتيک ته ورپام شو. مجاهدينو د ژيړو ډبو د تيارولو او ډكولو لپاره ځانګړي ګروپونه وګمارل، د تخنيكي زده كړو لپاره يې لنډ مهالي او اوږدمهالي كورسونه دائر شول، د انفجاري موادو د تقويې لپاره نوې نوې فارمولې كشف او وكارول شوې تردې چې بالاخره اسلامي امارت د ژيړو ډبو (انفجاري موادو) د تهيه كولو لپاره دنظامي كميسون دننه يوه مستقله حلقه او اداره جوړه كړه چې هره مياشت يې د هيواد په لراوبر كې په زرګونو ژيړې ډبې د جهاد لپاره تيارولې او مجاهدينو په امريكايي ټانګونو او پياده عسكرو باندې ور چاودولې.

امريكايي يرغلګر چې د همر او هاموي په شان سپک ټانګونه، رينجر او مرمۍ ضد موټر يې د ژيړو ډبو په وړاندې سخت ناكام وختل تردې چې هغه تر ټولو كوچنۍ ژيړې ډبې هم كولاى شواى سلامت رينجر د هوا څپو ته پورته كړي. نو يې د ژيړو ډبو له اذيت څخه دخونديتوب لپاره په نوو پوځي لارو چارو غور پيل كړ.

له ۲۰۰۶ ميلادي بيا تر ۲۰۱۰ ميلادي پورې د امريكا د وسله سازۍ او پوځي ساينس په اكاډميو او تحقيقاتي مراكزو كې اكثره بحثونه د افغانستان په ژيړو ډبو راټول ول. د امريكا پوځي تخنيكي ماهرينو د نړۍ د هر پوځ د متعارفو وسلو د



د قلم له سنګره
دصليبي يرغل په وړاندې مسلح جهاد

مخنيوي لپاره وسائل تيار كړي ول. هغوى د روسي ميګ او سوخو الوتكو لپاره ستينګر ميزايل جوړ كړي ول. د روسي سكډ ميزايلو دفاع ته يې د پيټرياټ سيستم طراحي كړى و حتى چې د هر ملک د پوځ د هر ډول وسلې دفاع ته يې چمتوالى او وسائل درلودل مګر په افغانستان كې دوى د ژيړې ډبې په نوم له داسې وسلې سره مخامخ وو چې دوى يې هيڅ اټكل نه و كړى.

د ژيړې ډبې له ګوزار څخه د مخنيوي لپاره امريكايانو بيلابيلې طرحې په كار واچولې. يو ځل يې داسې ټانګونه راوستل چې د ځمكې له مخه ډېر لوړ او سينه يې په مخروطي شكل جوړه وه، ترڅو د ژيړې ډبې د انفجار زور او د بارودو فشار د ټانګ يوه او بل اړخ ته ووځي او ټانګ پورته نه كړي. مګر مجاهدينو د دوى دې غټو ټانګوته د يوې په ځاى ډېرې ډبې خښولې او ټانګ په هر صورت مجبورېده چې له ځمكې پورته شي.

بيا يې د مخې ګاډۍ لرونكي ټانګونه راوستل تر څو ژيړه ډبه په هغه ورخلاصه او ټانګ ترې محفوظ شي. مجاهدينو دا هنر وكړ چې ډبه به يې له تلكې (ربلې) څو ګامه شاته ښخوله، چې بيا به كه د ټانګ مخكينۍ ګاډۍ په تلكه وختله هم ډبه به د ټانګ لاندې پټاويدله. لنډه دا چې په دې برخه كې د امريكايي پوځي ساينس ټولې طرحې ناكامې وختلې تر دې چې امريكايانو په وروستيو كې هلمند ته د ابرامز په نوم شپيته ټنه درانه چين داره ټانګونه هم راوستل تر څو كه په ژيړه ډبه يې زور بر شي. مګر ژيړې ډبې ويل چې په ما چې څومره بوج او وزن زيات وي همدومره ښه خوردن كوم. د ابرامز د ټانكيسانو غوښې د هلمند او كونړ د سيند كبانو وخوړې او د ټانګ ټوټې يې د كباړ په بازارونو كې ليلام ته وړاندې شوې.

د جهاد په تيرو څو كلونو كې د هيواد په لراوبر كې د ژيړې ډبې او امريكايي دجالي پوځي تخنيک تر منځ ځواكمنه جګړه روانه وه. ژيړه ډبه كه له يوې خوا د

امریکا د پوځ او تخنیکي مراجعو د بحث او سرګردانۍ زړی جوړاوه له بلې خوا به یې کله ناکله په غربي مطبوعاتو کې هم نوم یادېدو. په ۲۰۱۱ میلادي کال کې یو شمیر امریکایي رسنیو ولیکل چې د افغانستان د جګړې تر ټولو فاجعه بار اړخ دا دی چې د امریکایي پوځ زیاتره زخمي شویو عسکرو د طالبانو د خودساخته ماینونو د انفجاراتو له امله خپل مخصوص جنسي اندامونه له لاسه ورکړي چې له دې امله ورته د درست عمر رواني مرضونه پیدا شوي دي. دغه راز په زرګونو وژل شویو امریکایانو سربیره د هغو امریکایانو شمیر تر لسګونو زرو رسیدو چې د ژیړو ډبو په انفجاراتو کې یې پښې، لاسونه او یا نور اعضاء له لاسه ورکړي وو. غربي مطبوعات زموږ ژیړو ډبو ته په انګلیسي ژبه د (Water Container IED) اصطلاح کاروي چې معنی یې ده د (اوبو له ډبې جوړشوی بم) که څوک غواړي معلومه کړي ژیړو ډبو کفارو ته څومره زیان اړولی همدغه اصطلاح دې ګوګل کړي ترڅو د ژیړو ډبو له کمالاتو او تاثیراتو خبر شي.

د ژیړو ډبو درنو چاودنو بالاخره په کبر راغلي یرغلګر دې ته مجبور کړل چې د جګړې له میدانه پښې سپکې کړي. ژیړو ډبو نه یوازې د ۴۹ هیوادونو لسګونه یرغلګر عسکر په ځان پورې حیران کړل بلکې د هغوی داخلي ملګري یې هم له جګړو او غلامۍ پښیمانه کړل.

ژیړې ډبې د خپل مؤثریت او استعمال له امله په ولسي جهادي شعر او ادب کې هم انعکاس پیدا کړ. لکه په تیرو کلونو کې چې داسې ټپې وویل شوې.

فضا ته لار د ختو نشته
زه یرغلګر په ډبه سپور ورخیژومه

بوشه! په ټانګ دې مه نازیږه
په بوشکه یې بم یې څلویښت ټوټې کومه





او یا لکه شاعر چې وایي:

رښتیا هم دهشتګر یم اټوم خیلو! لوی خطر یم
په لاس کې د غوړو د ډبې بم دی راسره

ژیړو ډبو یرغلګر دومره وویرول چې په وروستیو کلونو کې به یې د دې ډبې په لیدلو سمدستي د جنګ دانه اخیسته او د ځان د دفاع هڅه به یې کوله. د مجاهدینو له قوله په هلمند کې ډېر ځایه داسې پیښ شوي چې کوم کلیوال د اوداسه لپاره له ژیړې ډبې سره له کوره راوتلی خو په محل کې موجودو امریکایي عسکرو ویشتلی او شهید کړی دی، خو چې کله یې له امریکایانو د علت پوښتنه شوې دوی ویلي چې موږ فکر کاوه دغه سړي بم په لاس کې را اخیستی دی.

د چریکي جګړو په څیر په اوسنیو سترو تهاجمي عملیاتو کې هم مجاهدین له ژیړو ډبو اعظمي استفاده کوي. له یوه مجاهد نه مې وپوښتل چې په هلمند کې مجاهدین د دښمن پوستې او قرارګاوې څرنګه فتحه کوي؟ هغه وویل مجاهدین په دریو برخو ویشل شوي وي، یوه برخه د د هاوان، ایس پي جي ناین او نورو درنو اسلحو والا وي چې له نسبتا لرې فاصلې څخه ددشمن مورچې او د قرارګاه برجونه په درنو وسلو ولي او بله ډله نښه ویشتونکي او یا د شپې دوربین لرونکي وي چې هغوی په هدفي او رسا ګوزارونو د دښمن هر ښکاره کیدونکی شخص په دقت په نښه کوي. بل ځانګړی ګروپ د ژیړو ډبو والا مجاهدین وي، له دوی سره کوچنۍ او لویې بارودي ډبې وي او کوښښ کوي د پوستې یا قرارګاه دیوالونو ته ځان ورسوي. دوی درنې ډبې د قرارګاه دیوالونو ته ږدي او بیا انفجار ورکوي تر څو تعرضیانو ته د داخلیدو مخه خلاصه شي. دغه راز دوی سپکې ډبې د قرارګاه مابین ته د ګرنیټ په شکل وراړوي چې په انفجار سره د دښمن افرادو ته دروند زیان او تخریب اړوي.

د جهادي سيمو كمكي هلكان او ماشومې نجونې بيا له ژيړو ډبو د ماشومانه لوبو لپاره استفاده كوي. دوى كه له يوې له دې ډبو د دريا يا چمبې په حيث كار اخلي كله داسې هم شوي چې د كلي شوخو كمكيانو د دې ډبو په واسطه په امريكايانو ډرامه جوړه كړې وي.

هغه داسې چې په كومه دښته يا خامه لار باندې امريكايان را روان وي ماشومانو ورته په مخكې خالي ډبې ښخې كړې او ځيني ځاى ښكاره كړي وي ترڅو يې امريكايان وويني. امريكايي كاروان د تشو ډبو په ليدلو توقف كوي. خپل د تخنيک ماهرين راغواړي، هغوى په ځانګړو وسايلو په ډېر احتياط ژيړو ډبو ته ورنږدې كيږي خو وروسته له ساعتونو ځنډ او پلټنې ښكاره كيږي چې تشې ډبې په لار كې ايښودل شوي دي چې دغه ډرامه د كلي شوخكانو ته يوه په زړه پورې او خندوونكې سرګرمي جوړوي.

په هر حال، ژيړه ډبه د افغان مجاهد اولس د خپل لاس جوړه هغه وسله ده چې د امريكايانو هر ډول تكنالوژي يې راوپرځوله. د افغانانو د خپل لاس جوړه وسله يې ځكه بولو چې د ډبې انفجاري مواد خپله مجاهدين جوړوي او د هلمند غوندې په ډېرى آزادو سيمو كې اوس د پلاستيكي مصنوعاتو كارخانې هم فعالي دي چې د پلاستيكي پايزار، لوښو او ظرفونو تر څنګ د هر سايز ژيړې ډبې هم جوړولى شي.





# امريكايي ليلام

٢٦/نومبر/٢٠١٣

ليلام دى ليلام... ټن په دوه سوه ډالره... دټانګونو پرزې... د چورلكو ټوټې... زاړه پتلونان او دريشۍ... شليدلي بوټان او نيمه سوځلې چانټې... مات شوي ټوپكونه... د موټرو او ټانګونو ماشينونه او سپير پارټ... جنراتورونه، تانبوګان، لرګيني كوټنۍ، پوځي چپركټونه او ويلچيرونه، او نور رنګارنګ امريكايي پوځي اموال... كه پيسې درسره وي صرفه مه پرې كوئ... امريكايي پوځي جالونه واخلئ او خپلو چرګانو ته ترې ښايسته مرغانچې جوړې كړئ... هرڅه د اوسپنې په بيه دي... هلئ واخلئ اصلي امريكايي اوسپنه ده... ليلام شو په تاوان شو... ټن په دوه سوه ډالره...

دا كومه خيالي افسانه نه ده، بلكې د امريكايي فرعونيت د زوال او ليلام رښتيني كيسه ده، چې له تيرو څو مياشتو راهيسې د افغانستان په جنوبي ښارونه كې پيل شوې ده. دلته د امريكا پوځي ځواک كباړ شوي وسائل او وسايط كټ مټ داسې ليلاميږي لكه دوه لسيزې وړاندې چې د شوروي د ځلوينښتم لښكر زراد خانه ليلام شوې وه.

د ٢٠١٣م كال د نومبر ٢٠ مه ورځ ده، له غزني څخه مې د كندهار پخوا د تګ اراده وه، په غزني ښار كې د كندهار د موټرو اډه چې امريكايي پي آر ټي ته څيرمه پرته ده، له همدې اډې څخه دوه تنه راووتل اود كندهار پر خوا په كرايي موټر كې راسره ملګري شول. دوى ويل چې دزابل ولايت د كلات اوسيدونكي يو او دلته د امريكايي كباړ په اخيستو پسې راغلي يو. يوه تن يې راته وويل چې ماښام مو د

غزني له PRT څخه ۹۰ ټنه سودا وکړه، دوی خوښ ښکاریدل چې ګټه یې کړې، له دوی سره مجلس او د امریکایي لیلام کیسه راته جالبه وایسېده، نو ځکه مې په دې اړه مجلس ورسره اوږد شو.

## د شکست رابربنډیدونکي شواهد

په تیرو دوولسو کلونو کې سره له دې چې امریکایانو ته د افغانستان په جنګ کې روزانه خورا درانه تلفات اوښتل، خو امریکایي یرغلګرو د خپلې یکه تازې میډیا په توسط هڅه کوله، خپل د شکست او هزیمت شواهد پټ وساتي. د دې لپاره امریکایانو که له یوې خوا پراخ میډیایي سانسور نافذ کړی و، له بلې خوا یې خپل تخریب شوي وسایط او مخروبه اموال په ډېر دقت سره د جګړې له میدانه ټولول او د عامو خلکو له نظره یې غایبول.

له امریکایانو سره د افغانانو په لومړني مخامخ جنګ (دشاهیکوټ جنګ) کې د امریکایانو ګڼ شمیر چورلکې او وسایط له منځه لاړل، خو امریکایانو په دې غرنۍ سیمه کې تخریب شوي چورلکې ټولې د شپې په تیږو تیارو کې بګرام ته انتقال کړلې، ترڅو یې د لارې په اوږدو کې خلک ونهویني.

وروسته چې په چریکي جګړو او ځمکنیو ماینونو کې د امریکایي ټانګونو، پوځي موټرو او اکمالاتي کتارونو سوزیدل او له منځه تلل د ورځې کیسه وګرځیده، امریکایانو ته د خپلو تلفاتو د ستر او اخفاء مسئله د یوې مهمې پوځي چارې په توګه رادمخه شوه.

دغه مهال امریکایانو د بګرام، کندهار، لوګر او شینډنډ له پوځي اډو سره نږدې د خپلو مخروبه وسایطو د ښخولو لپاره د ژورو کندو په ایستلو پیل وکړ، چې دې چارې د جورج بوش فرعوني غورو لاپو ته په پام سره سړي ته د مصر ـ د فرعون





د قضای حاجت د پټولو ستونزه وریادوله چې دن ومورې د خدایي دعوا یې له چیلنج سره مخ کړې وه.

په دې مرحله کې چې د امریکایي یرغلګرو تلفات په منځنۍ کچه کې وو، په ګڼ شمیر افغان حفاره چلوونکي او بیلدوزر چلوونکي د امریکایي اډو دننه د ژورو کندو په ایستلو بوخت وو، چې امریکایي مخروبه ټانګونه، سوزیدلي کانتینرونه او تخریب شوي اکمالاتي موټر چې د جګړې له سیمو راټولیدل، دلته ترځمکه لاندې ښخیدل او خاورې پرې امباریدلې.

په دې کار سره امریکایانو هڅه کوله، خپل د شکست شواهد او د افغان جګړې حقائق تر خاورو لاندې پټ کړي، مګر خلک وایي حقیقت هیڅوک نه شي پټولای، همدا لامل و چې کرارکرار د امریکایانو د تلفاتو کچه دومره زیاته شوه چې نور یې امریکایانو ته د پټولو چاره ناممکنه شوه، نو ځکه یې یوازې د خپلو پوځي مخروبه ټانګونو راټولولو او انبارولو ته کار ووایو او په هره اډه کې یې د تخریب شویو ټانګونو د نیمه پاته کالبوتونو خرې او انبارونه جوړ شول.

په دې مرحله کې څرنګه چې د امریکایانو تلفات وروستۍ کچې ته پورته شوي وو، دوی نه شوای کولای خپل ټول تخریب شوي او ماین وهلي ټانګونه دجګړې له میدانه وباسي. نو ځکه سوزیدلي اکمالاتي موټر او د داخلي عسکرو تخریب شوي وسایط د جګړې په میدان پاته کیدل، چې وروسته د هرې سیمې د خلکو لخوا داوسپنې په بیه د کباړ په شکل خرڅیدل.

دا مهال چې عامو خلکو د لارو په اوږدو کې د اکمالاتي موټرو او داخلي عسکرو د وسایطو هدیرې لیدلې داسې فکر یې کاوه، چې په جګړه کې ډېر زیان داخلي عسکرو ته پیښیږي، خو خبر نه وو چې امریکایانو خپل تخریب شوي ټانګونه له سیمې ایستلي دي. څرنګه چې حقیقت نه شي پټیدلای، بالاخره دا دی د

امريكايي مخروبه وسائلو او د شكست د نغدو شواهدو راښكاره كيدل هم پيل شوي. امريكايان چې له افغانستانه تښتي، د خپلو تخريب شويو ټانگونو، چورلكو او نورو مستهلكو پوځي وسائلو لپاره له دې پرته بله لار نه ويني، چې د اوسپنې په بيه يې خرڅ كړي.

زما د سفر ملگري چې د امريكايي پوځي وسائلو كباړ اخيستونكي وو، راته ويي ويل چې د امريكايي ليلام زياتره برخه د پوځي ټانگونه پرزې، سوزيدلې ټوټې او ماشينونه دي. دوى وويل د امريكايي وسايلو ليلام په ټولو ولاياتو كې پيل شوى دى، چې په زرگونو محلي خلك په كې اخته دي، هره ورځ په ټنونو وسائل له امريكايي اډو رايستل كيږي او د اوسپنې په بيه خرڅيږي، زياتره وسايل په كانتينرونو كې ځاى په ځاى شوي دي او سرپټي خرڅيږي.

زما ازار دې ليونى كړه اشنا!!

څو كاله وړاندې افغان شاعر سميع الله تړون يرغلگرو ته داسې ښيرا كړې وه چې:

زما ازار دې ليـــونى كـــړه اشنا!
چې په سوكانو باندې ځان وژنې

داسې ښكاري لكه د دې شاعر ښيرا چې قبوله شوي وي، ځكه امريكايان چې باروت يې افغانستان ته د دې هيواد د ورانولو او تخريب لپاره راوړى وو، اوس وربانديې خپل پوځي وسايط الوځوي. د امريكايي ليلام يوه جالبه جزئيه داده، چې په دې كې يوازې د جگړې د ميدان تخريب شوي ټانگونه نه خرڅيږي، بلكې په زرگونو روغ ټانگونه چې امريكايان يې بيرته له ځانه سره نه شي وړلاى، نو په خپل لاس يې تخريبوي او بيا يې د كباړ په كانتينرونو كې اچوي.





د روان كال د جون په مياشت كې امريكايي چارواكو وويل چې په دې لړ كې دوى د ٧ ملياردو ډالرو په قيمت روغ ټانگونه او پوځي وسايل په خپل لاس تخريب كړي او دا لړۍ لا هم روانه ده.

د امريكايي كباړ سوداگرو راته وويل چې دوى خپله ليدلي چې روغ جوړ جنراتورونه، بيلابيل ماشينونه او نور وسائل امريكايانو د ليزر په واسطه برمه كړي او له كاره غورځولي وي او بيا يې د اوسپنې په بيه ليلام كړي وي. دوى ويل زياتره دا ډول وسائل كارتن بند او يو مخ نوي دي، چې استعمال شوي نه دي، خو امريكايانو د دې لپاره چې څوك يې استعمال نه كړي يوازې خراب كړي او بيا ليلام ته وړاندې كړي وي.

له دې جريان څخه لوستونكي اټكلولاى شي چې يرغلگر په دې جگړه كې له څنگه ذلت او هزيمت سره مخ شوي دي، چې حتى په خپل لاس د خپلو امكاناتو له منځه وړلو ته مجبور دي.

## امريكا څومره تاوان كړى؟

معمولا ليلام په تاوان خرڅولو ته ويل كيږي، خو دغه تاوان هميشه نسبي وي، يعني ليلاموونكى هڅه كوي د يو څه گټې په ترلاسه كولو سره له يومخيز تاوانه ځان وژغوري.

خو كه د امريكايي ليلام بيې ته وگورو واضحا راته ښكاري چې امريكايانو له مالي اړخه خورا ستر تاوان كړى دى. دوى خپل پوځي وسايط او وسايل په دومره تخفيف بازار ته وړاندې كوي چې ښايي ستاسو د حيرانۍ سبب وگرځي.

د بيلگې په توگه دm1 ابرامز په نامه امريكايي ټانگ را اخلو چې د امريكا د زغروال ځواك د ملاتير جوړوي. دغه ټانگ شاوخوا ١٠ مليون ډالره قيمت لري او

**که افغانستان ته د رارسولو مصرف یې ورسره حساب شي شاید قیمت یې نور هم لوړ شي.**

**مگر دغه ټانګ چې څه باندې شپیته ټنه وزن لري، که اوسنۍ بیې ته یې چې د امریکا لخوا ټن په ۲۰۰ ډالر ټاکل شوي، حساب وکړو، نو د لیلام بیه یې ۱۲ زره ډالر جوړیږي. لکه وړاندې چې وویل شوي امریکایان نه یوازې خپل تخریب شوي ټانګونه په دې بیه خرڅوي بلکې خپل راوستي روغ ټانګونه یې هم په همدې بیه بازار ته وړاندې کړي دي. کله چې د ۱۰ ملیونو شي په ۱۲ زره ورکول کیږي، نو سړی پوهیږي چې امریکایانو ته د افغانستان کاته ډېره په تاوان تمامه شوې ده.**

**دغه راز نور ډېر پوځي تخنیکي وسائل چې وزن یې کم خو قیمت یې خورا زیات دی، اوس د اوسپنې په بیه بازار ته عرضه شوي دي. چې دا بهیر که له یوې خوا یرغلګرو ته له ورپیښ مالي زیان څخه پرته پورته کوي، له بلې خوا په مجموع کې د امریکایي شکست او ذلت بار حالت ننداره هم د نړیوالو مخې ته ږدي.**





# دوهم فصل ـــ د افغانستان اسلامي امارت

- ❖ څنګه د طالبانو یو سرسخت دښمن په مخلص ملګري واوښت؟
- ❖ د دوو والیانو تفاوت
- ❖ اسلامي امارت یوازې د الله تعالی په مرسته جنګیږي
- ❖ چرا امارت اسلامي؟
- ❖ د یوه خبریال غلط معلومات
- ❖ دبرما دقضیې په اړه د اسلامي امارت مسؤلانه او منبهانه کردار
- ❖ اسلامي نظام د ټولو په خیر دی، حتی د نامسلمانو

# څنګه د طالبانو یو سرسخت دښمن په مخلص ملګري واوښت؟

۱۰/ اپریل/۲۰۱۳

د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال چې کله د طالبانو خوځښت د هیواد لویدیځ او شمالي ولایاتو ته پراخ شو، نو د هیواد مرکزي سیمې هم د امارت تر واکمنۍ لانـدې راغلې، چې په دې لړ کې دغور ولایت هم فتحه شو.

د غور ولایت تر فتحې وروسته یوازې د لعل او سرجنګل په ولسوالۍ کې یـو څـه بغاوت موجود و چې وروسته ختم او شرعي سولییز نظام په کې حاکم شو. خو په غـور ولایت کې د احمدشاه مسعود مربوط دوه قومندانان وو چې تر ډېره وخته یې مقاومت وکړ او همیشه یې له غرنیو سیمو پر طالبانو حملې کولې.

دا دوه قومندانان یو د ډاکټرابراهیم په نـوم و چـې پـه تیـوره ولسـوالۍ کـې یـې مراکز درلودل، ترپایه یې خپل پوځي تشکیلات وساتل او څو ځله یې له مجاهدینو سره سختې جګړې وکړې. بل هم د رئیس سلام په نوم د غور ولایت د مرکز چغچران د یوې اطرافي سیمې مربوط قومندان و چې تر ډېره وخته یې مخالفت ته دوام ورکړ.

د رئیس سلام په نوم د مخالفینو قومندان چې لـه مسـعود سره یـې خـورا نـږدې اړیکې درلودې او شورای نظار به یې له پنجشیر څخه د چورلکې پـه واسـطه اکـمالات کول، په غور کې د طالبانو په وړاندې یو رښتینی سرخوږی بلل کیده.

طالبانو څو ځله هڅه وکړه چې نوموړی له مختلفو لارو په اسـتفاده لـه مخالفـت څخه راوګرځوي، مګر کومه نتیجه یې ورنکړه. تردې چې د امریکایي یرغل تر پیـل دوه





کاله وړاندې رئیس سلام په ناڅاپي توګه له مخالفته لاس واخیست او لـه طالبـانو سره ملګری شو.

د بادغیس ولایت یو مجاهد، چې د اسلامي امارت د واکمنۍ په وخت کې یې په غور ولایت کې دنده اجراء کړې، کیسه کوي: یو وخت مې لـه قومنـدان رئـیس سـلام څخه وپوښتل، چې څه وجه وه چې داسې ناڅاپه مو لـه مخالفتـه لاس واخیسـت او پـه پوره اخلاص له طالبانو سره ملګري شوئ؟ رئـیس سـلام راتـه د خپـل دې تصـمیم دوه وجوهات ذکر کړل او وې ویل چې ما دوه داسې صحنې عملا ولیدلې چې ماته یې دا په اثبات ورسوله چې څوک په حق او څوک په باطله دي.

## لومړۍ پېښه

رئیس سلام وویل: موږ ته خورا ډېـر تبلیغـات شـوي وو چـې طالبـان د ګاونـډیو هیوادونو په تیره د پاکستان اجیر جنګیالي دي، هریوه ته ډېرې پیسـې ورکـول کیـږي، ترڅو د هغوی په نیابت جنګ وکړي، پخوا چې ما طالبان عمـلا نـه وو لیـدلي، داخبـره مې زړه ته لویدلې وه، مګر ما داسې یوه پېښه ولیدله چې پـه دې اړه ډېـر حقـائق راتـه څرګند شول.

رئیس سلام زیاته کړه: یو وخت له پنجشیر څخـه غـور تـه مسـعود خـورا ډېـرې پیسې راولیږلې، ترڅو جنګ ته پرې ادامـه ورکـړم، پیسـې چـې ماتـه ورسـیدلې نـو مـا غوښتل، چې په خپل کور کې یې په ځای په ځای کړم او د اړتیـا پـه وخـت تـرې اسـتفاده وکړم. له همدې پیسو سره د چغچران په اطرافو کـې خپـل کـور تـه پـه پټـه راغلـم او غوښتل مې چې پیسې په کور کې په صندوقانو کې واچوم. زه په همدې بوخت وم، چې ناڅاپه خبر راکړل شو چې طالبان راغلل، د دې خـبر پـه اوریـدو مـې هرڅـه همداسـې پریښول، د غرو په خوا وتښتیدم او له طالبانو مې ځان خلاص کړ.

څه وخت وروسته د دې په خاطر چې د خپل کور او خپلوانو حال معلوم کړم، بیا مې خپل کور ته د تلو اراده وکړه. زما یقین و چې طالبانو به مې ټول کور لوټ کـړی او

زما د کورنۍ غړي به يې هم نيولي او تکليف کړي وي. ځکه موږ ته ويل شوي وو چې طالبان د پيسو لپاره جنګيږي او خلک ځوروي.

مګر کله چې کورته راغلم و مې ليدل چې زما د پيسو بنډلونه او پنډې لکه څنګه چې ما پرې ايښي وې، په هماغه شکل په کور کې ايښي دي. طالبان چې راغلي يوازې يې د کور تلاشي اخيستي، نور يې يوه روپۍ هم نه ده ورسره اخيستې او نه يې کوم شي يا دکورنۍ کوم غړي ته ضرر رسولی.

ما چې پيسې وشميرلې، حساب يې پوره و او هيڅ روپۍ ترې نه وه کمه شوې. د کورنۍ غړو هم د طالبانو له چلنده ښه حکايت کاوه، نو دا مهال زه پوه شوم او له ځان سره مې وويل چې دا خلک په هيڅ توګه د پرديو اجيران او د پيسو جنګيالي نه شي کيدلای. ځکه که د دوی هدف عقيدوي نه وای او د پيسو غم اخيستي وای بايد دغه بنډلونه پيسې يې له ځان سره وړې وای، چې مسعود ماته د جنګ لپاره راليږلې دي. د دې عملي واقعې له ليدلو وروسته زما له ذهن څخه د غلطو افواهاتو هغه پردې لرې شوې، چې تر دې وړاندې يې په کې ځای نيولی و، ځکه ما د طالبانو چلند عملا په خپلو سترګو وليد.

## دوهمه پيښه

رئيس سلام وايي تر دې پيښې وروسته زه له مسعود سره د کتنې لپاره له غور څخه پنجشير ته لاړم، هغه مهال به موږ په آسونو له ډېرو خطراتو سره دا غرنۍ لارې وهلې، له مسعود سره زما اړيکې ډېر نږدې وي او په مايي ډېر اعتماد و له همدې امله به چې زه ورغلم نو مخامخ به يې ځای ته ورتلم او ملاقات به مې ورسره کاوه.

مګر په دې ځل چې ورغلم ګورم چې د مسعود د مقر مخې ته عسکر ولاړ دي او ورتلونکي خلک تلاشي کوي. ما پوښتنه وکړه چې پخوا زه دلته نه يم تلاشي شوی، نن ولي تلاشي کيږم؟ د مسعود ساتونکو وويل چې له مسعود سره خارجيان ناست دي د هغو لپاره موږ تلاشي اخلو.





رئيس سلام وايي کله چې مسعود ته ورغلم، ګورم چې څلورتنه روسان ورسره ناست دي او مجلس ګرم دی. ما په پيل کې څه غرض ونکړ او کله مې چې د دوی خبرې او تعهدات وليدل، نو په پای کې مې بې مقدمې احمدشاه مسعود ته وويل، چې جنابه! داڅه وينم؟ تر پرونه دې له همدې روسانو سره جنګولو او نن ورسره تعهدات امضاء کوې؟

رئيس سلام وايي: مسعود خبره په خندا واړوله او ويې ويل چې رئيس صاحب څه وکړو، مجبوري ده. خو ما خبره جدي ونيوله او مسعود ته مې وويل چې نور زما لاره له تا بېله شوه، ورځم طالبانو ته. او له همدې خبرې سره يې له مجلسه ولاړ شوم.

دی وايي مسعود ته زما خبره هسې هوايي خبره ښکاريده، مګر ما چې هرڅه عملا ليدلي وو ټينګ قصد مې وکړ، ځکه نور راته په دې عزم کې هيڅ د پوښتنې ځای پاته نه شو او د دواړو خواوو ماهيت ښه راته څرګند شو.

رئيس سلام وايي مسعود بيا خلک راپسې راوليږل خو مايي له ملاقات څخه انکار وکړ او کله چې بيرته غور ته راغلم، نو مې له طالبانو سره پيوستون اعلان کړ او له مخالفته مې لاس واخيست.

## پايله

د غور اوسيدونکی رئيس سلام د اسلامي امارت د واکمنۍ تر پايه په پوره اخلاص له طالبانو سره خپله ملګرتيا وپالله او د مخالفينو په وړاندې يې ښه مبارزه وکړه. نوموړي د يوه مخلص مجاهد په توګه تر پايه دب رحق جهاد په صف کې خپله دنده ترسره کړه، تردې چې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا په بيا بيا ونازول شو. نوموړی تر پايه په همدې دريځ و تر څو يي له امريکايي يرغل وروسته په يوه مرموزه پېښه کې ژوند له لاسه ورکړ.

خو د نوموړي له سرګذشت څخه موږ معلومولی شو، چې مخالف جهت ته د خپل هویت او د دښمن د هویت ورپیژندل د زړونو په ګټلو او بایللو کې څومره اساسي نقش لري.

هغه رئیس سلام چې مجاهدینو څو کاله د ټوپک په زور تسلیم نه کړ، مګر د عملي مثبت کردار په توسط یې بې له کوم امتیازه د ځان ملګری کړ. له همدې ځایه معلومیږي، چې تر هرڅه وړاندې باید د مخالفو او غولیدلو خلکو په ذهن او زړه باندې کار وشي. هغوی ته باید عملا دا په اثبات ورسول شي، چې موږ په حقه یو. که چیرې د هغوی زړه فتحه شي، نو ډېر زر به یې لاسونه او بدن له مخالفت څخه لاس واخلي، ځکه زړه د بدن باچا دی، او د بدن نور ټول اعضاء د زړه په اراده باندې حرکت کوي.

دغه راز که د مخالف صف تیروتلو کسانو ته د هغوی د خپل صف او مشرانو بد کردار جوت شي، د هغوی ګوډاګیتوب او پردیتوب ورته ثابت شي، کیدای شي باور پرې له لاسه ورکړي او لاره ترې بیله کړي. دې ته په پام سره باید ډېره هڅه وشي چې مجاهدین خپل غږ چې په هره طریقه ممکنه وي د دښمن صف ته ورسوي او هغه کسان چې د غرب تبلیغاتو یې د عقل سترګې ړندې کړي دي، د اساسي موضوعاتو په اړه یې اذهان تنویر کړي ترڅو له دنیوي او اخروي هلاکت څخه خلاص شي.





## د دوو والیانو تفاوت

۲۴/ سپټمبر/۲۰۱۲

زه د پکتیا ولایت اوسیدونکی یم او غواړم د دې ولایت د دوو والیانو په اړه درسره ځیني حقائق شریک کړم، ترڅو پوه شئ چې په انسانانو او چارواکو کې څومره توپیر شتون لري او زمانه څومره بدله شوې ده.

یوولس کاله وړاندې د طالبانو په وخت کې زموږ د ولایت والي ملا شفیق محمدي و، چې د روزګان ولایت اوسیدونکی و. ملاشفیق محمدي چې کله زموږ ولایت ته راغی، نو یوه ورځ یې په روحانیه مدرسه کې لویه غونډه جوړه کړه، چې د حافظانو پګړۍ هم په کې تړل کیدې. په دې غونډه کې والي د خلکو په مخ کې ودرېد، هغه درنې افغاني جامې اغوستې وې، د پکتیاوالو غوندې یې درنه پګړۍ پر سر وه او خبرې یې په داسې الفاظو شروع کړې چې له کوچني نیولې تر لویه هر سړی ورباندې پوهیده، یعني په خبرو کې یې ها دچا خبره طمطراق یا لغت پراني نه وه. ده وویل چې دلته ستاسې خدمت ته رالیږل شوی یم، زما زړه غواړي چې د پکتیاوالو هر کور ته ورشم، هره دراوزه وټکوم، په هر ټغر کینم، د هر یتیم او کونډې پوښتنه وکړم. داځکه چې په تاسې باندې شل کاله جنګ تیر شوی دی تاسې په زرګونو شهیدان ورکړي او دامو په ما حق دی چې د هرشهید فاتحه وکړم، د هر یتیم له احواله ځان خبر کړم او د هرې کونډې او معیوب سره د خپل توان په اندازه مرسته وکړم. والي وویل: ډېره ښه شوه چې همدلته مې یوځای پیدا کړئ، په همدې ځای درته د ټولو مصیبتونه تسلیت وایم او دا غاړي دربانـدې خلاصوم چې

زه ستاسو حاکم نه یم، بلکې ستاسو خادم یم. زما دروازه همیشه ستاسو په مخ خلاصه ده او چې څه زما په وس پوره وي ان شاءالله درنه دریغ به یې نه کړم.

لومړی به ښايي ځینو خلکو ته د والي خبرې هسې لاپې ښکاره شوي وي، خو وروسته موږ ولیدل چې والي محمد شفیق محمدي رښتیا همدومره مخلص او په چارو کې بې تکلفه سړی دی.

محمدشفیق محمدي عجیبه سړی و، هیڅ د والیتوب تشریفات او تکلفات یې نه درلودل. کله به یې د لمانځه مصلی په اوږه اچولې وه او یوازې به جامع جومات ته د لمانځه لپاره روان و، داسې خو مې ډېر لیدلی چې په گردیز ښار کې د حضرت بلال مسجد چې هلته موږ هم لمانځه ته ورتلو، والي به چې د کوم کار لپاره همدلته نږدې د قول اردو قومندانۍ ته راغی، نو د مازدیگر د جماعت لپاره به د حضرت بلال مسجد ته دلمانځه لپاره راغی، د مازدیگر له لمانځه وروسته به یې خپل لوی څادر په سر راکش کړ او ترماښامه به په وظیفه ناست و، کله خو به یې د ماښام له لمانځه وروسته هم خپلې اوږدې تسپې را وایستې او ترڅو به یې چې د ماخستن لمونځ په جماعت نه و ادا کړی نو بیرته نه تلو.

والي نه یوازې ذاتي پاکوالی او تقوا درلوده، بلکې په چارو کې هم خورا تکړه و، د ده په وخت کې د گردیز ښار ته د رباط لخوا له یوه کاریز څخه دپاکو اوبو نلونه راتیر شول او د گردیز ښار په مختلفو برخو کې د پاکو اوبو سلگونه شیردانونه نصب شول، چې دا یوه خورا اساسي پروژه وه، دغه راز یې مؤسسات هم په دې مجبور کړل چې د هسې وخت تیرولو په ځای باید کار وکړي. د معروف موسسې لخوا ټول ښار د څو لسیزو له کثافاتو او د جگړه ییز پاتې شونو څخه تصفیه شو. پلونه او دسړکونو د غاړو او مابین چمنونه له سره جوړ شول، سرکونه تر یوه حده ورغول شول، د همدې والي په وخت کې د ولایت، قول اردو، مستوفیت، اطلاعات





وکلتور ریاست، نظامي کلوپ، ښاروالی، قومندانۍ، بالاحصار او نورو گڼو دولتي اداراتو په گډون ډېرې دولتي ادارې چې په پخوانیو جگړو سختې زیانمنې شوې وې له سره ترمیم او ورغول شوې او گردیز ښار له څو کلنو جگړو وروسته یو ځل بیا د یو ښایسته او پاک ښار بڼه غوره کړه.

د پکتیا په تیره گردیز لپاره د والي شفیق محمدي خدمتونه او اخلاص دومره ښکاره وو، چې حتی د اوسني حکومت چارواکي هم وربانددې اعتراف لري او په درنه سترگه ورته گوري. د دې نغد مثال د والي شفیق محمدي د خدمتونو په ویاړ جوړ شوی هغه سمبولیکه دروازه (باب محمدي) دی، چې د ولایت ودانۍ ته نږدې د گردیز ښار په شنه سیمه کې ولاړه ده، چې اوسنۍ ادارې په نوې بڼه رنگولې خو نوم یې نه دی ورتغیر کړ.

شفیق محمدي څو کاله د پکتیا ولایت والي پاته شو، خو خلکو له ده څخه د خدمت او ښه چلند پرته بله خاطره ونه لیدله. هغه د ولایت په پیسو ځان ته کومه ماڼۍ یا تجارت پیل نه کړ، بلکې د طالبانو په هغه ضعیف اقتصاد کې یې خلکو ته دومره خدمت وکړ، چې اوس پکتیاوالو په یوولسو کلونو کې هم نه وي لیدلی.

کله چې امریکایان راغلل او د طالبانو حکومت ونړېد، نو والي شفیق هم مجبور شو چې له پکتیا څخه د خپلې سیمې په خوا لاړ شي. دپکتیا یو تن مشر- کیسه کوي، چې له تگ څخه وړاندې والي محمد شفیق قومي مشران وروغوښتل او د حالاتو په باره کې یې خبرې ورسره وکړې. وروسته یې ورته وویل چې یو شمیر پیسې چې د گردیز ښار د جامع مسجد د جوړولو لپاره چنده راټولې شوې دي، له ماسره پاته دي چې تاسو ته یې سپارم او باید چې په مسجد باندې ولگول شي. د دې پیسو له سپارلو وروسته والي ولاړ شو، خپل څادر یې ټک واهه او خلکو ته یې وویل اې پکتیاوالو! په دې څادره کې خو به څه شی نه وي؟ خلکو ورته وویل نه

والي صاحب! هيڅ شی هم په کې نشته. والي وويل چې دا دی په الله باور وکړئ چې څرنګه خالي څادر درته راغلی وم همداسې خالي څادر بيرته درڅخه رخصت اخلم. له ماسره ستاسو يوازې همدا د جامع مسجد يو څه پيسې پاتې وې، چې دا دی در ومې سپارلې، نور مې هيڅ شی نه دي درنه ولجه کړي.

والي د ماښام په تياره کې له پکتياوالو سره خدای پاماني وکړه او چې څرنګه راغلی و، يوازې له هغوجامو او خړ څادر سره په خپله مخه لاړ، خو داسې ښکاري چې په هغه ورځ د نورو افغانانو غوندې د پکتياوالو هم د واليانو له درکه بدنصيبي پيل شوه. ځکه بيا يې هيڅکله داسې والي ونه ليد، چې د ملاشفيق محمدي غوندې دې د اخلاص او تقوا ټوټه وي.

اوس به راشو دپکتيا اوسني والي جمعه خان همدرد ته، چې خلک يې د کرزي صيب په واليانو کې نسبتا ښه او په ړندو کې ديوې سترګې باچا بولي. دغه ښاغلی چې ګرديز ته راغلی، نو له لومړی ورځې څخه يې داسې نازونه او د ديدن شرطونه نافذ کړي دي چې سړي ته د شمايلې نکل ورپه زړه کوي. والي صاحب خو لومړی ډېر وخت د دوبۍ په خورما ښارګوټي کې په خپل هغه استراحت ځای (کور) کې وخت تيروي، چې د پکتياوالو له غوښو او هډوکو په شپيلولو پيسو يې رانيولی او جوړ کړی دی. خوداسې معلوميږي چې هلته هسې مفت وخت نه تيروي، بلکې درونډ کاروبار يې هم پيل کړی دی. که په مياشت دوو کې افغانستان ته راشي، نو بيا ډېر وخت په کابل کې وي او که پکتيا ته راشي، نو بيا هم لکه د ژمي لمر ډېر نه معلوميږي او يوازې يې خپل ګوندي ملګري ليدلی کتلی شي.

همدرد پکتيا ته د دې لپاره را استول شوی و چې د پخواني مفسد والي رحمت الله رحمت فسادونه جبيره کړي، خو دغه ښاغلي داسې شکونې او چپاول پيل کړ، چې اوس خلک رحمت الله رحمت ته دعاګانې کوي.





همدرد د پکتيا او غزني ترمنځ د جوړيدونکي سرک ټيکه په ټوله دنيا کې راواخيسته او خپل زوی عبدالرحمن همدرد ته يې ورکړه، دې ته وايي (خود کوزه، خود کوزه ګر وخود کوزه خر وکوزه فروش) زوی يې په سرک باندې د زرمت ولسوالۍ تر مرکز پورې د سرک د دواړو غاړو ګڼ کورونه او پټي ړنګ کړل او يو څه خاورې يې پرې وشيندلې نور يې نو پيسې ټولې دوبۍ ته انتقال کړې، د پکتيا غزني سرک اوس داسې دی، چې موټر په کې په رڼا ورځ ددوړو له لاسه ځراغونه لګوي او دباران په ورځ خو اکثره موټر په کې بند وي.

همدرد په ښار کې هم د نويو نقشو پلي کول پيل کړل او ګڼ تعميرونه يې ونړول. په پيل کې خلکو نوموړی د دې کار له امله د بيا رغونې بيلدوزر باله چې داسې په بې پروايي تعميرونه نړوي. خو اوس ټول ګرديز ښاريان په دې باور دي، چې همدرد دا کارونه هم د رشوت او معاملو پيدا کولو لپاره کول ځکه ځينو کسانو چې همدرد ته رشوت ورکړی نو تعميرونه يې په خپل حال پاته دي.

ويل کيږي چې اوس همدرد د ګرديز ښار شمال ته د دولتي ځمکو په خرڅلاو اوښهرک سازيو هم پيل کړی دی، شهرک سازي د اوسني حکومت د وزيرانو او واليانو لپاره د اختلاس او پيسو پيدا کولو تر ټولو هوسا او بريالۍ چاره بلل کيږي. همدرد چې د ګرديز ــ غزني، ګرديز ــ خوست او مچلغو بند د پروژو له اړخه يې تراوسه ډېرې روپۍ به بډه وهلې، که دغه د دولتي ځمکو د خرڅلاو او تقسيم پروژه يې بريالۍ شي نو ښايي د ولايت ارمان يې ترسره شي.

خلک وايي جمعه خان همدرد په شمال کې د عطامحمد نور مهم سيال دی، د عطامحمد نور په اړه اسناد وايي چې خپله سرمايه يې په تيرو څو کلونو کې يوه مليارد ډالرو ته رسولې ده. دې ته په پام سره ښايي همدرد هم هڅه کوي چې دا ټارګيټ پوره کړي، تراوسه خو د پکتياوالو د شتمنيو د لوټ په برخه کې د همدرد

پروژې خورا ښې روانې دي، خو څو ورځې مخکې په ګردیز کې د همدرد په خلاف لاریون شوی و او د کابل په لین د همدرد د پلویانو او مخالفینو ترمنځ څه ټک او ټوک هم شوی و، چې رسنیو خوله پرې پټه کړه، له دې څخه معلومیږي، چې د همدرد په کاروبار (ولایت) کې کومه ستونزه پېښه شوې ده.

په داسې حال چې همدرد په خپل سیال عطامحمد نور پسې د رسیدلو زور وهي او پکتیاوال شپیلوي، په دې انډوخر کې ماته د همدې ولایت هماغه پخوانی واکدار والي شفیق محمدي رایادیږي، چې په تش لاس یې د ګردیز ښار ښه وربدله کړه، کله چې دغه دوه والیان شفیق او جمعه خان سره پرتله کوم، نو بې اختیاره ووایم چې:

ډېر تفاوت شته په انسان کې د معنی په لحاظ
واړه لګیا دي ځیني ځان ځیني جهان جوړوي





## اسلامي امارت یوازې د الله تعالی په مرسته جنګیږي

۲۰۱۷/ اپریل/۲۵

د افغانستان اسلامي امارت چې یو دیني او جهادي حرکت دی له لومړۍ ورځې یې په قول او عمل ثابته کړې چې یوازې د الله تعالی په نصرت نازیږي او د الله تعالی په ځمکه د الله تعالی نظام غواړي. د همدې هدف په لاره کې اسلامي امارت د خپلې واکمنۍ په مهال پس له څو پیړیو یو ځل بیا د الله تعالی نظام د افغانستان په پاکه خاوره نافذ کړ. د اسلامي امارت شرعي عنوان یې راژوندی کړ. سیاست یې ددین تابع وګرځاوو. شرعي قضا یې جاري کړه. د امر بالمعروف و نهی عن المنکر شرعي وظیفه یې په احسنه طریقه را ژوندی او د دې قرآني حکم د تعمیل لپاره یې ځانګړې وزارت تأسیس کړ. دغه راز یې شریعت په ټوله معنی عملي کړ او د بدعاتو، انحرافاتو او ناروا رسومو مخنیوی یې وکړ.

اسلامي امارت دغه درنه وظیفه په داسې حال کې ترسره کړه چې ورسره د هیڅ هیواد یا تنظیم کومک نه و، علاوه لا دا چې ټوله بې دینه نړۍ یې په مقابل کې ولاړه وه او په هر ګام یې ورته خنډونه اچول. مګر بیا هم اسلامي امارت په خپله شرعي تګلاره کې بریالی و او همدا بریا یې د الهي نصرت څخه د برخمن کیدو نغد ثبوت بلل کیږي.

اسلامي امارت له لومړۍ ورځې په دې عقیده لري چې د الله تعالي په دین اعتصام، د الله تعالی نه کومک غوښتل او د خپل مؤمن اولس ملاتړ د دې لپاره کافي دی چې په برکت یې مجاهدین شرعي ارمانونو ته ورسیږي. د جهاد او

اسلامي نظام په لاره کې له کفري هیوادونو څخه د کومک اخیستل، یا د هغوی په مرستو اتکاء که څه هم ظاهري اسباب د جنګ به برابر کړي مګر په حقیقت کې د جهاد برکت له منځه وړي، د جهاد غایې ته زیان رسوي او د الله تعالی د نصرت د قطع کیدلو سبب ګرځي. لکه موږ چې د پخواني جهاد په وخت کې ولیدل چې د هغه وخت مجاهدین د امریکایانو په کومک نازیدل او په پای کې د جهاد کومه دپام وړ ثمره په لاس رانغله. بلکې همدې د نړیوالو مرستو، وسلو او پیسو مجاهدین دنیاپرست اموخته کړل، له مجاهدینو یې اصلي هدف چې د الله تعالی رضا وه هیره کړه. په مادیاتو مصروف شول او په پای کې د مادیاتو په شوق کې په خپل منځي جنګونو واوښتل او د ټول ملت د جهاد ثمره یې په اوبو لاهو کړه.

اما د افغانستان اسلامي امارت چې د تیر جهاد تجربه یې په مخکې پرته ده. تل خپل هدف ته متوجه دی او همیشه هڅه کوي چې د انحراف او ناکامۍ له اسبابو ځان لري وساتي. نو ځکه خو یې تر اوسه نه له کوم کفري هیواد څخه په جهاد کې د مرستې غوښتنه کړې او نه هم په دې اړه کوم ادنی ثبوت پیدا شوی دی.

خو دا چې اسلامي امارت د نړۍ له ډېر ستر کفري ایتلاف سره په جګړه بوخت دی نو په دې مبارزه کې یو ارام چاپیریال او د سیمې په سطحه د دښمنیو کمولو ته ضرورت لري. اسلامي امارت د دې لپاره چې له غربي کفارو سره په خلاص مټ مقابله وکړای شي. او په راتلونکې کې د سیمې او ګاونډ هیوادونو له ضرر څخه په امن وي همیشه د سیاسي استازو له لارې هڅه کوي چې د سیمې له هیوادونو سره لیدل کتل وکړي او د هغوی د خصمانه موقف د نرمولو او غلط فهمیو د لرې کولو هڅه کوي.





د سفیرانو او استازو په واسطه له نورو مسلمانو یا نامسلمانو هیوادونو سره اړیکي، له هغوی سره مکاتبه او د خپلو اهدافو د حصول په لاره کې له هغوی سره مذاکرات شرعا مشروع عمل دی. له صدر اسلام نه بیا تر اوسه پورې ټولو اسلامي حکومتونو مختلفو هیوادونو ته سفیران لیږلي او په بیلابیلو سیاسي، تجاري او نورو موضوعاتو یې ورسره مذاکرات کړي دي.

دا چې په دې وروستیو کې اسلامي امارت د جهادي او نظامي بریاوو تر څنګ په سیاسي برخه کې هم په نړیواله کچه د پام وړ بریالیتوبونه ترلاسه کړي. د نړۍ ډېر اولسونه یې له خپلې داعیې خبر کړي او د سیاسي کلابندیو ځنځیر یې مات کړی دی. نو د اسلامي امارت نړیوال دښمنان یې سخت پارولي دي نو ځکه یې په دروغو تبلیغات پیل کړي چې د روسیې، ایران، چین او پاکستان په شمول ځینې هیوادونه له طالبانو سره کومک کوي نو ځکه طالبان دومره ځواکمن شوي دي.

په دې لړ کې غربي مطبوعات په خاص ډول د روسیې نوم ډېر اخلي او وایې چې له اسلامي امارت سره مرستې کوي. مګر اسلامي امارت د دغو تبلیغاتو په ځواب کې د یوې رسمي اعلامیې په صدور سره وویل چې اسلامي امارت یوازې د الله تعالی په نصرت او کومک ویاړي او له بل هیڅ هیواده یې کومک نه دی ترلاسه کړی.

په دې اړه د اسلامي امارت لخوا په رسمي نشر شوې اعلامیه کې راغلي دي (له تیرې څه مودې راهیسې ځینې کړۍ د رسنیو له لارې ادعا کوي چې د روسیې هیواد له اسلامي امارت سره نظامي مرستې کوي. اسلامي امارت دا ادعاوې په کلکه ردوي، اسلامي امارت له روسیې هیواد څخه هیڅ ډول نظامي او یا لوژیستیکي مرستې نه دي ترلاسه کړي. اسلامي امارت په تیرو شپاړسو کلونو کې

ثابته کړي چې د الله تعالی په نصرت او د مؤمن اولس د هر اړخیز ملاتړ پـه برکـت له اشغالګرو سره بریالی او پایدار مقاومت کولای شي.

البته یوه خبره باید څرګنده وي چې اسلامي امارت د افغانسـتان د خلکـو پـه استازیتوب د خپل هیواد او اولس د ملي منافعو او آرام راتلـونکي لپـاره د ګاونـډیو هیوادونو او ګڼو نوروسیمیزو هیوادونو سره ښې اړیکې غواړي او په دې برخـه کـې له اړوندو جهاتو سره سیاسي تفاهم یوه ملي اړتیا بولي، خو هیڅکلـه بـه داسـی څـه ونکړی چی له اسلامی او ملی ګټو سره ټکر ولري.

اسلامي امارت د خپلې بشـپړې واکمنـۍ پـه مهـال هـم د سیمې او نـړۍ لـه هیوادونو سره د اړیکو او تفاهم هڅه کوله د نړۍ له هیوادونو سره دغه ډول اړیکـې د هیچا په ضد او د هیڅ لوري په زیان نه دي؛ بلکې د افغانستان خلـک او دا جګـړه ځپلـی هیـواد د دا ډول سـالمو اړیکـو پراختیـا او تقـویي تـه اړتیـا لـري، ځینـي استخباراتي رسنۍ د اشغالګرو په اشاره داسي تبلیغـات کـوي چـې عامـه ذهنیـت پری خراب او د اشغال دوام ته زمینه مساعده کړي، خو زموږ مجاهد ولس به هـیڅ کله د دوی په منفي تبلیغاتو تیر نه وځي.)

اسلامي امارت لکه څنګه چې په رسـمي کچـه د روسـیې او نـورو هیوادونـو د مرستو افواهات رد کړي په عمل کې هم داسې آثار او شواهد نه دي لیدل شوي چې ثابته کړي چې له اسلامي امارت مجاهدینو سره کـوم بهـرني هیـواد مرسـته کـړي وي.

څکه موږ وینو چـې مجاهـدین پـه هماغـو زړو وسـلو او خودسـاخته ابـزارو د دښمن مقابله کوي. هماغه د فقر او غربت ژونـد یـې دی. پـه هماغـو ژیـړو ډبـو او خودسـاخته بـاروتو د امریکایـانو او د هغـوی د ملګـرو ټانګـان الوځـوي. نـه خـو د مجاهدینو په وضعیت کې د وسلو، امکاناتو او لوژیستیک له اړخه کوم څرګند تغیر





لیدل شوی او نه هم کوم بهرني وسائل. د مجاهدینو په لاس کې یوازیني پرمختللي وسائل هغه امریکایي ټوپک او دوربینونه دي چې له یرغلګرو یې په غنیمـت نیـولي دي.

په داسې حال کې دغه افواهات په بشپړه توګه بې اساسه دي. اسلامي امـارت هماغه واقعي امارت دی چې د الله تعالی په نصرت اتکاء لري او همدا الهي نصرت دی چې په برکت یې امارت ورځ تر بلې د فتحو او بریاوو پر خوا مزل لنډوي.

# چرا امارت اسلامی؟

۳/ مارچ/۲۰۱۷

درین زمان مشخص و جغرافیهٔ بنام افغانستان که ما زندگی داریم گروهها، افکار و جنبش های دینی و سیکولار بسیار حاضر صحنه هستند که هر کدام شان دم از حقانیت، عدالت و به آرمغان آوردن نیکبختی میزند. هر یک اش حق و حقانیت را در خود منحصر میداند و بدیگران اتهام بطلان و انحراف می بستد.

درین بازار شلوغ مبارزه و سیاست، گاهی انسان متحیر می شود وبه آسانی نمی تواند که حق را از باطل یا راجح را از مرجوح جدا کند. زیرا شعارهای هر گروه جالب و پرکشش، اما نیات و چهره های واقعی شان زیر غبار همین شعار های کرکننده بوضاحت دیده نمیشود.

من هم یکی از مبتلایان این روزگار هستم که در لابلای زندگانی متعهد، خود را مکلف میدانم تا برای اقامهٔ نظام شرعی، محو فساد و تحکیم عدالت وارد میدان مبارزه جهادی و سیاسی شوم. زیرا فلسفه خلقت انسان روی زمین همین است که رب متعال خود را بشناسد و برای تبلیغ دین، اقامه حدود وعملی شدن شرائع دینی مبارزه و تلاش کند. اما من بحیث یک انسان مکلف چون نمیتوانم در این راستا به تنهایی کار مؤثر و مثمر را انجام دهم خود را مجبور میدانم که وابستهٔ گروه و جماعتی شوم که به حقانیت آن یقین جازم داشته باشم. پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم می فرماید: ید الله علی الجماعه... و در جای دیگر میفرماید: ومن شذ شذ فی النار.

اما من چرا امارت اسلامی افغانستان را انتخاب نمودم و در چوکات همین صف جهادی وارد میدان جهاد و مبارزه شدم؟؟ جواب این (چرا) قرار ذیل است.





اول: من به عوض گروهها و جریان های نشنلستی، لیبرال، سیکولار و د نیاپرست یک صف و جماعت دین محور را انتخاب نمودم زیرا من اعتقاد دارم که زندگی دنیوی یک فرصت فوق العاده مهم، استثنایی و زود گذر است که ما فقط یکبار آنرا تجربه کرده میتوانیم. این فرصت را نباید در پی اهداف پست چون حصول مال، شهرت، منصب و یا کدام هدف دیگر مادی و دنیوی از دست داد. دنیای که نزد خداوند متعال به اندازهٔ یک پر پشه هم اهمیت و وزن ندارد از نظر منزلت و اهمیت اصلا با دین و اهداف ماندگار دینی قابل مقایسه نیست. از همین رو جماعت ها و گروههای که خط مشی و برنامه های شان منحصر به عیش دنیوی و کسب مال و شهرت هستند از نزد من بحیث یک مسلمان، جریان های واهی و گمراه هستند که نمیتوانند مارا به نیکبختی برسانند.

دوم: امارت اسلامی از میان جریان های اسلامی و جهادی آن جماعت است که تا حال کردار و کارنامه های شان همسان به شعارها و وعده های شان بوده اند. اگر از بدو تاسیس خود وعدهٔ از محو فساد، هرج و مرج و فتنه های گوناگون داده بود، همه دیدیم که آن وعده را بوجه احسن بسر رساند. در مرحله حاکمیت و حکومت فساد را ریشه کن ساخت، از سر، مال و عزت هموطنان محافظت نمود. عناصر فاسد و خرابکار که بعد از مرحله جهاد درین کشور هرج و مرج و جنگهای ذات البینی را آغاز کرده بودند از اریکهٔ قدرت دور نمودند تا ملت مظلوم از شر و اذیت شان در امان شدند.

امارت اسلامی اگر بیرق تطبیق شریعت را برافراشته بود و سنگ تحکیم و تطبیق شریعت بر سینه میزد، همهٔ ما دیدیم که در حین بدست گرفتن قدرت، حدود و شریعت اسلامی را بوجه احسن و عملا تطبیق نمود. از امر بالمعروف و نهی عن المنکر گرفته تا قضاء و معارف اسلامی همچنان اصلاحات دینی که در عرصه های

تقنینی، اداری، اقتصادی، تعلیمی، فرهنگی، اجتماعی و تمام عرصه های زندگی تطبیق نمود و یکباردیگر زمین خدا را به قانون الهی منور ساخت.

سوم: امارت اسلامی از نظر فکری و منهجی معتقد با آن مسلک است که سواداعظم از امت اسلامی با آن باور دارند. امارت اسلامی از لحاظ اصول معتقد به عقیدۀ اهل السنه و الجماعه است که هم در زمان معاصر و هم در ادوار سابقۀ تاریخ اکثریت قاطع مسلمانان همین عقیدۀ را داشته است. و در فروع و مسائل فقهی همچون مؤسس و امراء این جماعت تمام افراد رهبری اش باور به تقلید دارند که اهل تقلید هم از خیرالقرون تا اکنون پیوسته سواد اعظم امت اسلامی بوده اند و در مذاهب اربعه مذهبیکه بیشترین پیروان و اتباع دارند مذهب حنفی هست که امارت اسلامی تمام مواقف را موافق به همین مذهب اتخاذ مینماید. از جائیکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرموده است: لایجتمع امتی علی الضلاله... امت من بر گمراهی جمع نمیشوند. و امارت اسلامی هم در اصول وهم در فروع منهج و مسلک موافق با سواد اعظم امت داردما نمیتوانیم که در حقانیت مسلک و منهج امارت اسلام شک و تردید نماییم.

در این مورد یکی از مزایای امارت اسلامی این است که مثل سائر گروهها تعصب مذهبی و مسلکی ندارد هر مسلمان را برادر خود میداند و ما دیدیم که تمام مجاهدین جهان را که وابسته به مفکوره های گوناگون اسلامی بودند، در آغوش خود جا دادند و از آنها بقربانی کردن حکومت خود نگهداری نمودند که این گونه وسعت النظر و برادر اندیشی نسبت به مسلمانان جهان در دیگر گروههای جهادی معاصر تا حال دیده نشده است.

چهارم: امارت اسلامی اعتقاد بجزئیت و انحصار دین در یکی از شعبات اش ندارد. چنانکه جهاد مسلح یکی از فرائض دینی می پندارد مبارزه سیاسی، فرهنگی، دعوتی و هچنان تعلیم و تعلم، تزکیه و تصوف، دعوت و تبلیغ و پیشرفت و رفاه





اقتصادی مسلمانان و سائر شعبه های خدمت دینی هم برحق و ضروری میداند و بر تعمیل آن پافشاری دارد. امارت اسلامی مصلحت اندیشی برای جلب منفعت و دفع ضرر از مسلمین را بحیث یکی از اصول پالیسی خود قرار داده است و تا جاییکه مصلحت معارض با دساتیر والای شرعی نباشد از ان استفاده میکند.

پنجم: امارت اسلامی هر نوع تعصب را مذموم می پندارد و آن را یکی از میراث های عصر جاهلیت میداند. قوم پرستی، نژاد پرستی، سمت پرستی و دیگر انواع تعصب تا حال در امارت اسلامی مشاهده نشده است. امارت اسلامی یگانه تنظیم عصر حاضر است که در تمام ولایات و اطراف افغانستان و درتمام اقوام و اقشار ملت طرفدار دارد و همچنان بسطح جهان و امت اسلامی نسبت به تمام تنظیم های جهادی بیشترین محبوبیت و ارادت مسلمانها را کمایی کرده است.

ششم: یکی از ویژه گی های امارت اسلامی اعتدال و وسطیت است. تا حال در مواقف و پالیسی های جنگی و یا سیاسی امارت اسلامی دیده نشده است که جوش را بر هوش ترجیح داده باشد. اقدامات انتقام جویانه، عجولانه و ناشی از جذبات و احساسات در پالیسی امارت اسلامی جای ندارند. امارت اسلامی نه افراطی را برسمیت میشناسدکه مبنی بر خواهشات و اجتهادات ذاتی و معارض با فقه اسلامی باشد و نه هم تفریطی که در آن حدود و ارشادات شریعت غرای محمدی زیرپا شوند، بلکه راه امارت راه اعتدال و وسطیت است، در هر نوع تصامیم و اتخاذ مواقف شریعت اسلامی بحیث مرجع اول و آخر قلمداد شده است.

هفتم: امارت اسلامی بر بی احتیاطی در تکفیر، تفسیق و تقتیل مردم باور ندارد و در این موارد بیشترین احتیاط، هوشیاری و اتباع شریعت را وظیفۀ خود میداند. در تاریخ بیس سالۀ امارت اسلامی تاحال دیده نشده است که امارت اسلامی کدام گروه اسلامی را تکفیر کرده باشد و یا بلا موجب و دلیل شرعی علیه کدام فرد یا گروه سلاح برداشته باشد. خون یک مسلمان برای امارت اسلامی همان ارزش دارد

که شریعت مقدس بر آن تاکید نموده است. هیچ کس اجازه ندارد بدون حکم محکمهٔ شرعی کسی را بکشد و یا آنرا زجر دهد. امارت اسلامی در مورد جلوگیری از تلفات ملکی بیشترین اقداماتی را براه انداخته است و برای همین امر یک اداره مستقل تشکیل داده است تا در عملیات جهادی خدانخواسته به مردم بی گناه آسیب نرسد.

هشتم: و در نهایت باید بگویم که امارت اسلامی در روی چشم ما امتحان داده است. هم در مقابل فساد و مبارزه با هرج و مرج و هم در تطبیق شریعت و اقامهٔ نظام اسلامی. اما سخت ترین امتحان که امارت اسلامی از آن پیروز بر آمد، تهاجم جهانی صلیبی علیه امارت اسلامی بود. امارت اسلامی در مقابل این تهاجم فراگیر بسیار با عزم راسخ و ایمان محکم ایستادگی کرد. یک قدم هم از اصول و مبادئ خود عقب نشینی نکرد و با توکل بخدا علیه اشغالگران جهانی جهاد مقدس را ادامه داد تا این که مناطق بیشتر افغانستان را از لوث اشغالگران تصفیه نمودند.

مرحلهٔ تهاجم امریکایی و اشغال کشور در حقیقت یک مرحلهٔ مهم امتحانی برای امارت اسلامی بود که لله الحمد امارت اسلامی از این مرحله کامیاب برآمد که همین کامیابی و استقامت بی پیشنه برای ما کافی است تا آن را بحیث دلیل حقانیت امارت اسلامی بپذیریم.





# د یوه خبریال غلط معلومات

۴/جنوري/۲۰۱۲

په اسلامي علوموکې د علم الجرح والتعدیل لوی امام او د صحیح البخاري شارح حافظ ابن حجر العسقلاني (رحمه الله) یوه خبره کړې، چې په عامه ژوند کې په ځینو باندې کټ مټ د کاڼي دکرښې په شان تطبیقیږي. علامه وايي (من تکلم في غیر فنه أتی بالعجائب) ځوک چې د داسې علم یا کار په باره کې غږیږي چې ترې خبر نه وي، نو عجائب به ترې واورئ. په حافظ ابن حجر دې الله تعالی رحمتونه وکړي، نن مې یې خبره بیخي زړه ته ولوېده، هغه څنګه؟

نن مې چې خبریال ویب پاڼه پرانیسته، د بي بي سي د پخواني خبریال ښاغلي میرویس افغان په قلم له لیکل شوي هغه مطلب سره مخ شوم، چې نوموړي په کې د طالبانو د اسلامي تحریک د پیل په اړه خپل معلومات ارائه کړي وو.

میرویس افغان لیکلي وو (د ۱۹۹۴ کال په اکتوبر کې د طالبانو یوه شاوخوا (۲۰۰) کسیزه ډله چې مشري یې ملا اخترجان کوله، د ډیورنډ د پولي سره جوخت پر سپین بولدک ولسوالي ورغلل. په دې ولسوالي کې هغه مهال د ګلبدین حکمتیار د حزب اسلامي ځواکونه مېشت وو او په جنوبي افغانستان کې د حزب اسلامي د وسلو د یوه لوی زېرمتون په نوم یادېدله)

تر دې کرښو وروسته میرویس افغان خپلې اصلي اعجوبې غږوي، نوموړی د پاکستاني کاروان کیسه کوي، چې له کوټې د ترکمنستان په نیت روان شوی و و اوپه تعجب آوره توګه ورسره لیکي (د طالبانو قوماندانان ملا بورجان او ترابي له څو تنو وسلوالو ملګرو سره هم دغه کاروان بدرګه کاوه. د ۱۹۹۴ دنومبر پر ۲ نیټه له

کندهار څخه ۲۵ کیلومتره لرې کندهار هوایي ډګر ته نږدې په تخت پُل سیمه کې د منصور اڅکزي او امیر لالي د قومندانانو له خوا ودرول شو. ظاهراً له دغه کاروان نه یادو قوماندانانو خپله ونډه غوښته خو په اصل کې دا یو سیاسي عمل وو او اصلي غوښتنه داوه چې پاکستان د وسله والو طالبانو له ملاتړه لاس واخلي)

که د میرویس افغان په لوړو عجائبواو غرائبو باندې مفصل بحث کوو، نوښايي يو كتاب خبرې وغواړي، خو د دې په خاطر چې لوستونكي مو هم نه وي خسته كړي، تر يوځو سرليكونو لاندې غواړو، د ښاغلي ميرويس افغان د لوړو منحصر بنفسها موندونو او معلوماتو غش او جعل درته رابرسيرن كړو.

## د طالبانو تحریک څه وخت اوله کومه ځایه پیل شو؟

میرویس افغان فرمایلي، چې طالبان د پاکستاني کاروان ملګري وو، چې له کوږک واوښتل او د بولدک په ولسوالۍ یې برید وکړ. ښایي د کندهار ښېر کلن ماشوم هم په دې اړه تردید ونه لري، چې د طالبانو تحریک له کومه پیل شواو له کومې خوا په بولدک ورغلل؟؟ د میرویس افغان د ادعاء په خلاف چې د طالبانو د تحریک پیل د ۱۹۹۴ په اکتوبر کې په بولدک ولسوالۍ له برید څخه انګیري، په حقیقت کې دا تحریک له دې نیټې دوه نیمې درې میاشتې وړاندې د همدې کال د اګست په میاشت کې د کندهار د ژړۍ ولسوالۍ د سنګ حصار له سیمې پیل شوی و. د میرویس افغان د معلوماتو خلاف طالبانو بولدک د ۱۹۹۴ کال په اکتوبر کې نه بلکې په نومبر کې ونیو، دغه راز په بولدک له ختیځ (چمن) څخه نه، بلکې له لویدیځ کندهار څخه راغلل، په دې اړه که لاندې وضاحت وګورئ پوه به شئ چې د بولدک د نیولو کیدو په اړه د میرویس افغان د دروغو ګراف څرنګه ۱۸۰ درجو ته لوړ شوی دی.





کیسه داسې وه چې طالبانو په سنګ حصار او کشک نخود کې د ټوپکیانو له تصفیې وروسته د میوند او ډنډ ولسوالیو نورو سیمو خپلو نفوذ پراخ کړ او په ډنډ کې یې یوه مؤقته مرکزي قرارګاه جوړه کړه، چې له همدې ځایه یې د بولدک او د کندهار د نورو سیمو د نیولو پروګرام ترتیب کړ.

د میرویس افغان معلومات چې سړی مطالعه کوي، نو د هغه مهال د وضعیت په اړه، سړي ته بیخي خالی الذهنه ترپام ورشي، ځکه نوموړی په دې اولنیو شیبو کې د طالبانو جنګي مشر (اخترجان) بولي، پداسې حال کې چې دب ولدک د کدنې اوسیدونکی اخترجان هغه ټوپکمار قومندان و، چې د تنظیمي انارشیزم په مهال یې ځان د بولدک ولسوال باله او خلک یې سخت ځورول چې بیا په بولدک د طالبانو د برید په مهال یې واکمني ختمه شوه. باید ووایو چې د طالبانو د تحریک په دې اولنیو شیبو کې تعرضي قومندان او جنګي مشر- د کندهار د ارغنداب د منارکلي اوسیدونکی شهیدملامحمد اخند و، نوموړي د ژړۍ او میوند ولسوالیو له تصفیې وروسته په ډنډ کې مرکز جوړکړ او له همدې ځایه یې د بولدک ولسوالۍ د نیولو تکل وکړ. د افغانستان د معاصر تاریخ لیکوال مرحوم محمد ابرهیم عطایي په دې اړه لیکي (په دې وخت ۱۹۹۴ کې یو ځوان پنځه دیرش کلن ملا طالب چې په جهاد کې یې هم اشتراک کړی و د ملامحمد عمر آخند په نامه راپورته شواو د خپل مسجد څخه یې چې د کندهار په سنګیسار کې وو د کندهار څخه د پاټکونو د ایسته کولو او د فساد د ورکولو اراده یې وکړه او د طالبانو د تحریک پیلامه یې کینښودله) مرحوم عطایي وروسته پسې زیاتوي (طالبانو د ۱۹۹۴ کال د نوامبر په اوائلو کې سل کسه طالبان په دوو لاریو کې بولدک ته ولیږل، هغوی په سپینه ورځ د بولدک ولسوالي ونیوله او په دې ترځ کې د ګلبدین حکمتیار د وسلو یو ډېر غټ ډیپو په لاس ورغی او دغو وسلو د طالبانو ملا ورټینګه کړه... د افغانستان معاصر تاریخ ۳۹۰ صفحه)

## دپاکستان تجارتي کاروان او طالبان

په څپله وروستۍ لیکنه کې میرویس افغان هم د یو زیات شمیر نورو لیکوالو غوندې د طالبانو د اسلامي تحریک د راپورته کیدو په مهال د پاکستان د تجارتي کاروان د قضیې د اصلي واقعیت په اړه د سخت جهالت یا تجاهل ښکار شوی دی، چې خبرې یې له اصلي واقعیت سره بیخي اړخ نه لګوي. د طالبانو یوشمیر مخالف افغان او نړیوال لیکوال داسې تبلیغوي، چې د طالبانو تحریک د پاکستان د بې نظیر بوټو حکومت د دې لپاره جوړ کړ، ترڅو د منځنۍ اسیا په لور غځیدلې لاره پرې تصفیه کړي. دوی دلیل راوړي چې له همدې امله د طالبانو تحریک او پاکستانی تجارتي کاروان د بولدک ولسوالۍ ته په یوه ورځ راورسیدل، په دې برخه کې دوی خپل استدلال په همدې ځای نهایي کوي اودې پوښتنو ته ځواب نه وایي چې:

۱ - که طالبان د دې لارې د تصفیې لپاره راپنځول شوی وو، نو چې کله طالبان ترهراته ورسیدل، ولې یې د واکمنۍ ترپایه په دې لاره یو پاکستانی کاروان هم تېر نه شو؟؟

۲ - چې طالبان د دې لارې لپاره راپورته شوي وو، ولې نصیرالله بابر د کندهار ټوپکي واکمنو خان محمد، امیر لالي او ګل اغا سره تړون کړی وو، ترڅو د کاروان په مخ کې خنډ جوړ نه کړي او له کندهاره تیریدل یې تضمین کړي؟؟

۳ - تاریخي شواهد ښیي، چې پاکستانیانو هغه مهال په هرات کې د خپل قونسل کرنېل امام په توسط له اسماعیل خان څخه هم د دې کاروان د تیریدلو موافقه اخیستې وه، نو چې طالبانو د بولدک په تعقیب کندهار او هلمند فتحه کړل او د فراه تر حدودو ورسیدل، هغه څه وجوهات وو چې د پاکستان تجارتي کاروان یې بیرته له نیمې لارې ستون کړ.





دا هغه پوښتنې دي، چې د لوړ غلط نظر هیڅ درلودونکی ورته ځواب نه لري، ځکه که ځواب ورته وایي نو بیا د دوی اصلي معاندانه څیره بربنډیږي او د استدلال ظاهري صحت یې په اوبو لاهو کیږي.

واقعیت دا دی چې د طالبانو تحریک د دې کاروان له موضوع څو میاشتې وړاندې په ژړۍ او میوند کې پیل شوی و. کله چې طالبان بولدک ته ورسیدل تصادفا دغه پاکستانی تجارتي کاروان هم ویش باډر ته راورسېد او نیت یې و چې د کندهار او هرات له لارې ترکمنستان ته واوړي. دلته چې کله طالبان له پاکستاني کاروان سره مخامخ کیږي، نو کاروان دروي او غوښتنه ترې کوي چې بیرته د پاکستان په خوا وګرځي. وروسته د ویش باډر د افغان تجارانو سره تر سلا مشورو وروسته طالبان له پاکستانیانو غوښتنه کوي چې د دې کاروان د تېریدو په مقابل کې دې د کراچۍ په بندر کې د افغان سوداګرو په ترانزیت راغلي مالونه چې له ډېره وخته بند پاته و خوشي کړای شي، ترڅو د دوی تجارتي کاروان ته هم د حرکت اجازه ورکړل شي. دا مهال چې د کندهار واکمن قومندانان (هغوی چې له نصیرالله بابرسره یې د کاروان د امنیت ژمنه کړې وه) د لیک او احوال په واسطه له طالبانو غوښتنه کوي، چې کاروان خوشی کړي، طالبان ځواب ورکوي چې ستاسو په کړې ژمنه موږ مکلف نه یو نو ځکه کاروان ته اجازه نه شو ورکولای.

میرویس افغان د خپلې ویب پاڼې (خبریال) په یوه برخه (داځیرې دهیریدونه دي) کې د طالبانو د اسلامي تحریک د یوه لیکوال شهید ملا محمد حسین مستسعد په اړه خپل عقیدت په خورا ښه توګه وړاندې کړی دی. دا چې نوموړی شهید مستسعد ته عقیده لري او یو رښتینی، امانت کار او سپیڅلی شخص یې بولي، دلته به د یاد جریان په اړه د مستسعد صاحب له کتاب (دسنګر طالبه مبارکۍ ته به درځم) څخه یوه برخه ورته راواخلو، ترڅو یې زړه اوبه پرې وڅښي.

شهید مستسعد لیکلي (له پاکستان سره زموږ علاقه او برخورد لومړی هغه مهال رامنځ ته شو چې منځنۍ اسیا ته تلونکې د نصیرالله بابر قافله د وېش په باډر راواوښته، له دې نه یوه ورځ وړاندې مونږ بولدک او وېش نیولي او د تحریک په رسمي افتتاح چې په ژړۍ او میوند کې پیل شوی و تقریبا درې میاشتې اوښتې وې. دغه مهال مونږ قافله ودروله او لارۍ مو له حرکته راستنې کړې، پاکستانیانو استدلال وکړ چې مونږ د قندهار له قومندانانو سره د یوې موافقې او جوړجاړې له مخې دا قافله راروانه کړې ده، خو مونږ ویل چې مونږ د هغو تعهد ته ژمن نه یو اوس د دې سیمې واک زموږ به لاس کې دی او ترڅو چې د کراچۍ په بندر کې په ترانزیت راوړل شوي، د افغان تجارانو مالونو ته چې په همدې حال کې له مونږ سره په جریان کې و اجازه نه وي ورکړل شوي، قافلې ته اجازه نشته. په دې وخت کې له بیا بیا اصرار سره د کندهار قومندانانو ګل اغا، امیرلالي او خان محمد خطونه هم طالبانو ته ولیږل چې مونږ پاکستانیانو ته مه ګرموئ، مونږ تعهد ورسره کړئ او موټرو ته لاره ورکړئ، په دې اړه که څوک شک لري وردې شي د ګل اغاشیرزي په ګډون د کندهار له قومندانانو او د ویش او بولدک له ګردو تجارانو دې پوښتنه وکړي)

## پایله

له لوړو وضاحت څخه معلومه شوه، چې ښاغلي میرویس افغان په خپله لیکنه خورا غلط او سرچپه معلومات راټول کړي او بیا یې دی وه مهم تاریخي رویداد د تحلیل په بڼه دلوستونکو مخته ایښي دي. دا ډول بې بنسټه تحلیل که کوم له یادو پیښو واقف سړی مطالعه کوي، نوښایي باور پرې ونه کړي مګر هغه څوک چې د افغانستان او دلته له ترسره شویو پیښو څخه لرې پاته شوي دي، که دا ډول





تحلیلونه ګوري نو شاید رښتیني یې وبولي چې په دې ډول به په لویه ګمراهۍ او غلط فهمۍ کې پریوځي.

د خبرو په مهال په کومه جمله کې که څوک خطا وځي، نو ښایي ډېر ورانی یې نه وي جوړ کړی، ځکه د خبرو یا الفاظو په اړه علماء فرمایي (اذا وجد فتلاش) یعني الفاظ یا خبرې چې څنګه موجودې شوې نو په دنیایي اعتبار بیرته دستي ورکیږي. خو لیک او لیکنه چې خورا اوږد عمر لري، باید انسان په کې ډېر احتیاط وکړي، ترڅو ترې غلطي ونه شي، ځکه د هر انسان په لیکلو آثارو او لیکنو باندې چې د (لارښوونې یا ګمراهۍ) کومې پایلې مرتبیږي اجر او مواخذه به یې د لیکونکي په غاړه وي.

په پای کې باید ووایو چې لیکنه او د هر ډول پیښو په اړه د نظر څرګندول زما، میرویس افغان او بل هر چا حق دی، خو د لیکنې محتوا باید رښتینې، دقیقه او مستنده وي. معاندانه او له غش او جعل نه ډکه لیکنه له دې پرته چې په دنیا کې او آخرت کې مو د تندي داغ او د اوږو پیټی شي، بل هیڅ نتیجه هم ترې نه شو بود کولای.

# د برما دقضيې په اړه د اسلامي امارت مسؤلانه او منبهانه کردار

۲۸/ جولای/۲۰۱۲

د برما د مسلمانانو د مظلوميت او محکوميت داستان خورا اوږد او پخواني دی. ښايي داد ځمکې د مخ تر ټولو مظلوم او عاجزه انسانان وي، چې له تيرو دوو پيړيو راهيسې د ظالم بودايي اکثريت د جبر او غضب تر ميچنې لاندې ساه اخلي.

په برما کې د مسلمانانو شمير د دې هيواد د ټول نفوس يوازې په سلو کې څلور جوړوي، همدا د شمير لږوالی او د دې هيواد ځانګړی جغرافياوي، قومي، مذهبي او سياسي جوړښت د دې لامل ګرځيدلي، چې د برما په مسلمانانو تر ټولو بوږنوونکي مظالم پيړۍ پيړۍ په داسې توګه دوام پيدا کړي، چې نوره نړۍ ترې ډېره لږ خبره او په وړاندې يې کوم عکس العمل ونه ښيي.

د برما په مسلمانانو د ستم نوی توپان له هغه وروسته په څپو شو، کله چې د روان کال د جون مياشتې په دريمه نيټه په پلازمينه رنګون کې د پوځ له خوا د څو تنو بې ګناه مسلمانانو ترشهادت وروسته په اراکان ولايت کې ځينو مسلمانانو اعتراضيه مظاهرې وکړې او په دې توګه يې واکمن مستبد پوځي رژيم ته د انتقام اخيستلو بهانه په لاس ورکړه.

واکمن مستبد حکومت چې له دې وړاندې يې هم بيا بيا له برما څخه د مسلمانانو د يومخيزې شړنې ظالمانه عمليات سرته رسولي، دا ځل يې بيا د مسلمانانو په يو اړخيز قتل، بې کوره کولو، بنديانولو، کورونو لوټلو او نړولو باندې لاس پورې کړ، او د دې کار لپاره يې د مسلمان ميشتو سيمو اوسيدونکي بودايان هم ورسره اشر کړل. د ورکړل شويو معلوماتو له مخې د جون د مياشتې له دريمې بيا د دې مياشتې ترپايه پورې د برما په مختلفو سيمو کې نږدې شل زره مسلمانان د بودايانو لخوا په شهادت ورسيدل، سلګونو کلي يې لوټ تالان او بيا د اور خوراک شول او زرګونه مسلمانان له خپلو کورونو کډوال او اجباري کوچ ته اړ کړای شول.

څرنګه چې د برماحکومت په دې هيواد کې آزادو مطبوعاتو ته د فعاليت اجازه نه ورکوي نو ځکه تر ډېره وخته د برما په مسلمانانو روان ستم هم پټ پاته و. کله چې د ځينو خپلواکو سرچينو څخه په انفرادي شکل د دې جنايت جزيات مطبوعاتو ته افشاء شول او په فيسبوک، ټويټر او نورو اجتماعي رسنيزو شبکو کې د برما د مظلومو مسلمانانو لړزوونکي انځورونه نشر شول، نو بيا هم يو شمير د شعور څښتنانو ويل چې دا جعلي انځورونه دي. دوی به ويل چې دا انځورونه د برما نه بلکې پخوا د هندوچين په حوزه کې له سيلاب ځپلو او نورو مصيبت وهليو څخه اخيستل شوي دي او اوس مسلمانان ترې سياسي استفاده کوي.

د تعجب ځای دا دی، چې په نننۍ مطبوعاتي نړۍ کې چې هيڅ وړه خبره پټه نه پاتيږي او ډېر ژر د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسيږي، د برما د مسلمانانو ددومره ستر مصيبت په اړه بيا هم ټوله نړۍ ړنده او کڼه وه. د بشر د حقوقو ټول تنظيمونه او فعالان او د نړيوال عدالت توغ ليږدوونکي ټول په يوه اتفاق ګونګ پاته وو. حتی ترديې چې هيڅ د پاموړ آزادې رسنۍ هم په دې اړه کومه مستقل راپور جوړ نه کړ، چې د برما د مظلومو مسلمانانو زار حالت لږ رڼا ته کړي.

دا حالت تقريبا د جولای مياشتې تر نيمايي پورې روان و، ترديې مهاله د برما د سترې فاجعې په اړه مطبوعاتي چلند يوازې په ګونګوسو او ضمني يادونو کې خلاصه کيده او د کومې رسمي يادونې مخ يې نه و ليدلی.

د جولای د میاشتې په ۲۰ مه نیټه د افغانستان اسلامي امارت د دې قضیې په اړه خپله رسمي اعلامیه نشر کړه او د برما د مسلمانانو قتل عـام یـې پـه کلکـو ټکـو وغانده. اسلامي امارت په خپله اعلامیه کې نه یوازې دا جنایـت تقبـیح کـړ، بلکـې ډېر تمرکز یې د دې جنایت په وړاندې د نړیوالو سیاسي او مطبوعـاتي جهتونـو پـه ناځوانمردانه چلند باندې وکړ، دا وړ چلند یې د نړیوالو مختلفو جهاتو لپـاره دشرم وړ وباله، چې دومره ستر جنایت روان دی، خو سیاسي او مطبوعاتي نهادونه یې پـه وړاندې چوپه خوله پاته دي او هیڅ عکس العمل نه ښیي.

د نړیوالو په ادرس د اسلامي امارت دا تنبیهي او توبیخي پیغام خـورا مهمـې او د پاموړ پایلې درلودلې. له دې اعلامیې وروسته د برما قضـیې تـه د نړیـوال پـام اوښتو، مختلفو موضع گیریو، بیان ورکولو او غبرگون ښودلو څخـه داسـې ښـکاري، چې د برما د مسلمانانو په اړه د اسلامي امارت اعلامیې خپل مطلوب هـدف ترلاسـه کړی، د دې قضیې په اړه یې نړیوال له غیرموجه غفلت څخه رابیدار کړي او رسنۍ یې دې ته وداره کړي ترڅو دا قضیه تر خپل خبري پوښښ لاندې راولي.

د رمضان په لومړۍ نیټه اسلامي امارت د برما د قضیې په اړه نړیوال سـیاسي او مطبوعاتي پام راوننگاوه، چې په دوهمه یې د عفوې نړیوال سازمان په لومړي ځل د برما د قضیې په اړه خپل غبرگون په ډاگه کړاو له اوږد ځنډ وروسته یې پـه خپـل رسمي بیان کې وویل چې له تیرو څو اونیو راهیسې د برما په لویدیځ ایالت اراکـان کې په زرگونو مسلمانانو د وژونکو بریدونو او لوټ تالان هدف گرځیدلي. د رمضان په دوهمه د متحدو عربي اماراتو حکومت هم په رسمي توگه غوښـتنه وکـړه چـې د ملگرو ملتونو د بشري حقوقو سازمان دې د برما د وضعیت په اړه یوه عاجلـه ناسـته راوبولي، داماراتي رسنیو د راپور له مخې د دې هیواد خارجه وزیر شـیخ عبـد اللـه بن زاید آل نهیان د (اسلامي همکارۍ سازمان) له مشر اکمل الـدین احسـان اوغلـو سره د تیلفون له لارې د برما په موضوع خبرې وکړې او غوښـتنه یـې وکـړه، چـې د





اسلامي همکارۍ سازمان باید پـه ټولـو امکانـاتو د برمـا د مسـلمانانو همکـارۍ تـه ورودانگي.

د رمضان په دریمه نیټـه د الجزیـرې نړیـوال ټیلـویزوني چینـل چـې اسـلامي امارت په خپله اعلامیه کې د برما په اړه د ځانگړې پام اړونې غوښتنه ترې کړې وه، د برما په اړه یې یو خورا تفصیلی راپور نشر کړ او د دې هیواد د مظلومو مسـلمانانو وضعیت یې نړۍ ته په خورا ښه ډول وړاندې کړ.

دغه راز په همدې ورځ په غزه کې پـه سـلگونو فلسـطینیان راجمـع شـول او د برما د مستضعفو مسلمانانو په ننگه یې مظـاهره وکـړه. د (رابطـة علـماء فلسـطین) مشر ښاغلي سالم سـلامة پـه دې مراسـموکې پـه نړیوالـو اسـلامي او نـورو حقـوقي سازمانونو غږ وکـړ چـې د برمـا د مسـلمانانو مرسـته وکـړي. ده وویـل: دا ډېـره د افسوس وړ ده چې د برما د مسلمانانو ټولنیز استئصال (بیخ کني) روانه دی او نړۍ یې په وړاندې چوپه ده.

د رمضان په ځلورمه نیټه اروپایي اتحادیې هم په لومړي ځـل د برمـا د قضـیې په اړه غبرگون وښود او د دې هیواد د بودایي مستبد رژیم ظالمانه چلند یې تقبـیح کړ، د ترکیې د خبري اژانس د راپور له مخـې د اروپـایي اتحـادیې د بهرنیـو اړیکـو مسؤلې کاترین آشتون وویل چې اروپایي اتحادیه د برما قضیه له نږدې څاري، هلته په رښتیا په روهینگا مسلمانانو باندې خورا سخت ظلم روان دی، اروپـایي اتحادیـه به له سیاسي لارو د دې مسـئلې د حـل کوښـښ وکـړي او د بې کـوره شـویو وگـړو مرسته به وکړي.

د رمضان په پنځمه د (الهیئة الشرعیة للحقوق والاصلاح) په نامـه یـوه مصرـي معتبر حقوقي سازمان هم د برما د قضیې په اړه یوه مهمـه اعلامیـه نشرـ کـره. دې سازمان په خپله اعلامیه کې په دې حدیث (مثل المـؤمنین پـه تـوادهم وتـراحمهم

وتعاطفهم مثل الجسد) په استناد سره وویل چې د برما مسلمانان زموږ د بدن یوه ټوټه ده، ډېره موده کیږي، چې زموږ د بدن په دې ټوټه اور بلیږي، خو موږ (مسلمانان) بیغمه او د غفلت په خوب ویده یو. په اعلامیه کې اسلامي او په ځانګړي توګه عربي حکومتونه توبیخ شوي وو چې ولې تراوسه د دې موضوع په اړه غافل دي، په دې اعلامیه کې له عربي حکومتونو غوښتل شوي وو چې هغه برمایي نامسلمان کارګر چې په عربي هیوادونو کې مزدوری کوي، له دې هیوادونو دې وایستل شي ترڅو د برما په حکومت اقتصادي فشار راوړل شي.

د رمضان د میاشتې په اوومه نیټه د ترکیې حکومت هم په لومړي ځل د برما د قضیې په اړه غبرګون وښود، د دې هیواد د رئیس الوزراء رجب طیب اردوغان نائب (بکیر بوزداغ) او د عدالت او پراختیا ګوند مرستیال (حسین طایریفیردي) دواړو د مسلمانانو په وړاندې د برما د حکومت چلند تقبیح کړ او په دې اړه یې د نړیوالې موقف ګیرۍ غوښتنه وکړه.

د برما په اړه د اسلامي امارت د بیداروونکې اعلامیې تر صدور وروسته په دومره کم زماني واټن کې له مختلفو معتبرو جهاتو د داسې غبرګونونو راپورته کیدل او د برما قضیې ته د نړیوال سیاسي او مطبوعاتي پام اوښتل په ډاګه کوي، چې د برما د مستضعفو او مظلومو مسلمانانو په ملاتړ د اسلامي امارت لومړني مخلصانه غږ خپل مطلوب هدف ترلاسه کړی دی.

په داسې حال کې چې اسلامي امارت په اعلامي برخه کې له خورا ډېرو نړیوالو موانعو سره مخامخ دی او نړیوال مطبوعات هم ورسره معاندانه چلند کوي، خو دا چې بیا هم د اسلامي امارت غږ د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسیږي او اولسونه، حکومتونه، تنظیمونه او افراد رابیداروي، یوازې یې الهي مرسته او د نړۍ د مستضعفو مسلمانانو په اړه د امارت د مخلصانه کردار برکت بللی شو.





باید ووایو چې د دا ډول بین المللي او بین الاسلامي مسائلو سره همداسې له بصیرت نه ډک او په مناسب وخت مناسب چلند، کولای شي د اسلامي امارت نړیوال اعتبار ته نوره هم وده ورکړي. په ځانګړي ډول د اسلامي امت مسائلو ته اعتناء او له شته امکاناتو په استفاده یې په ننګ دریدل په اسلامي امارت د مسلمان امت باور نور هم ځواکمنوي.

نن سبا بې له تردیده ویلی شو چې موږ په هغه زمانه کې اوسو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې یادونه کړې وه (بدأ الاسلام غریبا وسیعود کما بدأ) نن سبا مسلمانان د نړۍ په ګوټ ګوټ کې تر ټولو غریب، نااشنا او بې څوکه مخلوق بلل کیږي. مسلمانان د نړۍ په ګوټ ګوټ کې له مختلفو سیاسي، اقتصادي، کلتوري او رواني مصائبو سره لاس او ګریوان دي، چې په وړاندې یې د کفري رژیمونو غوندې تش په نامه مسلمان حکومتونه هم په ناځوانمردانه توګه ګونګ پاته دي.

نن سبا د مستضعفو مسلمانانو سترګې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې یوازې هغو مسلحو مجاهدینو ته دي، چې د اسلامي امت د عزت او سرلوړۍ لپاره مبارزه کوي. څرنګه چې د افغانستان اسلامي امارت د اسلامي نړۍ په سطحه یوه له مهمو جهادي اسلامي خوځښتونو څخه دی، باید چې د خپلو نړیوالو اراتمندانو او مخلصینو هیلې او ارزوګانې همیشه په یاد ولري، او لکه څنګه یې چې د برما د مسلمانانو څخه په خپل وخت ملاتړ څرګند کړ همداسې د امت نورو قضایاو ته هم متوجه واوسي. موږ باور لرو چې الله تعالی به د اسلام او مسلمانانو په ملاتړ د اخلاص په هر حرکت کې برکت اچوي او په کوچنیو هڅو به لوی لوی نتائج مرتب کوي. ان شاءالله.

# اسلامي نظام د ټولو په خير دی، حتی د نامسلمانو

۲۰۱٦/ جون/۲۱ میلادي

نړۍ د تهذيبونو او افکارو د ټکر له مرحلې تيريږي، په دې بهير کې يو لوی مبحث د اسلامي نظام د اعادې او د اسلامي حاکميت د هيرې شوې فريضې د راژوندي کولو دی. په ګڼو هيوادونو کې د اسلامي نظامونو د اعادې لپارې سرې او تودې مبارزې روانې دي. خو نړيوال کفار که تر خپل منځ هر څو سره غوښه او چاړه دي مګر يو حد مشترک او د اتفاق نقطه لري او هغه دا چې د اسلامي حاکميت يا سياسي اسلام په وړاندې ټول سره يو لاس او تر وروستۍ کچې په دښمنانه او بدبينانه موقف کې دي.

د اسلامي نظام په خلاف په نړيواله کچه پراخ تبليغات شوي او لا هم روان دي. کفار خو هسې د اسلام دښمنان دي حتی په مسلمانانو کې اوس دې فکر ځای نيولی چې د اسلامي نظام په ځای د غرب ليبرال نظامونه د بشر د هوساينې لپاره ګټور بولي. خو حقيقت دا دی چې په عملي ډګر کې اسلامي نظام هغه پديده ده چې د بل هر نظام په پرتله په کې د بشريت حقوق ښه ثابت او تسجيل شوي او هر حقدار ته يې خپل حق په ښه طريقه ثابت کړی دی.

## راځئ يوې بيلګې ته ځير شو.

همدا نن مې په افغانستان کې د غيرمسلمو اقليتونو لکه هندوانو او سيکانو د وضعيت په اړه يو تحقيقاتي راپور ليد. په راپور کې په تيرو څلويښتو کلونو کې د دې نامسلمانو اقليتونو په وضعيت پلټنه شوې وه او له هغوی څخه پوښتل شوي و.





له راپور څخه په څرګنده معلوميده چې دغه نامسلمان اقليتونه په تيرو څلويښتو کلونو کې د کمونيزم او دموکراسۍ په نوم نظامونو تر وروستۍ کچې ځپلي او د هيواد پريښودو ته اړ کړي، مګر هغه يوازينی نظام چې دوی ترې خوشاله وو او د دوی حقوق يې محفوظ ساتلي وو د طالبانو اسلامي امارت و چې نه خو په کې د غيرمسلمو اقليتونو ځمکې، مالونه او ملکيتونه غصب شوي او نه هم ورباندې چا د لاس پورته کولو جرأت کړی و.

په افغانستان کې د هندوانو او سيکانو د ټولنې د معلوماتو له مخې د ثور له انقلاب وړاندې په دې هيواد کې ۲۲۰ زره تنه هندو او سيک ذميان اوسيدل. خو د کمونيستي واکمنۍ په اوږدو او کورنيو جګړو په پړاو کې زيات شمير له هيواد څخه تيښتې ته اړ شول او يوازې ۱۵ زره هندوان او سيکان په افغانستان کې پاته شول.

کله چې اسلامي امارت د قدرت واګې په لاس کې اخيستې نو په افغانستان کې ۱۵ زره هندو او سيک اقليتونو اوسيدل چې د طالبانو دواکمنۍ تر پايه دا شمير کم نه شو بلکې پيوسته د زياتېدو په حال کې و، ځکه د دې اقليتونو سر او مال خوندي وو او کوم ظالمانه چلند ورسره نه کيده. خو د حامدکرزي په مشرۍ د دموکراتيک نظام له راتلو سره يو ځل بيا د دې نامسلمانو اقليتونو په مالونو او ملکيتونو باندې چور ګډ شو. له همدې امله د حامدکرزي د واکمنۍ په دوره کې ۱۳ زره هندوان او سيکان له هيواده په تيښته اړ شول او يوازې دوه زره پاته شول.

هندوان او سيکان وايي چې د اشرف غني په دوره کې هم د حکومتي زورورو لخوا د دوی په جايدادونو چور ګډ دی له همدې امله په يوشمير ولاياتو کې د دوی ټول ملکيتونه غصب شوي او دوی د هيواد پريښودو ته اړ شوي. په دې ډول همدا اوس په افغانستان کې يوازې ۱۳۵۰ تنه له هندو او سيک اقليت سره تړلي کسان

شتون لري او هغوی هم چې حتی د مړو هدیرې او د عبادت ځایونه یې غصب شوي له هیواده په تیښته دي.

هندوان او سیکان وايي چې د دوی سر او مال یوازې د طالبانو اسلامي نظام خوندي کړی و، په حکومتي ادارو کې ورسره تبعیضي۔ چلند نه کیده بلکې کوم حقوق چې مسلمان افغان ته ورکول کیدل دوی هم ترې په مساوي توګه برخمن و.

خو له اسلامي امارت پرته په نورو نظامونو کې د دوی مال ته هر څوک د تیارې مړی په نظر ګوري. په حکومت کې ورسره تبعیضي چلند کیږي او هیڅوک یې غږ نه اوري.

له دې جریان څخه په واضحه معلومیږي چې اسلامي نظام حتی د نامسلمانو لپاره هم د خیر او سوکالۍ ضامن دی د مسلمانو لپاره خو په هر لحاظ د عزتمند او ارام ژوندانه نعمت له ځانه سره لري.





## دریم فصل ـــ د امت مسائل

- ❖ لومړی نړیوال جنګ او په اسلامي نړۍ یې اغیزې
- ❖ آخر دوی ته کوم ډول اسلام د منلو دی؟؟؟
- ❖ دبرما غمیزه او زموږ بوداخېل
- ❖ د اتاتورک په ترکیه کې د اردوغان حیثیت
- ❖ پردي پوځونه
- ❖ امت هماغه امت دی
- ❖ بیت المقدس د تاریخ په لوړو او ژورو کې
- ❖ دکتور عمر او ملا عمر، د ثبات او وفا غبرګ سمبولونه

# لومړی نړیوال جنګ او په اسلامي نړۍ یې اغیزې

۲۱/ اگست/۲۰۱۴

سل کاله پخوا د ۱۹۱۴ م کال د جولای میاشت وه چې د اروپا په زړه کې د یوې جګړې اور ولګید. دا جګړه چې په پیل کې د دوو هیوادونو اتریش او صربستان ترمنځ وه، وروسته یې ټولې اروپا او حتی د نړۍ ټولو براعظمونو ته سرایت وکړ. جګړې د ۱۹۱۸ م کال تر نومبر میاشتې پورې څه باندې څلور کاله دوام وکړ، خو په دې موده کې یې نړۍ او بشریت ته داسې زیانونه واړول چې تردې پخوا کومې جګړې نه و اړولي. همدا لامل و چې د اروپایانو دا جنګ لومړی نړیوال جنګ وبلل شو.

## د لومړي نړیوال جنګ عوامل

د شلمې پیړۍ په پیل کې که د اروپا وضعیت مطالعه کوو، نو پنځه مطرح قوتونه مو مخې ته راځي چې دغه مهال یې ترمنځ د ځواک سیالي روانه وه، انګلستان، فرانسه، المان، د روسیې تزاري امپراطوري او د اتریش – هنګري امپراطوري چې په دې لیکنه کې ترې یوازې په اتریش سره تعبیر کوو.

دې زبرځواکونو په پرلپسې توګه تر خپل منځ رقابت ته ادامه ورکوله، دا مهال چې په اروپا کې نشنلیزم اوج ته رسیدلی و، هر هیواد غوښتل چې ځان پر نورو د برلاسۍ ستیج ته پورته کړي. دوی ټولو په آسیا، افریقا، امریکا او سمندرونو کې مستعمرات هم لرل چې ډېر ځله یې د جنجال باعث د یو بل په مستعمراتو کې





لاسوهنه وه، په دې سربیره د خامو موادو د منابعو په سر شخړې او په سرحدي سیمو کې ارضي جنجالونه هم اوج ته رسیدلي وو.

دې پنځو قوتونو یو د بل په وړاندې پټ ایتلافونه هم لرل او ځینې ښکاره سیالۍ او جنجالونه یې هم ترمنځ موجود و. د بیلګې په توګه د روسیې او اتریش ترمنځ له ډېره وخته د بالکان په سیمه کې سیالي روانه وه، فرانسې او المان چې د نولسمې پیړۍ په اتیایمو کلونو کې سخت جنګونه سره کړي وو اوس یې هم په ځینو سیمو لانجې ترمنځ پاته وې. المان او انګلستان بیا په اقتصادي او صنعتي ډګر کې، دغه راز په سمندرونو د سلطې په برخه کې په پراخه سیالي بوخت وو. فرانسې او روسیې بیا ترخپل منځ یو پټ تړون درلود چې په سختو حالاتو کې به یو د بل مرسته کوي. المان له اتریش سره د ګډ نژاد له امله تودې اړیکې او یارانه درلود. د دوی په ګاونډ کې دغه مهال بل مطرح ځواک د ترکیې عثماني امپراطوري وه، عثماني ترکانو له المان سره تودې اړیکي درلودې چې تر واک لاندې سیمي یې د الماني مصنوعاتو لپاره د مناسب بازار حیثیت درلود. عثماني ترکانو له المان پرته له نورو اروپایانو سره ښې اړیکي نه درلودې، ځکه روسانو ترې په قفقاز کې سیمې نیولي وې، انګلیسانو ترې مصر، دفارس خلیج او سره سمندرګي د غاړو ځیني سیمې قبضه کړې وې، فرانسې ترې المغرب او الجزائر نیولي و او ایټالیا ترې لیبیا او تونس قبضه کړي وو.

په همدې وضعیت کې چې د اروپا دغه د ځواک په نشه مست هیوادونه یوله بله په ویره کې وو او هر یوه بل ته د شک په سترګه کتل، د یوې خطرناکې جګړې لپاره وضعیت په پوره توګه اماده و چې یوازې یې یوې بهانې ته اړتیا درلوده.

همدا بهانه د ۱۹۱۴ م کال د جون په ۲۸ مه موجوده شوه. د اتریش امپراطورۍ له روس پلوه صربستان سره سخته دښمني درلوده، په همدې ورځ د

اتریش د امپراطورۍ ولیعهد آرشیدوک فردیناند د یوصرب اتریشي- لخوا ووژل شو، اتریش دا قتل د صربستان کار وباله او صربستان ته یې اخطار ورکړ چې که د دې قتل د تحقیق لپاره اتریشي- پلاوي ته د تحقیق اجازه ورنکړي نو برید به وربااندې وکړي. صربستان د اتریش نور شرطونه ومنل مګر د اتریشي- پلاوي لخوا په صربستان کې د پلټنو شرط یې رد کړ، په همدې کې د المان مشر اتریش ته ډاډ ورکړ چې که په صربستان حمله وکړي، المان به یې په ټول قوت ترشا ودریږي، همدا لامل و چې اتریش صربستان ته، چې روسیه یې په کلکه ترشا ولاړه وه، د جنګ اعلان وکړ.

## جنګ پراخیږي

د ۱۹۱۴م کال د جولای په ۲۸ مه اتریش صربستان ته د جنګ اعلان وکړ، څرنګه چې صربستان د روسیې متحد و او په یوازې ځان یې د اتریش برید نه شوای دفع کولای، روسیې د اتریش په مقابل کې د جنګیدو لپاره خپل ځواکونه اماده کړل او د فرانسې لخوا په ورکړل شوي ډاډ یې له صربستان څخه د دفاع ټېر وواهه. په قضیه کې د روسیې مداخلې د اتریش متحد المان ته ټکان ورکړ. دوه ورځې وروسته د اګست په لومړۍ نېټه دالمان د قیصر لخوا تزاري روسیې ته د جنګ اعلان وشو. المان د اګست په دریمه په فرانسه هم حمله وکړه او د فرانسې په خوا یې خپل ستر عملیات چې له وړاندې یې ورته طرح جوړه وه پیل کړل.

المان چې دا مهال یو کمساری نړیوال ځواک بلل کیده، له پخوا یې هڅه کوله چې خپل اروپایي سیالان په تیره فرانسه او روسیه وټکوي. د همدې لپاره دوی له وړاندې طرح داسې جوړه کړې وه چې لومړی به د غرب پر خوا پراخ عملیات پیلوي ترڅو فرانسه تس نس کړي، د فرانسې له نیولو وروسته به په شرق کې په روسیه ګوزار کیږي. المان په یو پراخ برید کې د فرانسې په خوا پرمختګ ته ادامه





ورکړه، په دې لړ کې المان اړ و چې بلژیک هیواد چې د فرانسې په لاره پروت هم تر پوځي ګامونو لاندې کړي. څرنګه چې بلژیک هیواد په دې جګړه کې بې طرفه و د المان لخوا په بلژیک برید بریتانیا وپاروله، نو ځکه د اګست په څلورمه بریتانیا هم المان ته د جنګ اعلان وکړ، په ورپسې څو ورځو کې مونټه نیګرو او جاپان هم د المان په وړاندې په جګړه کې ور ګډ شول. جګړه چې ټوله اروپایي نیولې وه، نورو وچو ته هم وغځیده. په لرې ختیځ، بحرالکاهل او افریقا کې یو د بل په مستعمراتو بریدونو پیل شول، د نړۍ نور هیوادونه هم په جګړه کې ورګډ شول تردې چې د جګړې ترپایه له دواړو خواوو د جنګیدونکو هیوادونو شمیر ۲۸ ته ورسید. له دې جملې المان، اتریش، عثماني امپراطوري او بلغاریه په یوه صف کې وو چې محور قواوې ورته ویل کیدې او په مقابل کې یې ۲۴ اروپایي، امریکایي او اسیایي هیوادونه وو چې متحدین یې بلل.

د جنګ په پیل کې چې المان د فرانسې په خوا کوم عملیات پیل کړل، بلژیک او د فرانسې د خاورې ځینې برخې یې لاندې کړې، خو د فرانسوي، انګلیسي- او بلژیکي ځواکونو د سرسخت مقاومت له امله یې پرمختګ په ټپه ودرید، تردې چې دواړه خواوې دسنګرونو په کیندلو او ثابت جنګ په دوام مجبور شول. په دې جبهه کې یوه ستره پېښه د بلژیک حدودو کې رامنځته شوه، د متحدینو قواوو د الماني ځواکونو د لومړي خط تر پښو لاندې ځمکې ته تونلونه ورتیر کړل، دوی د الماني ځواکونو تر پښو لاندې په ۱۹ تونلونو کې ۴۱۰ ټنه منفجره مواد ځای په ځای کړل او بیا یې په یو ځل انفجار ورکړ. دا انفجار چې غږ یې ۲۲۵ کیلومتره لرې په لندن کې واوریدل شو، د شاوخوا لس زره الماني ځواکونو په وژلو یې د دې هیواد لومړۍ کرښې ته درونند زیان واړاوه.

المان که په لویدیځ کې له بن بست سره مخامخ و په ختیځ کې یې برلاسی دریځ درلود. په ختیځ کې الماني ځواکونو د تزاري روسیې لښکرو ته پرلپسې ماتې

ورکړې، ۱۲۵ زره روسي عسکر يي ژوندي ونيول او پراخې سيمې يې ترې لاندې کړې. په همدې مهال د اتريش او صربستان په جبهو کې هم جګړو زور نيولی و، ايټاليا د جګړې په پيل کې د المان او اتريش متحده وه خو د ۱۹۱۵ په مې مياشت کې يي لوری بدل کړ او د متحدينو په صف کې ودرېده، په مستعمراتو کې هم مهال جګړې زور واخيست، د افريقا په کاميرون، توګو او ګنو نورو ساحلي سيمو کې متحدينو په الماني مستعمراتو او پوځي اډو بريدونه پيل کړل. له بلې خوا ۶۰ زره جاپاني ځواکونو د چين په ساحل د المان په ستره اډه چينګ تايوي باندې پراخ بريد وکړ، دغه راز د فالکلند او لري ختيځ په حوزو کې هم انګليسي- اوالماني ځواکونو سره ونښتل. د مستعمراتو په جګړو کې المانيان يوازې د افريقا د ختيځ تانګا بندر په جګړه کې بريالي شول او په نورو جګړو کې يي له اروپا بهر تقريبا ټول مستعمرات له لاسه ورکړل او ځواکونه يي له مقاومت وروسته متحدينو ته تسليم شول.

## عثماني خلافت په جنګ ورګډېږي

د شلمې پيړۍ په پيل کې که د اسلامي نړۍ وضعيت تحليلوو نو په لنډو يې انځور داسې وړاندې کولای شو: په افريقايي لويه وچه کې ټول اسلامي هيوادونه د فرانسې، ايټاليا اوانګلستان لخوا اشغال شوي و، هند او اوسنی پاکستان هم د انګلستان مستعمره و، ايران د روسيې او انګلستان ترمنځ په منځ نيم شوی او د نفوذ په سيمو ويشل شوی و، د بالکان ټاپووزمه او قفقاز په سيمو کې اسلامي خاورې روسيې له عثماني ترکانو لاندې کړې وې، د منځنۍ اسيا اسلامي هيوادونه هم د روسانو تر تسلط لاندې و، په درسته نړۍ کې يوازې افغانستان، د عثماني امپراطورۍ ملحقات او د جزيرة العرب ځيني صحرايي سيمې وې چې مسلمانانو پرې په خپله تسلط درلود. په اسلامي نړۍ کې يوازې عثماني خلافت ځواکمن





هيواد و چې په ترکيه، د بالکان په ځينو سيمو او د منځني ختيځ په عربي هيوادونو يي سلطه درلوده.

عثماني امپراطوري دا مهال د خپل تاريخ په تر ټولو بدحالت کې وه چې اروپايي سيالانو يي پرې د (مريض شخص) نوم ايښی و. ترکان چې څو پيړۍ يي په اروپا سيوری پروت و، په وروستيو کې د نويو علومو او تخنيک په چاره کې له اروپايي سيالانو وروسته پاتې وو او همدې چارې پرې پخواني رقيبان زړور کړي وو.

کله چې د عثماني خلافت سيالان روسيه، فرانسه او انګلستان له پياوړي المان سره په جګړه بوخت او سخت وځپل شول، عثماني ترکانو وليدل چې المان په جګړه کې برلاسی دی، عثماني ترکانو له المان سره د تودو اړيکو درلودلو له امله او په دې هيله چې له ځپل شويو متحدينو به انتقام واخلي او پخوانۍ نيول شوی سيمې به بيرته ترې ولجه کړي، د ۱۹۱۴ م کال د اکتوبر په ۲۹ مه په جګړه ورګډ او د المان په پلوۍ يي د متحدينو په خلاف د جګړې اعلان وکړ.

عثماني ترکانو داهيله هم درلوده، چې د اروپايي استعمارګرو سره په جګړه کې له ښکيلتيا وروسته به په ټوله اسلامي نړۍ کې داستعمارګرو په خلاف د جهاد په فتوی سره مسلمانان راپورته او اروپايان به له اسلامي سيمو وشړي.

خو دا چې د عثماني ترکانو اصلي هدف د بايللو سيمو بيرته ترلاسه کول و، د همدې لپاره دوی لومړی قفقاز ته د جنرال انور پاشا په مشرۍ سلګونه زره پوځيان وليږل، ترڅو روسان چې په ختيځه اروپا کې له المان سره په جګړه بوخت و، په دام کې ښکيل کړي. خودې لښکر د قفقاز په لوړو کې له درنو جګړو وروسته سخت شکست وخوړ، ويل کيږي د قفقاز په جګړه کې تر ۹۰ زره ډېر ترکي پوځيان ووژل شول چې ډېری يي د سړې هوا او يخ وهلو له امله مړه شول، ترکانو بل لښکر د

سوريې د حاکم جمال پاشا په مشرۍ د سينا دښتې له لارې د مصر په خوا سوق کړ، دې لښکر د المانيانو په ملاتړ کوښښ کاوه چې د سويز کانال په نيولو سره له ختيځو مستعمرو سره د انګليسانو رابطه قطعه کړي. ځکه انګليسانو په پرلپسې توګه له خپلو مستعمراتو څخه په جګړو کې د انساني او مالي منابعو په حيث استفاده کوله، داسې ويل کيږي چې حتی په لويديځه اروپا کې د بريتانيا د پوځ يوپه دريمه برخه هندي مرتزقه وسلوال و چې د المان په ضد جنګيدل، په لومړۍ نړيوال جنګ کې د ټولو جنګيدليو هنديانو شمير تر يومليون زيات بلل شوی دی چې د انګليس په ملاتړ جنګيدل.

د سويز کانال په جګړه کې هم ترکي لښکرو شکست وخوړ او تر غزې پورې يې شاتګ وکړ، ترکانو د قفقاز د جبهې غونډې په جزيرة العرب کې پرلپسې بدې ماتې وخوړې. بغداد، کويټ او بيت المقدس د انګليسي لښکرو لخوا ونيول شول، انګليسي لښکرو حتی د سوريې تر حلب پورې پرمختګ وکړ. د انګليسانو په پرمختګ کې ستر کردار د ترکانو په خلاف د عربو د پاڅون و، چې د لويديځوالو په تاريخ کې د انګليسي جاسوس ايډورډ لارنس کارنامه بلل کيږي. دغه انګليسي- جاسوس چې څو لسيزې يې په عربو کې کار کړی و او عرب يې د ترکانو په خلاف لمسولي و په پای کې بريالی شو چې د مکې مکرمې والي حسين بن علي چې په شريف حسين مشهور و، د لومړۍ نړيوالې جګړې په سختو شرايطو کې د عثماني خلافت په خلاف پاڅون ته تشويق کړي. شريف حسين چې د ترکانو لخوا د مکې مکرمې والي ټاکل شوی و اړخ يې بدل کړ او د انګليسانوپه اشاره يې له ترکانو د استقلال پاڅون پيل کړ. نوموړي چې په قاهره کې د مصر- او عربي نړۍ لپاره دځانګړي انګليسی دفتر لخوا لوبيده، عرب قبايل يې د ترکانو په خلاف جنګ ته وهڅول، انګليسانو له دوی سره د منفجره موادو مرسته کوله ترڅو د جزيرة العرب په لراوبر کې دترکانو لخوا د ريل ګاډي غځول شوي کرښې والوځوي او د ترکي پوځ





د اکمالاتو مخه ونيسي، د عربو پاڅون په جزيرة العرب کې ترکي پوځونه له ډېرو ستونزو سره مخامخ کړل او د انګليسانو بريا ته يې لاره هواره کړه.

## د ګاليپولي جګړه

د لومړي نړيوال جنګ په ترڅ کې د ګاليپولي په ټاپوزمه کې پېښه شوې جګړه يوازينۍ جګړه وه چې عثماني ترکانو په کې خپل جګړه ييز هنر ننداري ته وړاندې کړ او اروپايي متحدينو ته يې سخت شکست ورکړ. عثماني ترکانو د جګړې له پيله د تورې بحيرې او مديترانې بحيرې ترمنځ د باسفور او دردنيل په تنګيو کنترول درلود، دې چارې د انګليس او فرانسې ستر متحد روسيه له دې منعه کړې وه چې خپل سمندري ځواکونه د جګړې جنوبي او لويديځو جبهاتو په خوا سوق کړي، د همدې خنډ د لرې کولو لپاره متحدينوفيصله وکړه چې په هر قيمت وي بايد ياد تنګي په تصرف کې راوستل شي.

ونستن چرچيل چې وروسته د بريتانيا نخبه سياستوال شو، دغه مهال د بريتانيا د سمندري قواو مشر و. نوموړي د دردنيل تنګي او ورپسې د استانبول د نيولو لپاره د دې جګړې نقشه جوړه کړه او په لکونو ځواکونه يې دې سيمې ته سوق کړل. جګړه د ۱۹۱۵ کال په فبرورۍ کې لومړی په سمندري کښتيو او سمندر غاړو کې پيل شوه او وروسته د ګاليپولي په ټاپوزمه کې راټوله شوه، په دې جګړه کې ۴۹۰ زره برتانوي او ۷۹ زره فرانسوي ځواکونه ښکيل و چې مشري يې د چرچيل په غاړه وه. د عثماني ترکانو لخوا د مصطفی کمال /اتاترک په مشرۍ ۳۱۵ زره پوځيان جنګيدل. جګړې په مياشتو مياشتو دوام وکړ او دواړو خواوو ته سخت تلفات ورسيدل، اروپايانو ټول وس وکړ چې په درد نيل تنګي سلطه راولي خو ترکانو سخت مقاومت وکړ. تاريخ ليکي: په دې جګړه کې د ترکي لښکر د مشر- شعار دا

و: زه تاسو ته دا نه وايم چې ګاليپولي ته لاړ شئ او وجنګيږئ بلکې درته وايم هلته لاړ شئ او مړه شئ.

په دې جګړه کې چې د۱۹۱۵م کال په دسمبر کې د اروپايانو په شکست پای ته ورسيده څه کم دوه نيم لکه د متحدينو ځواکونه او تر يو نيم لک زيات د عثماني امپراتورۍ ځواکونه ووژل شول. د همدې جګړې بريا ترکي سرلښکر مصطفی کمال ته غيرمعمولي شهرت ورکړ او نوموړی د عثماني خلافت په وسلوالو ځواکونو کې د يو محبوب مشر په حيث مطرح شو. مصطفی کمال وروسته له همدې اعتبار او شهرت څخه په استفاده ترکي پوځيان د خلافت په خلاف بغاوت ته وهڅول، عثماني خلافت ته يې دپای ټکی کيښود او نوې په سيکولر نظام ولاړه ترکيه يې رامنځته کړه.

## د جګړې وروستۍ صحنې

په ۱۹۱۷ م کال کې سره له دې چې د جګړې درې کاله تير شوي و او له دواړو خواوو په ميليونو کسان وژل شوي و، جګړه کاملا د بن بست له حالت سره مخامخ وه. د جګړې په اصلي ډګر/ لويديځه جبهه کې د المان او متحدينو ترمنځ ثابته لومړۍ کرښه پرته وه او په يوبل يې ډزو او بمبارونو ته ادامه ورکوله. د جګړې دا کرښه چې له ژورو خندقونو جوړه وه، د مانش له درياب څخه بيا تر سويس پورې غځېدلې وه چې ۶۵۰ کيلومتره اوږدوالی يې درلود.

المانيان چې په ځمکنۍ جګړه کې له بن بست سره مخامخ وو هڅه يې وکړه چې هوايي او سمندري جګړه پيل کړي، دوی د مخالف اړخ په ښارونو او جنګي کرښو بمبارونو ته زور ورکړ، له بلې خوا يې د اوبتلونو په توسط د مخالفينو په کښتيو بريدونه پيل کړل. د سمندري جګړې په ترڅ کې المان په پرلپسې توګه څو انګليسي بيړۍ غرقې کړې، دغه مهال چې د امريکا متحده ايالاتو د يو غير اروپايي





زبرځواک په حيث بې طرفه دريځ درلود، د جګړې له دواړو خواوو سره يې د قرضونو د ورکړې او وسلو پلورلو معاملې درلودې. خو څرنګه چې امريکايان متحدينو ته ډېر ورنږدې و، المان نه خوښول چې امريکايي بيړۍ دې متحدينو ته مرستې ورسوي. الماني اوبتلونو د ۱۹۱۷ م کال په اپريل کې په اطلس بحر کې په امريکايي بيړيو بريد وکړ او له سپرو امريکايانو سره يې ډوبې کړې، د دې پيښې په تعقيب د امريکا ولسمشر ويلسن د المان په خلاف د جګړې اعلان وکړ او خپل تازه دمه ځواکونه يې د جګړې جبهاتو ته وليږل.

که په جګړه کې دتازه دمه امريکايانو شامليدل د متحدينو لپاره ښه زيری و، خو بله غاړه د همدې کال په اکتوبر کې په روسيه کې د ولاديمير لنين او تروتسکي په مشرۍ بلشويکانو انقلاب وکړ، تزاري سلطنت يې چپه کړ او له کاميابۍ سمدستي وروسته يې په نړيواله جګړه کې خپله بې طرفي اعلان کړه، د جګړې له صف څخه د روسانو وتل متحدينو ته بد خبر و.

د ۱۹۱۸م کال په مارچ کې المانيانو په لويديځه جبهه کې يو ځل بيا زورآزمايل پيل کړل، دوی د متحدينو په کرښه پراخ عمليات پيل کړل، د متحدينو ځواکونه يې پرشا کړل خو المانيان د پاريس په نيولو ونه توانيدل.

د همدې کال په جولای کې متحدينو د فرانسوي جنرال فردينانډ فوش تر مشرۍ لاندې په الماني کرښه ځوابي بريد پيل کړ او المانيان يې له ماتيدونکي حالت سره مخامخ کړل. دغه مهال چې د جګړې ټولې خواوې سختې ځپل شوي وې، په ميليونونو عسکر يې له لاسه ورکړي و او اقتصادي بنسټونه يې له پښو لويدلي وو، المانيان په دې پوه شول چې نور جګړې ته دوام نه شي ورکولای، دوی لومړی د همدې کال د نومبر په ۱۱ نيټه په لويديځه جبهه کې له متحدينو سره د موقت اوربند قرارداد لاسليک کړ، له همدې فرصت نه په استفاده د المان قيصر-

ویلیم ۲ واک پرېښود او هالنډ ته وتښتی، په المان کې نوي انتقالي حکومت واک په لاس کې واخیست او همدا تغیر د المان د شکست منلو په معنی و.

له شکست منلو وروسته جنګ عملا پای ته ورسید او د متحدینو لخوا له المان، ترکیې او اتریش څخه د تاوان اخیستلو بهیر پیل شو، د وارسا موافقت نامه چې د ۱۹۱۹م کال په جون میاشت کې په المان باندې تحمیل شو، دا هیواد یې تر سختو محدودیتونو او غرامتونو لاندې ونیو. دبیلګې په توګه متحدینو په المان ومنله چې:

دالمان ټولې جنګي او تجاري بیړۍ به انګلیستان او فرانسې ته ورکول کیږي، المان به همدې هیوادونو ته څو کاله کښتۍ جوړوي، المان به په ټولو هیوادونو او مستعمراتو کې په خپلو شتمنیو سترګې پټوي او متحدینوته به یې بښي، المان به پنځه زره ارابې اورګاډي او یونیم لک موټر د متحدینو لپاره تولیدوي، المان به لس کاله زیات مقدار زغال سنګ فرانسې، بلژیک او ایټالیا ته صادروي، المان به ٦ ملیارده او ٦٠٠ ملیونه سټرلینګ لیره په نقدي توګه متحدینو ته ورکوي، المان به د سار د ډبرو سکرو کان ۱۵ کاله فرانسې ته پرېږدي ترڅو هغوی چې څومره یې خوښه وي زغال ترې وچلوي، المان به د سمندري او هوایي ځواکونو د درلودلو حق نه لري، اضافه عسکر به نه جلبوي، خپل پوځي ځواک به یوازې سل زره عسکرو ته راټیټوي چې ټانګونه او درنې وسلې به نه لري.

په لوړو قیودو سربیره دغه پریکړه لیک نور هم ګڼ هیښوونکي مواد درلودل چې له امله یې المان پراخې ځمکې له لاسه ورکړې، دغه راز یې د خپلو ملي شتمنیو له جملې ۵۵ فیصده د اوسپنې، ۴۵ فیصده د زغال سنګ، ۷۵ فیصده د جستو او ۵۷ فیصده د سرپو کانونه له لاسه ورکړل. د همدې پریکړه لیک سخت شرایط باعث شول چې په المان کې ملتپالنه او د نورو اروپایانو په نسبت دکرکې احساس





وده وکړي او په حقیقت کې همدا پریکړه لیک د دوهم نړیوال جنګ باعث شو، هغه جنګ چې له نړیوالو یې لومړنی نړیوال جنګ هیر کړ.

هغه ارقام چې په وروستیو کې په ډاګه شوي وایي چې په لومړي نړیوال جنګ کې د فرانسې څلورمیلیونه او سل زره کسان ووژل شول چې د دې هیواد د ټول نفوس یو په لسمه برخه تشکیلوي، دغه راز د المان ۳ میلیونه، د بریتانیا اوه نیم لکه، د امریکا یولک او پنځلس زره او د روسیې ۷ میلیونه او سل زره کسان ووژل شول، په جګړه کې په ملیونونو کسان معیوب او زخمیان هم شول او نږدې پنځه ملیونه انسانان په کې نادرکه شول.

## په اسلامي نړۍ د لومړۍ نړیوالې جګړې اغیزې

لومړۍ نړیوالې جګړې ټولې خواوې زیانمنې کړې چې په دې لړ کې یې اسلامي امت ته هم پراخ زیانونه واړول او ډېر تغیرات یې راوستل. د محور قواوو له شکست سره عثماني امپراطوري هم متحدینو ته تسلیم شوه، د عثماني ترکانو همدا شکست په حقیقت کې د دوی د ۸۰۰ کلنې امپراطورۍ د سقوط او پای په معنی و. د ۱۹۲۰ م کال په اګست کې متحدینو په عثماني ترکانو باندې هم یو داسې شرموونکي معاهده لاسلیک کړه لکه په المان یې چې تحمیل کړې وه. دغه معاهده چې د سور په ښارګوټي کې د متحدینو او عثماني ترکانو ترمنځ لاسلیک شوه، عثماني خلافت په کې عملا له منځه لاړ، په معاهده کې عثماني ترکانو ومنله چې په اسیا، اروپا او افریقا کې به ټولې ځمکې او د ترکیې د اصلي خاورې ګڼې ساحلي سیمې له لاسه ورکوي او متحدینو ته به یې پرېږدي. په دې توګه عثماني خلافت ۸۰ فیصده تر واک لاندې سیمې له لاسه ورکړې، تر جګړې پخوا د عثماني امپراطورۍ وسعت ۳ میلیونه مربع کیلومتره ته رسیده، خو د دې پیمان له مخې د عثماني امپراطورۍ د واک ساحه ٦ لکه مربع کیلومتره ته راکمه شوه. په دې

سربیره په عثماني ترکانو ومنل شوه، چې باسفور او دردنیل تنګي چې دا وخت عملا د متحدینو لخوا اشغال وو بین المللي قواوو ته به یې پرېږدي. اژه سمندرګی او په مدیترانه کې مهم ټاپوګان به ایټالیا او یونان ته ښني. په اسیایي برخه کې به د ترس او ازمیر ساحلي ښارونه یونان ته ښني، په شمال ختیځ که به د ارمنیانو دولت په رسمیت پېژني، په جزیر ة العرب کې د انګلیسانو لخوا رامنځته شوي هیوادونه به هم په رسمیت پېژني او کردانو ته به د خودمختاره حکومت جوړولو حق ورکوي.

د دې معاهدې له مخې جزیرة العرب رسما د عثماني ترکانو له لاسه ووتله چې د فرانسې او انګلستان ترمنځ د سایکس- پیکو تړون له مخې عراق، کویټ، اردن او فلسطین د انګلیسانو مستعمره شول او سوریه او لبنان د فرانسې په برخه ورسیدل. د عثماني امپراطورۍ لخوا دا معاهده چې سیاسي مشرانو لاسلیک کړې وه، د ترکي پوځیانو لپاره د منلو وړ نه وه، همدا لامل و چې پوځیانو پرلپسې مخالفت ته ادامه ورکوله، مصطفی کمال پاشا چې په نړیواله جګړه کې یې نوم ګټلی و، د خلافت د مشرتابه په خلاف د ترکي پوځ له همدې نارضایت څخه ګټه پورته کړه، ناراضه پوځیان یې بسیج کړل او د خلافت په وړاندې یې بغاوت وکړ. مصطفی کمال عثماني خلافت ړنګ کړ، د متحدینو لښکرې یې د ترکیې له اصلي سیمو وایستلې او په سیکولر نظریه ولاړه نوې ترکیه یې رامنځته کړه. د عثماني خلافت په ړنګیدو سره د مسلمانانو هغه نړیوال قوت له منځه لاړ، چې پیړۍ پیړۍ یې د اروپایي تجاوزګرو مخه ډب کړې وه، له نړیوالو زبرځواکونو سره یې د مسلمانانو په نمایندګۍ سیالي کولای شوای او یو د پاموړ نړیوال ځواک ګڼل کیده. دعثماني ترکانو له شکست وروسته مسلمانان بیا هیڅکله په نړیوالو قضایاوو کې له یوه قوي دریځ سره راپورته نه شول، بلکې د کفري زبرځواکونو د خپل منځي سیالیو ښکار ته ولوېدل.





که په اسلامي نړۍ د لومړۍ نړیوالې جګړې اغیزې په لنډو راخلاصه کوو نو داسې ویلای شو: له دې جګړې سره بیت المقدس یو ځل بیا د صلیبي انګلیسي- ځواکونو لاس ته ولوېد او هغوی ورته د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه د یهودانو راوستل پیل کړل. متحدعرب وطن د سایکس – پیکو تړون په رڼا کې په څو برخووویشل شو، د کویت، عراق، اردن، فلسطین، حجاز، لبنان او سوریې په نومونو نوي واړه حکومتونه رامنځته شول چې د فرانسې او انګلیس مستعمرات وو. په عربو کې د ملت پالنې او پان عربیزم روحیه راژوندی شوه، چې په نتیجه کې یې د ترکانو او عربو ترمنځ قومي دښمني پیل شوه. اتاترک چې عرب او اسلام یې یو شی بلل د عربو سره د رقابت له امله یې له اسلام سره هم دښمني پیل کړه، بې دینه حکومت یې رامنځته کړ په عربي رسم الخط او ګڼو اسلامي احکامو یې بندیز ولګاوو او اذان یې له عربي څخه په ترکي واړاوه.

د دې جګړې په نتیجه کې په ایران باندې د روسیې او انګلیس استعماري پنجې نورې هم مضبوطې شوې، د ققفاز او بالکان په سیمو کې د عثماني امپراطورۍ مسلمان میشتې سیمې د متحدینو لاسته ولوېدې او نوې واړه جمهورتونه په کې رامنځته شول، دې جګړې مسلمانانو ته ځاني زیان هم درلود، عثماني ترکانو چې هیله یې درلوده په دې جګړې سره به د نړۍ مستعمره مسلمانان د انګلیس په وړاندې وجنګوي بالمقابل انګلیسان او فرانسویان وتوانیدل د هند، پنجاب، او افریقایي اسلامي هیوادونو په لکونو مسلمانان د دا روپا او منځني ختیځ په جبهو کې د عثماني خلافت په ضد وجنګوي.

په اسلامي نړۍ د دې جګړې یو مثبت اغیز دا و چې په اسلامي امت کې یې د انګلیس او نورو اروپایي استعمارګرو په خلاف د کرکې روحیه زیاته کړه. په افغانستان کې د انګلیسانو په خلاف عمومي نفرت اوج ته ورسید، تردې چې په ۱۹۱۹ م کال کې انګلیس پلوی مشر- امیر حبیب الله د افغانانو لخوا ووژل شو،

افغانانو په داسې حال کې چې هیواد یې له شرق، غرب او جنوب څخه انګریزانو محاصره کړی و، بشپړه خپلواکي اعلان کړه او په دې مبارزه کې کامیاب شول.

د لومړي نړیوال جنګ له امله په لومړي ځل په هند کې دانګریزانو په خلاف په لویه کچه مخالفتونه راوپاریدل، مسلمانو مشرانو د عثماني خلافت په پلوی د جهاد فتوا ورکړه، په هند کې د خلافت پارټۍ جوړه شوه، هند دارحرب او افغانستان داراسلام اعلان شواو مسلمانانو له هند څخه ډله ایز هجرت پیل کړ، په دې لړ کې یوازې د ۱۹۲۰ م کال په اګست کې ۱۸ زره هندي مسلمانانو د افغانستان په خوا هجرت وکړ. خو په هند کې د جهاد او خپلواکۍ تحریک ځکه نیمګړی پاتې شو چې د مشر شیخ الهند مولانا محمود الحسن په شمول د سر کسان یې انګریزانو په حجاز کې ونیول او د مدیترانې بحیرې په مالټا جزیره کې یې بندیان کړل.

د دې جګړې له امله په افریقایي اسلامي هیوادونو کې هم د انګلیس، فرانسې او ایټالیا په خلاف مخالفتونو زور واخیست او اولسي- قیامونه پیل شول، چې وروسته بیا همدا قیامونه د دې هیوادونو د خپلواکۍ ګټلو مقدمات ثابت شول.

خو په ټوله کې ویلای شو چې لومړی نړیوال جنګ د مسلمانانو لپاره خورا بدې پایلې درلودې، له دې جګړې سره مسلمانان نور هم پارچه پارچه او کمزوري شول، عثماني خلافت چې ډېره موده د مسلمانانو یو نماینده زبرځواک و له منځه لاړ او بیا دا دی د سلو کلونو له تیریدو سره مسلمانان کله هم په یو قوي محور راټول نه شول.

اخځونه

ـ بیلابیلې انټرنیټي پاڼې
ـ طعم ناخوشایند استعمار – لیکوال سراج الدین ادیب
ـ تاریخ اروپا / دریم جلد / لیکوال هربرت فیشر، ژباړه وحیدمازندراني
ـ مسلم تاریخ کی نازک اور فیصله کن موړ – لیکوال محمد اجمل
ـ د افغانستان پر معاصر تاریخ یوه لنډه کتنه – محمد ابراهیم عطایي



د قلم له سنګره | د امت مسائل

# آخر دوی ته کوم ډول اسلام د منلو دی؟؟؟

۲۰/نومبر/۲۰۱٦ میلادي

څو کاله وړاندې چې د کفري دنیا ۴۸ هیوادونو د ۲۱ منطقوي ظاهرا اسلامي هیوادونو په استخباراتي مرسته او د نړۍ د پاته هیوادونو په ملاتړ او موافقه په افغانستان پوځي برید وکړ نو خپل جنګ ته یې د (القاعده) د ختمولو د عملیاتو عنوان ورکړ.

یرغلګرو کفارو او ورسره حلیفو منافقانو یې ویل چې دوی د قاعدة الجهاد په نوم د هغه جهادي تنظیم په خلاف جنګ پیل کړی چې په نیویارک او واشنګټن باندې په حملو سره یې شاوخوا دری زره امریکایان وژلي دي. خو زموږ د کلي سردار اکا ویل چې دا کافران دا القاعده القاعده ځکه په خوله کې اړوي چې کوم مسلمان یوازې کلیمه او (قاعده بغدادي) ویلي وي هم والله که یې په آرام پرېږدي. د سردار اکا مطلب دا و چې د الف، با، تا ویوونکي ټول د کفر د یرغل او دښمنۍ هدف دي. یوازې هغه څوک به له برید څخه په امن وي چې د الفبا په ځای ABCD ته تمایل لري او د غرب فکر او عقیده یې په اخلاص منلې وي.

اوس چې دې روان وضعیت ته ګورم خبره رښتیا هم په هماغه ډول روانه ده چې سردار اکا یې پیش ګویي کړې وه. د نړیوال کفر او محلي طاغوتیانو جنګ یوازې د القاعدې او طالب په ضد نه دی بلکې هر د کلمة التوحید ویونکی او د اسلام داعي د دوی د دښمنۍ د غشو هدف دی.

تبليغيان ياد دعوت او تبليغ د خوځښت لارويان هغه خلک دي چې په نړيواله کچه د عدم تشدد مثالونه بلل کيږي. د دوی په اړه مشهوره ده چې که څوک يې په ډبرو هم وولي دوی ورته جزاک الله او ماشاءالله وايي. دوی په دې سربيره چې هيڅ پوځي فعاليت ياد جنګ اراده نه لري کړنلاره يې د سياسي مبارزې او تمايلاتو له فکره په بشپړ ډول خالي ده. د دوی يوازينی کار فقط د الله تعالی بندګي او خلک په نرمه لهجه د الله تعالی دين ته رابلل دي.

خو څه موده وړاندې مې يو راپور ولوست چې حتی د ځينو اسلامي هيوادونو په پوهنتونونو او تعليمي ادارو کې د جماعت تبليغ په فعاليت بنديز لګول شوی دی او هغوی د ځوانانو د افکارو په تحريفولو ګرم پيژندل شوي دي.

اخوان المسلمين يو نړيوال اسلامي خوځښت بلل کيږي. په تيره پيړۍ کې په اسلامي نړۍ او خصوصا عربي هيوادونو کې د کمونيستي فکر د مخنيوي په لاره کې د دې خوځښت کارنامه د يادولو وړ ده. اخوانيانو له رسمي دريځه په اسلامي هيوادونو کې مسلحانه مبارزه مصلحت نه باله اما سوله ييزه سياسي مبارزه يې خپل حق باله. د مصر اخوانيانو تر وروستۍ کچې تنزلات وکړل تر څو که د سيکولر نړيوالو او هيوادنيو مخالفينو په وړاندې د منلو وړ وګرځي. خو کله چې يې په پوره سوله ايزه توګه او د غربي دموکراسۍ په ترازو برابر انتخابات وګټل، بيا هم د کفارو او د هغوی د اجيرانو لخوا ونه زغمل شول او په ډېر ظلم يې له واکه راوغورځول.

اخوانيانو په نړيواله کچه د سياسي هڅو له ناکامۍ وروسته په خپله برنامه له سره کتنه وکړه، دوی له بره ښکته خوا ته د اصلاح په ځای له ښکته پورته خواته د اصلاح فارموله مطرح کړه او په دې ډول يې په نړيواله کچه خپل سياسي تحريکونه





په غيرسياسي اصلاحي تحريکونو بدل کړل تر څو په اجتماع کې کار وکړي او نسلونه وروزي.

د ګڼو نورو هيوادونو په شان په افغانستان کې د اخوانيانو دغه نسخه دجمعيت اصلاح په شکل کې راميدان ته شوه. جمعيت اصلاح له سياسته ځان لرې ونيو او ټولنيزې اصلاح ته يې کار وواېه. تربيوي پروګرامونه، ټولنيز خدمات او د دين تبليغ يې ټولنې ته وړاندې کړ.

مګر همدغه جمعيت اصلاح چې تراوسه يې د سياست کومه خبره په خوله نه ده راوړې له ټولې نرمۍ او تنزلاتو سره سره بيا هم د افغاني سيکولرانو لپاره د زغم وړ نه دي. د هشت صبح غوندې غرب پروره ورځپاڼې څو ځله په دې ډله تر ټولو زهرجن ګوزارونه کړي او د ودان افغانستان د سيکولر ګوند مشر- محمديار خو جمعيت الاصلاح ته داسې له قهره ډک دی چې د دې اسلامي ډلې د له منځه وړلو لپاره يې سم ميډيايي کمپاين په لاره اچولی او بيا بيا يې په دې اړه ليکنې کړي دي.

همدا نن مې خبر تر سترګو شو چې د هند او بنګله ديش حکومتونو د مشهور مسلمان داعي ډاکټر ذاکرنائيک په تحقيقاتي مرکز بنديز لګولی او د نوموړي په اړه يې د سختو اقداماتو ګواښ کړی.

دلته د ښاغلي ذاکر نائيک په افکارو او نظرياتو خبره نه کوو دا چې د هغه ځيني نظريات د نقد وړ دي دا بيله موضوع ده خو دومره وايو چې نوموړی يو مشهور مسلمان دعوتګر دی، ډېر خلک يې اسلام ته رابللي او په هند کې د اسلامي دعوت سمبول بلل کيږي. ذاکر نائيک خپل دعوتي پروګرام د مجبوريت له مخې د معاصر نړيوال وضعيت له غوښتنو سره سم عيار کړی. هغه د اسلامي لباس په ځای ډېر ځله غربي لباس نيکتايي او پتلون اغوندي. له دې امله چې د تروريزم تور

وربانديې ونه لګيږي خپل تيلويزوني چينل ته يې د (سولې) نوم ورکړی دی. هغه غير مسلمانانو سره هم خورا له نرمۍ ډک چلند کوي او حتی په لويو غونډو او مناظرو کې هندو او بودايي ته ورور وايي.

خو له دې ټول نرم چلند سره سره ذاکر نائیک بیا هم نړیوال کفر ته د زغملو وړ نه دی او هڅه کوي دوسیې ورته جوړې کړي، د فعالیتونو مخې ته یې خنډ واچوي او په پای کې دغه د اسلام سوله ایز غږ هم خاموش کړي.

سړی چې دا وضعیت ته ګوري نو پوښتنه ورپیدا کیږي چې بالاخره معاصرو طاغوتیانو او محلي اجیرانو ته یې کوم ډول اسلام د منلو وړ دی؟؟؟

هغوی چې غیر مسلح او تسبیح په لاس تبلیغیان نه شي زغملی، هغوی چې د (سلمیه سلمیه) شعار په خوله دموکرات اخوانیان تر ټانګونو لاندې کوي. هغوی چې د ذاکر نائیک د سولې او بردبارۍ پیغام په ستوني کې ورخپه کوي او نه یې شي زغملی، نو تردې زیات تنزل او نرمي خو نور نو په اسلام کې نه ځاییږي. آخر دغه د اسلام دښمنۍ له احساسه ډک نړیوال له مسلمانانو څه غواړي!!؟؟

د کفارو دغه سخت دریځي او نه تحمل ثابتوي چې د دوی په وړاندې ټول جهادي او مسلح خوځښتونه برحق اوټوپک د دوی د دښمنۍ یوازینۍ علاج او مناسب ځواب دی.

که کفار او منافق ملګري يې په دې باور وي چې دوی به په مسلمانانو داسې اسلام ومني چې هغه د کفر او اسلام امتزاج وي، نودا هیڅ امکان نه لري. کفر او اسلام د اور او اوبو په شان د یوه بل سره په تضاد کې واقع دي چې هیڅکله یې امتزاج او په یوه قالب کې ځای کیدل امکان نه لري. د انسان عقیده او عمل به یا اسلامي وي او یا کفري. دریم احتمال په کې نه ځاییږي.





## د حل وروستۍ لاره

روان حالت ته په پام سره باید مسلمانان په دې پوه شي چې کفار یې د اسلام په هیڅ حالت کې هم نه پریږدي او په هر حال کوښښ کوي چې هغوی له واقعي اسلام څخه لار بیلولو ته مجبور کړي. نو بناء مسلمانانو ته دوه انتخابه په مخکې پراته دي. یا به د کفارو غوښتنو او فشار ته غاړه ږدي چې په دې صورت کې مؤمنان نه شي پاته کیدلی، ځکه ایمان او کفر یا حق او باطل دواړه یو ځای نه شي سره اوسیدلی. او یا به هم د هغوی په مقابل کې جهاد کوي د هغوی برلاسي به ماتوي تر څو هغوی په خپله برخه قناعت ته مجبور کړي او مسلمانانو ته د خپلې عقیدې دپاللو او خپرولو فرصت مهیا شي.

څرنګه چې دوهمه لار له کفر او ذلت څخه د نجات لاره ده باید مسلمانان همدا لاره اختیار کړي چې هغه د کفارو په مقابل کې د جهاد او په وسله، قلم او ژبه سره دریدل دي.

اصلا که موږ دقیق وګورو د جهاد فلسفه هم همدا ده چې د جهاد په برکت د کفارو زور مات شي او که هغوی یومخ مغلوب نه شي لږ ترلږه خو په مسلمانانو د ظلم او باداری جرأت ترې واخیستل شي. د لاندیني آیت په تفسیر کې مفسرین کرام همدې مطلب ته اشاره کوي. الله تعالی فرمایي: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ.. البقره ١٩٣. المراغي په خپل تفسیر کې لیکي: وقاتلوهم حتى لا تكون لهم قوة يفتنونكم بها فى دينكم ويؤذونكم في سبيله ويمنعونكم من إظهاره والدعوة إليه، (ويكون الدين لله) أى ويكون دين كل شخص خالصا لله لا أثر لخشية غيره فيه، فلا يفتن بصده عنه ولا يؤذى فيه ولا يحتاج فيه إلى مداهنة ومحاباة أو استخفاء ومداراة.

یعني له کفارو سره تر هغه وخته جنګ وکړئ تر څو له هغوی سره د دې ځواک پاته نه شي چې تاسو د هغه په مټ په خپل دین کې په فتنه کې واچوي یا درته ضرر ورسوي یا مو د خپل دین له اظهار او دعوت څخه منع کړي او تردې چې د هر چا دین خالص لله وګرځي او په هغه کې له هیچا ویره ونه لري چې بیا د خپلو دیني امورو څخه نه بند کړای شي، نه وځورول شي او نه د خپلو دیني امورو په اجراء کې چاپلوسي، تساهل، پټوالي او مدارات ته مجبور شي.

د قران کریم آیت (ودوا لو تکفرون کما کفروا فتکونون سواء) او عیني تجربې یوازې همدا خبره کوي چې کفار مو تر هغو نه پرېږدي تر څو یې له اسلام څخه اړولي نه یاست. نو په دغسې حال کې یوازینۍ د خلاصون لاره د کفارو زور ماتول او اسلامي صلابت ورښودل دي تر څو خپل حد وپېژني او موږ ته په خپل اسلام کې له لارښوونو لاس واخلي.





# د برما غمیزه او زموږ بوداخېل

۲۳/ اپرېل/۲۰۱۳

## دا مکتیلا ښار دی

د ا د میانمار/برما د مکتیلا ښار دی، چې اکثریت اوسیدونکي یې بودایان او ځیني مسلمانان دي. یوه بودایي ښځه د یوه مسلمان زرګر دوکان ته ورځي او غوښتنه ورنه کوي، چې قیمتي توکي یې په لوړه بیه ورته خرڅ کړي، خو هغه بیه چې د ښځې غوښتنه ده مسلمان زرګر یې په هغه بیه نه شي ورته پلورلای. ښځه تاکید کوي او بالاخره د جنګ دانه اخلي، چې وروسته مسلمان زرګر هم د ځان د دفاع هڅه کوي، د بازار اوسیدونکي بودایان چې هسې یې شتمنو مسلمانانو ته زړه ډک دی، دې شخصي نزاع ته مذهبي رنګ ورکوي اوله یوې مخې په مسلمانانو بریدونه پیلوي.

هغه ویډیو چې یوه برمایي پولیس د دې بلوا له ځینو برخو څخه کړې، په کې ښکاري چې بودایان د زرګر دوکان سوځي او مسلمان طلا پلورونکي ته هم اور اچوي، مسلمان طلافروش د اور په لمبو کې ترپکې وهي، خو بودایان چیغې وهي (اوبه وربانديې وانه چوئ پرېږده چې وسوځي)

په ویډیو کې ښکاري چې دغه بلوا په دې ځای پای ته نه ده رسیدلې بلکې د ښار په مختلفو ساحو کې په لږ وخت کې ۴۳ تنه مسلمانان په سخت وحشت وژل کیږي. په ویډیو کې ښکاري چې یو نیول شوی مسلمان د بودایانو لخوا په لرګیو او تورو وهل کیږي. په وهونکو کې یو بودایي راهب هم ښکاري، چې په سخت قساوت مسلمان په شهادت رسوي. د بلوا په ترڅ کې پولیس او حکومتي ځواکونه یوازې د

نندارچیانو رول لوبوي او هیڅ داسې ثبوت نشته چې بودایان یې له دې وحشت څخه گرځولي وي.

مکتیلا هغه دوهم ښار دی چې په دې وروستیو کې په کې د مسلمانانو منظمه عامه وژنه پیل شوې ده، له دې وړاندې نور ښارونه له مسلمانانو تخلیه شوي او یا په کې مسلمانان سخت ټکول شوي. ملکیتونه، کورونه او مالونه یې غصب شوي او صحرایي پنډغالو ته په تیښته مجبور شوي دي.

د مکتیلا په مسلمانانو د ظلم داستان هم د برما د نورو ښارونو په شان خورا تریخ دی. د بي بي سي خبریال جنتان هېډ چې له دې ښاره یې تازه لیدنه کړې وایي: د ښار هغه برخې چې پخوا مسلمانان په کې اوسېدل داسې وراني شوي، ته به وایې کوم طبعي آفت ځپلي دي. کورونه نړیدلي، سوزیدلي او خلک په کې نه ښکاري. ښار یوې بدمرغې خاموشۍ لاندې کړی، د ښار په یوه اړخ کې خلک د یوه تورې شوې ځمکې لیدو ته راځي. خلک وایي ظالمو بودایانو د یوه ښوونځي شل تنه مسلمان ماشومان ونیول، په دې ځای کې یې په تورو او چړو ووژل، وروسته یې ټوټه ټوټه کړل، له غوښو سره یې پیټرول گډ کړل او اور یې ورواچاوه. جنتان هېډ وایي د ماشومانو پاتې شوني هډونه او د پایزارو ځینې ټوټې اوس هم په شاوخوا کې ښکاري.

## د مسلمانانو گناه (!)

جنتان هېډ وایي چې په خپلو څېړنو کې یې موندلې، چې د برمایي مسلمانانو په خلاف د بودایانو تبعیض کوم موجه دلیل نه لري، بلکې یوازې د مسلمانانو شتمني او پراخیدونکي اسلام د بودایي متعصبو راهبانو کینه راپارولې، او اوس هڅه کوي مسلمانان یو مخ له دې هیواده محو کړي. د بودایانو یو مشهور متعصب راهب آشین ویراتو دغه خبریال ته ویلي (مسلمانان په کاروبار، تجارت او هرڅه کې





ډېر مهارت لري، هغوی سره له دې چې تر لس فیصده کم دي خو ساختماني، د حمل او نقل او نور ټول کارونه یې په لاس کې اخیستي او اوس یې به گوندونو کې هم نفوذ کړی، که موږ د دوی په وړاندې ونه درېږو نو له برما به هم اندونیزیا جوړه شي یعني یوه اسلامي ټولنه.

تاریخ شاهد دی چې اسلام د خپل حقاني او عاقلانه فطرت له مخې ډېرو هیوادونو او ټولنو په خپله منلی او قبول کړی دی. په دې جمله کې مالیزیا، اندونیزیا او د برما په شمول د هندوچین د حوزې هیوادونه هم شامل دي، چې اسلام دې هیوادونو ته د تورې په زور نه دی رسول شوی، بلکې په خپله دې ټولنو اسلام قبول کړی. د برما بودایان ویریږي چې کیدای شي په برما کې هم د اسلام اشاعت د مسلمانانو د اکثریت کیدلو سبب شي، نو ځکه یې شډل تعصب ته ملاتړلې او غواړي د ظلم او زور له لارې مسلمانان د دې هیواد پرېښودو ته اړباسي.

د کیسې بل اړخ

که له یوې خوا د برما په مسلمانانو پیل شوی ظلم وروستي اوج ته رسیږي. د وژلو، سوزولو، ایشولو، ټوټه کولو، بې کوره کولو او بې پته کولو کیسو یې مطبوعات په سر اخیستي، له بلې خوا د دې انساني المیې په مقابل کې نړیوال بشري وجدان داسې د منافقت دریځ خپل کړی چې ښایي پخوا یې کله هم ساری نه وي لیدل شوی.

څو اونۍ وړاندې د بشري حقوقو یوه نړیوال سازمان قبرس هیواد له دې امله سخت محکوم کړ، چې ولې یې هغو مرغانو ته لومې ویږې کړي دي، چې د پسرلي د موسم له پیلیدو سره د مدیترانې له جنوبي او ختیځو غاړو شمال ته سفر کوي او په لاره کې د څو ورځو لپاره د قبرس په جزیره کې دمه اخلي. د مدیترانې د غاړې اروپایي هیوادونو او د بشري حقوقو سازمانونو د دې اروپایي مرغانو د ښکار د

مخنیوي لپاره قبرس ته ځانګړي څېړونکي او د ښکار د مخنیوي ډلې ولیږلې، تر څو هغه لومې له منځه یوسي، چې د دغو مرغانو نیولو ته ایښودل شوي دي. راپورونه وایي چې دا مرغان کوم فوق العاده مرغان نه دي بلکې هغه خړې عادي مرغۍ (سپېرکونډکې) دي، چې زموږ په هیواد کې هم خورا ډېرې هرځای شته او لور د لوره الوځي.

که د اروپایي مرغانو د ساتنې او حفاظت لپاره د ملګرو ملتونو په شمول د یو شمیر هیوادونو وجدان بیدار دی، خو د برما د قتلیدونکو مسلمانانو چیغو او فریاد تراوسه د هیڅ نړیوال حقوقي سازمان ضمیر نه دی لړزولی. تر اوسه په نړیواله کچه هیڅ داسې هڅه نه ده شوې، چې د برمایي روهینګا انسانانو د ژوند د ساتنې په لاره کې حداقل مؤثره تمامه شي. بلکې په هغه ورځ چې د برما په مکتیلا ښار کې د مسلمانانو د سوځیدلو تر ټولو بوږنوونکي ویډیو خپره شوه، په مقابل کې یې اروپایي ټولنې له دې هیواد څخه ټول پخواني بندیزونه لرې کړل.

که کفار (ملت واحده) او د بودایانو سکني وبولو، مسلمان حکمرانان چې څو ورځې وړاندې یې د باسټن د چاودنې د دری تنو وژل شویو په غمرازۍ او تسلیت ویلو کې له یوبل څخه د سبقت هڅه کوله او د وژل شویو کورنیو ته یې تسلیت وایه، په برما کې د خپلو مسلمانانو وروڼو په قتل باندې یې ځانونه ناګاره اچولي.

په سوشل میډیا لکه فیسبوک، یوټیوب وغیره کې کله چې د برمایي مسلمانانو د خونړي قتل عام تصویرونه نشریږي، تربودایانو وړاندې یې یو شمیر خرڅ شوي مسلمانان تردیدوي او دغه کباب شوي، ایره شوي او قتل عام شوي مستند شواهد ورته جعلي صحنې ښکاري.





## دوه مخې بودا خپل

زما په یاد دي، دوولس کاله وړاندې کله چې طالبانو د بودا مجسمې نړولې، نړیوال، سیمه وال او زموږ یوشمیر معلوم فرهنګیان په خورا ټینګه د بودایانو ترڅنګ ودریدل. په مطبوعاتو کې یې لیکنې وکړې، اعتراضونه یې وکړل، شکایتونه یې وکړل او خپلې ټولې هڅې یې وکړې، تر څو د بوداییزم آثار ړنګ نه شي. یونسکو په خپلو اظهاراتو کې د لیونتوب ترحده وړاندې لاړه او طالبان یې فرهنګي ترهګر وبلل. د اشرف غني احمدزي غونډې ځیني ړوندانډو خو د بوداییزم په پالنه کې خپل تعقل وبایله او له بي بي سي سره د خبرو په مهال ترې داسې اپلتې وویل شوې چې طالبان یې په کابل کې د بي بي سي د دفتر ترلو او خبریالې (کیت کلارک) شړلو پورې غبرګون ته اړ کړل. ځینو نورو قلموالو او د فرهنګ دعودارانو هم خپل وس ونه سپماوه. حتی د هیواد یوه مشهور مؤرخ خو د تاریخ لیکونکو د عرف خلاف په طالبانو پسې دروغ هم وتړل او وروسته یې په پخلاینه اوونیزه کې ولیکل چې دغه بوتان یې د پاکستاني داخله وزیر معین حیدر په قومنده مات کړي دي، په داسې حال کې چې معین حیدر په هغه وخت کې د امریکا په دیکته پرویز مشرف د دې لپاره کندهار ته لیږلی و ترڅو ملامحمدعمر مجاهد ته زارۍ وکړي او د بتانو له ماتولو یې وګرځوي (وګورئ - جنګ اشباح)

هغه مهال داسې اټکل کیده چې دا خلک واقعا بشر-پالان دي، ټولو ادیانو ته احترام لري او نه غواړي چې د بوداییزم آثار له منځه لاړ شي.

مګر اوس چې له یوه کال راهیسې بودایانو په ډېرو پسې نه بلکې په غوښنوژوندو انسانانو پسې را اخیستي ده، درګرده یې وژني، په اوریې سوځي، مالونه یې لوټوي، په جبر یې وطن پریښودلو ته اړباسي او د خپل دې جنایت دلیل

هم مذهبي بولي، له یونسکو او ملل متحد نیولې، ترمعین حیدر او کورنیو بوداخېلو پورې ټول داسې چوپ دي، ته وا مرګانۍ تبې لاندې کړي دي.

په کار خو دا وه چې دوی د ډېرین بودا د دفاع د ورځې غوندې اوس د غوښن مسلمان په دفاع کې هم همداسې پـه ټینګـه دریـدلي وای. مګـر دا چـې اوس یـې ځانونه پـه مـړو اچـولي بلکـې عـلاو بودایـانو تـه بـرأت هـم ورکـوي او دمسـلمانانو تصویرونه جعلي بولي، معلومیږي چې د دوی په رګو کې د اسلامي خواخوږۍ وینـه نه چلیږي، بلکې ډالري زهرو په کې حلول کړی. دوی په دې مسئله کې هم د خپـل غربي بادار تندي ته ګوري چې د بودایـانو پـه اړه کـوم ډول دریـځ نیسيـ؟ دا چـې اروپایي ټولنه بودایانو ته شاباس وایي او ټول بندیزونه ترې لرې کوي، نـو دوی هـم ځکه د بودایانو صف نیسي او د مسلمانانو د مظلومیت د دروغ ثابتولو هڅه کوي.

(و الی الله المشتکی و به نستعین)





# د اتاتورک په ترکیه کې د اردوغان حیثیت

١٦/ جولای/٢٠١٦

تېره شپه په ترکیه کې د پوځ د یوې ډلې لخوا د مسلمان ولسمشر رجب طیب اردوغان د حکومت په ضد کودتا وشوه. چې ورسره په ټولنیزو رسنیو کې د ترکیـې، اردوغان او ترکي اسلامپالو په اړه پراخ بحثونه راوپاریدل. ډېری اسلامپال فیسبوک کاروونکي چې د اردوغان په ملاتـړ ولاړ ول د یـوه اقلیـت اسـلامپالو لخـوا تـر نقـد لاندې ونیول شول، چې ولې د یوه سیکولر هیواد د مشر ملاتړ کوي؟

ترکیه واقعا یو سکولر حکومت لري. د ناټو اتحاد غړیتوب لري چـې د همـدې غړیتوب په چوکاټ کې یې افغانستان ته پوځیان هم رالیږلي دي. پـه ترکیـه کـې لا هم د امریکا او ناټو پوځي اډې فعالې دي.

د ترکیې د نظام غیر اسلامي کړنې یوازې په دې کې نه خلاصـه کیـږي، بلکـې که د دې هیواد څو لسیزې پخوانی تاریخ وګـورو نـو لـه اسـلام سره د دې هیـواد د واکمنو د دښمنۍ ګراف به مو حیران کړي.

څو لسیزې وړاندې د کمال اتاترک په واک تـه رسـیدلو سره پـه ترکیـه کـې د خلافت اسلامي نظام لغو شو. دیني مدارس بنـد او پـه ځـای یـې سـیکولر تعلیمـي اداري فعالې شوې، نوموړي خلیفه او د خلافت له فکر سره تـړلي ټـول اشـخاص لـه هیواده په هجرت مجبور کړل. اتاترک د ترکیې د نویـو قوانینـو جوړولوتـه اروپـایي پوهان راغوښتل تر څو یي د ایټالیا، سـویس او المـان لـه مـدني، جنـایي او تجـاري قوانینو په استفاده ورته قوانین ترتیب کړل.

اتاترک عربي رسم الخط لغو او پر ځای یې د غرب لاتیني حروف واجب الاجراء وبلل، اتاترک ټولو حکومتي او تعلیمي ادارو ته ورځ وټاکله چې که له ټاکلې نیټې وروسته حتی یو حرف عربي هم ولیکي نو له وظیفې نه د عزل، له هیواد نه د شړلو او حتی د تابعیت د سلب له سزا سره مخامخیدای شي.

اتاترک له متعددو ښځو سره نکاح ناقانونه وبلله، د ښځو او نارینه و ترمنځ یې په ټولو حقوقو، وجایبو او مواریثو کې مساوات لازم وباله، اتاترک د ایاصوفیا او الفاتح تاریخي مساجد په موزیمونو بدل کړل او د نندارچیانو لپاره یې په کې بتان ودرول، په عربي آذان او په عربي ژبه د قرآن په تلاوت یې بندیز ولګاوه. یوازې یې په ترکي ژبه د آذان او قرآن ژباړې ته اجازه ورکړه، اتاترک په دې اړه دومره جدي و چې په استانبول کې یې د یوه مسجد آذان خانه په دې جرم ونړوله چې په عربي یې د سهار اذان کړی و.

اتاترک اسلامي هجري تاریخ په غربي تاریخ بدل کړ، د عید الفطر او عیدالاضحی رسمي ورځې یې لغو کړې، د اونۍ رخصتي یې له جمعې یکشنبې ته واړوله او په حج او حجاب یې رسمی بندیز ولګاوه.

کمال اتاترک د اسلام او خلافت ټاټوبی به بشپړ ډول له اسلامي شعائرو خلاص کړ او په ۱۹۳۸ کال کې چې مړ کېدو نو وروستی فرمان یې د یوازیني پاته رکن لمانځه پر ضد و او وصیت یې وکړ چې د جنازې لمونځ دې ورباندې نه کیږي.

په دې ډول ترکیه په بشپړه توګه د بي دینۍ په ګرداب کې ډوبه شوه، ترکیې ته د اسلام د اعادې لپاره بیا بیا هڅې وشوې، د نقشبندي صوفیانو له پاڅون نیولې بیا د سعید النورسي تر سوله ایز تحریک پورې، ړمګر سیکولر واکمنو دغه ټولې هڅې په سختۍ سره وځپلې.





اما که د نن خبره کوو. آیا ترکیه په هماغه حالت پاته ده چې په ۱۹۳۸ م کې له اتاترکه په میراث پاته وه؟

ځواب منفي دی. نه هیڅکله نه. درې کاله وړاندې چې حج ته تللی وم په هماغه کال د ترکیې صدر اعظم هم حج ته راغلی و. له دې معلومه شوه چې په ترکیه کې نه یوازې په حج رسمي بندیز نشته، بلکې واکمن یې په حج عقید لري او ترسره کوي یې.

اتاترک د ترکیې ښځې د برچې په زور له حجاب څخه لغړې کړې، اما اوس د ولسمشر اردوغان میرمن حجاب په سر کوي. اتاترک په عربي اذان بندیز لګولی و، اما تیره شپه چې داتاترک پاتې شونو د کودتا ټانګونه غرول په وړاندې یې د استانبول له مساجدو د آذان هنګامې پورته کیدلې او د ترکیې ښارونه د الله اکبر نعرو په سر اخیستي وو. له دې او په حکومتي، تعلیمي، تقنیني او ګڼو نورو برخو کې دیني اصلاحاتو او ترکیې ته د اسلامي ارزښتونو له راستنېدو برېښي چې ترکیه یو ځل بیا اسلام ته غیږه خلاصوي او د بي دینۍ نښې کرار کرار کډه اخلي.

ترکانو ته د اسلام د ورپه زړه کولو او اسلامي شعائرو د راتاندولو ټول کریډیټ د نجم الدین اربکان په نوم د هغه اسلام پال ګټلی ویاړ دی، چې ۱۹۷۲ میلادي کال کې یې د اسلامي ګوند بنسټ کیښود او په ډېره هوښیارۍ یې د ترکانو تر منځ د اسلامپالنې او خپل ماضي ته د ورګرځیدو دعوت وچلاوه.

اربکان او شاګرد یې اردوغان په تیرو لسیزو کې د اسلامي مبارزې په لړ کې له بیلابیلو سړو او تودو پړاوونو تیر شول، بیا بیا د پوځ لخوا سرکوب شول، د ګوند د نوم او تشکیلاتو بدلیدو ته اړ شول خو په پوره هوښیارۍ یې د سیکولرانو په وړاندې خپل پایښت وساته او په یو مخیز شکل ذوب نه شول.

د اربکان او اردوغان مبارزه اوس هم روانه ده، دوی لکه وړاندې چې وویل شول د پام وړ اصلاحات راوستي او د نورو اصلاحاتو لپاره هم هڅې کوي. په سیکولر ترکیه کې د اسلامپال اردوغان حیثیت باید موږ ته داسې وي لکه په اسلامي هیواد افغانستان کې چې امریکایانو او بې دینانو ته د اشرف غني حیثیت دی.

امریکا او نور بې دینان له اشرف غني دا تمه نه کوي چې په یوه ورځ ورته ټول لادینیت نافذ کړي، که اشرف غني د مجبوریتونو له امله حج او عمره کوي هم بې دینه باداران یې پرې هیڅ اعتراض نه کوي، هغوی له ظاهري اسلامي حرکاتو سره سره ځکه د اشرف غني ټینګ ملاتړ کوي چې هغه د سیاسي واک غوندې یو مهم ځواک په لاس کې لري او په تدریج سره افغانستان د بې دینۍ په خوا رهبري کوي.

موږ هم باید په سیکولر ترکیه کې د اسلام د ارمانجن اردوغان نفس شتون غنیمت وبولو، له هغه څخه د هغه د امکاناتو او شرایطو په تناسب تمه وکړو او وخت ورکړو چې د راوستو تبدیلیو غوندې ترکیه په بشپړه توګه د دین په رنګ ورنګوي او د ناټو او امریکا له ځغ نه یې خلاصه کړي.





# پردي پوځونه

۱۶/ اګست/۲۰۱۳

مسلمان ملتونه خوشال دی، چې مسلح پوځونه او متعهد پوله ساتونکي لري، خو تراوسه یې دا پوښتنه نه ده راپورته کړې چې آیا واقعا دغه پوځیان د دوی دي او که د دوی پر ضد؟ ایا دغه ټوپکیان (لهم) دي او که (علیهم)؟؟

د دې پوښتنې ځواب د مصر د تیرو ورځو په پیښو کې موندلی شو. د مصر پیښو وښوده، چې دغه څلورنیم لکه ټوپکیان چې هرکال د مصریانو له مالیو او پیسو څخه دوه اعشاریه پنځه ملیارده ډالر خوري، د مصریانو خپل پوځ نه دی بلکې پردی دی او یوازې د دې په خاطر رامنځته شوی، ترڅو د مصریانو په بې وسلې لاشونو خپلې نښې پخې او د مسلمه امت د دښمنانو زړونه وروباندې یخ کړي.

دغو پوځیانو د نورو اسلامي هیوادونو د پوځیانو غوندې همیشه ثابته کړې ده، چې دوی د اسلامي قاعدې په خلاف (اشداء علی المسلمین رحماء علی الکفار) دي. دوی د هغه چا په مخکې چې ظاهرا یې دښمن بولي همیشه ټیټ سترګي، مړتت او ډارن دي. د مصرپوځیان چې په عربي نړۍ کې تر ټولو ستر قوت ځان بولي او په نړیواله کچه ۱۷ نمبر قوي پوځ بلل کیږي، وړمه ورځ یې ثابته کړه، چې دوی د خپل اولس په وړاندې څومره له کینې او حقد ډک او بې رحمه دي.

د مصر پوځ وړمه ورځ د خپل سل کلن تاریخ لومړنۍ فتحه ترلاسه کړه، دوی د رابعه العدویه مسجد فتحه کړ، او ۵۰۰۰ بې وسلې مسلمانان یې د مرګ په خوب ویده کړل. دوی د وړمې ورځې په عملیاتو کې خورا خونړي، زړور، بې رحمه او جرأتمن وو. په مصري مسلمانانو یې له ځمکې او هوا څخه توره شپه جوړه کړه، بې وسلې مسلمانان

يې رسا رسا په گوليو وويشتل او ډېر زر يې له پښو وغورځول. نه يوازې يې د ټوپکو او ټانگونو ډزې پرې وکړې، بلکې چورلکې يې هم پسې راپورته کړې، بيلډوزران يې هم وغورول، د پوځ مشر سيسي چې د اسرائيلو او امريکا په وړاندې لکه سيسۍ مارغه بې ازاره او مړتت پاته شوی وو، په دې ورځ چې له خپل اولس سره په جنگ و، نو غوښې خوړونکی کجير ترې جوړ و. دده په قومنده پوځيان د وړيو ليوانو غوندې د رابعه العدويه او النهضة په سيمو ورغلل، د څو ساعتونو په ترڅ کې يې هدف ترلاسه کړ او هغه دا چې مسلمانان يې نه يوازې ووژل، بلکې د هغوی جسدونو ته يې اور هم ورکړ او په دې توگه يې په خپل تاريخ کې د يوې کرغېړنې فتحې کارنامه ثبت کړه.

د مصر پوځ د خپل اولس په وژلو کې بې له شکه بريالی او زړور و، مگر دغه پوځ په تيرو سلوکلونو کې هميشه د عيسوي او يهودي کفارو په مقابل کې ټيټ سترگی پاته شوی او هيڅ مېړانه يې هم نه ده ښودلې. د دې پوځ د واقعي مېړانې گراف خو موږ له دې معلومولای شو، چې په ۱۹۶۷ م کال له اسرائيلو سره دجنگ په مهال يې له اسلامي او عربي تاريخ څخه پوزه پرې کړه. هغه وخت چې د مصر-پوځ او ورسره څو نورو همنوعو پوځونو (دسورېې او اردن پوځونو) په گډه د اسرائيلو په خلاف عمليات پيل کړي وو، دوی چې د مسلمانو اولسونو واقعي نماينده گان نه وو او نه يې هدف عقيدوي و، نو داسې شرمناکه کارنامه يې ترسره کړه، چې د تل لپاره يې د عربو په تندي تور داغ کيښود. د مصر، سورېې او اردن پوځيان چې اوس په بې دفاع مسلمانانو خپله مېړانه آزمايي، موږ ته يې د واقعي مېړانې گراف په هماغه ورځ معلوم شو، چې څرنگه يې د اسرائيلو محدود پوځ ته د سيناء ټاپووزمه، د غزې تړانگه، د گولان لوړې او د اردن سيند لويديځه غاړه پرېښوده او د جگړې له ميدانه په تيښته يې يوازې غوړونه خلاص کړل.

جمال ناصر چې د جنرال عبدالفتاح السيسي غوندې د مؤمنو مصر-يانو په وژلو خورا غښتلی و، د اسرائيلو په وړاندې يې له ټولو غورو سره سره کله هم کومه مېړانه ترسره نه کړه. نن بيا هماغه تاريخ تکرارېږي، د اسرائيلو استطلاعي الوتکې د مصر-په





خاوره الوتنې کوي او بې پيلوټه طيارې يې د سيناء په ټاپوزمه کې د مصر-خاوره بمباروي، خو مصري پوځيان د دې په ځای چې د اسرائيلو په خوا کاږه وگوري، خپل ټانگونه يې د قاهرې واټونو ته ايستلي او په بې دفاع مصر-يانو توپونه غړمبوي. اوس تاسو ووایاست چې آيا دا د اسلامي مصر پوځ دی او که د يهودي اسرائيلو؟؟

ځواب واضح دی، نور که دچا سر نه خلاصيږي مرکب جاهل به وي. د اسلامي امت په اوږو سپاره دغه پوځونه چې د شمير، دفاعي بوديجې، پوځي مانورونو او پوځي وړتياوو کميت او کيفيت يې په پينټاگون کې ټاکل کيږي، زموږ پوځونه نه دي. دا د کفر او نړيوال طاغوت مرتزقه پوځيان دي، چې د هغوی لپاره دنده ترسره کوي، د هغوی په مرستو چاغ شوي او يوازينۍ دنده يې د مسلمانو ملتونو، اسلامي خوځښتونو او مؤمنو پرگنو سرکوبول دي.

د شلمې پيړۍ په لومړيو کې له استعماره راوتليو اسلامي ملتونو او هيوادونو سره تاريخي غدر شوی، چې نتايج يې اوس رابرسيره کيږي. غربي استعمارگرو له اسلامي خاورو د وتلو په مهال ظاهرا مسلمانانو ته خپلواکۍ ورکړې، خو په حقيقت کې يې دوی په بله بڼه اشغال ساتلي. هغه دا چې خپل تربيه شوي او ډيزاين شوي محلي، اجير پوځونه، جنرالان او سياستوال يې د مسلمانانو په اوږو سپاره پرې ايښي، چې د مسلمان امت په وړاندې عين هماغه کردار ترسره کوي، چې غربي استعمارگرو په مباشر ډول ترسره کاوه.

دغه واکمن سياستوال او جنرالان زموږ خپل نه دي، بلکې پردي دي. دوی د غرب گټو ته وفادار دي او د کفر د خدمت لپاره له هيڅ قساوت څخه مخ نه اړوي، د مصر وروستي جريانات د دې مدعا نغد شواهد دي، مسلمان اولسونه بايد نور له دغو سياستوالو او پوځيانو څخه براأت اعلان کړي او په هماغه سترگه ورته وگوري لکه اسلام دښمنه امريکايي او اسرائيلي پوځيانو ته چې گوري.

زموږ په اسلامي خاوره افغانستان کې همدا اوس غربي کفري يرغلګرو هماغه فريب پيل کړی، چې له مصر سره يې څو لسيزې وړاندې کړی و او اوس يې نړيوال کفر ثمره ټولوي. دلته هم غربي کفار لګيا دي موږ ته ټوپکيان روزي، په دې لاره کې ملياردونه ډالر مصرفوي او يو شمير لنډفکره هيوادوال هم ورته خوشاله دي، چې هيواد به مو دپوځ څښتن شي، خو دوی په دې نه پوهيږي چې غربيان په دې افلاس او د اقتصادي رکود په حالت کې ولې په دې پوځ دومره پيسې مصرفوي، او آيا دا پوځ دوی موږ ته جوړوي که خپل ځان ته؟؟

د دې پوښتنې ځواب د مصر د پوځ کردار ته په کتلو موندلی شئ، د مصر پوځ هم انګريزانو ډيزاين کړی او همدا اوس د امريکا په مرستو چليږي. همدا وجه ده، چې نن دغه پوځ د دې په ځای چې د مسلمانانو دفاع وکړي، د کفر په خدمت کې لګيا دی، د ټوپکو ميلونه يې د خپل اولس سينې ته برابر دي او يوازې د خپل مسلمان اولس وينې تويوي.

په افغانستان کې هم هوبه هو د مصر تجربه تکراريږي، که دولتي همداسې د سيکولرو په لاس کې وي نو امريکايان به لاړ شي، لکه څنګه چې انګريزان له مصره تللي وو. خو تربيه شوي ټوپکيان به يې دنده په پوره امانت داری ترسره کوي. د دوی برچې به د مؤمنو او خداپالو افغانانو په وينو سرې وي، ځکه دوی زموږ خپل نه دي، چې دفاع رانه وکړي، يا حداقل رحم رابانده وکړي. دوی پردي ټوپکيان دي، د دوی ټوپک، دريشي، معاش او هرڅه پردي دي، دوی د پرديو اهدافو لپاره جوړيږي او د خپل اولس په وړاندې به د پرديو اهدافو لپاره کار کوي، که له دې ټول پرديتوب سره سره څوک بيا هم له دې پرديو پوځيانو د خپلوۍ او رحم تمه لري، نو هغوی ته دې غبرګ حماقت مبارک وي!!!





# امت هماغه امت دی

۱۴/ سبتمبر/۲۰۱۲ ميلادي

د هغه امريکايي فلم په وړاندې چې اسلام ته په کې سپکاوی شوی دی، د نړۍ په ګوټ ګوټ کې مظاهرې رواني دي. دا مظاهرې چې د اسلامي امت د يوه مشترک درد له امله راپاڅيدلي دی، د ژبو، نژادونو او جغرافيې پولې يې ماتې کړې او تقريبا په درسته اسلامي نړۍ کې يې بهير يا روان دی او يا خوځيدو ته زړه غړوي.

مظاهرې له مصر او ليبيا پيل شوې، چې اوس يې سر تر المغرب العربي، تونس، سوډان، يمن، ايران، کشمير او حتی بنګلاديش پورې رسيدلی دی.

دا مظاهرې د کوم ګوند، ډلې يا سياسي فکر د ملاتړ لپاره نه دي راپاڅيدلي، بلکې د عقيدې په ننګه او د اسلام د پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم سره د خپلې مينې او خلوص د څرګندولو په لاره کې د تش لاسي ملت يوه مخلصانه هڅه ده. له همدې امله خو په دې مظاهرو کې له سياسي ملحوظاتو ماوراء هر مسلمان، نارينه، ښځينه، تورپوستي او سپين پوستی ګډون لري چې د اسلامي ورورولۍ او اتحاد يوه زړه وړونکې صحنه تمثيلوي.

خو که د دې مسلمانو مظاهره چيانو چې د امت له متن څخه راپاڅيدلي دي، شعارونو، ويناوو او بيرغونو ته وګورو په څرګنده راته د معاصر اسلامي امت باطني احساسات، عواطف تعهدات او فکري تړاو معلوميږي او دا راز راته افشاء کيږي چې د اسلامي امت د محکومو عوامو په زړونو کې څوک ځای لري او کومو ارمانونو ته متعهد دي.

څه موده وړاندې مې د یوې مدرسې له مهتمم څخه چې د بسپنې ټولـو لپـاره په ډېرو اسلامي ممالکو گرځېدلی وو اوریدلي وو، چې له مختلفو مسلمانو ټولنـو او اشخاصو سره د بیا بیا ملاقات له امله یو راز راته معلوم شو، چې زما لپاره د ډېر ډاډ او اطمنان وړ وگرځېد.

ده وویل سره له چې بالفعل تقریبا د درستي اسلامي نړۍ مسلمان اولسـونه د ظالمو، فاسقو او د کفارو د اجیرو رژیمونو ترسلطې لاندې ژوند کوي، خـو حقیقـت دا دی چې په عامه اسلامي پرگنو کې لا هم له اسلامي عقائدو او مقدساتو سره مینه د پخوا غوندې په ټول قوت شتون لري. اسلامي اولسونه اگـر کـه ظـاهرا لـه کفـري زبرځواکونو او د هغوی له اجیـرو رژیمونـو سره غـاړه وړي، مگـر پـه زړه کـې تـرې سخت نفرت لري. دوی اوس هم د پخوا غوندې د اسلام په حقیقي معنـي پـوهیږي او ورته تعهد لري. له جهاد، اسلامي نظام او مجاهـدینو سره د زړه لـه تلـه محبـت لري او هره شیبه یوه سرتاسري اسلامي اوښتون او د امت د تیر مجـد د اعـادې پـه تمه دي.

کله مې چې نن د امریکا په خـلاف د اسـلامي مظـاهره کوونکـو د احتجاجـاتو انځورونو په انټرنیټ کتل، یو ځل بیا د هماغه مولوي صاحب خبره راپه زړه شـوه او دا راته څرگنده شوه، چې واقعا زموږ (امت مرحومه) هماغه امت دی. هماغـه امـت چې له الله تعالی پرته د بل هیڅ معبود خدایي نه شي منلی، د دوی په زړونو کـې د صحابه کرامو د دور غوندې د خپل محبوب پیغمبر صلی الله علیه وسـلم مینـه پـه څپو ده، دوی اوس هم له جهاد في سبیل الله او مجاهدینو سره هماغه مینه لري او عقیدت ورته لري، چې په قران او نبوي احادیثو کې یـې ورتـه لارښـوونه شـوې ده. دوی سره له دې چې د یو شمیر اجیرو او فاسقو حاکمانو لخوا برمته شوي دي، خـو دا په دې معنی نه ده چې دوی له هغـو سره د زړه تـړاو لـري. دوی لـه هغـو څخـه نفرت کوي او خپلو اسلامي ارزښتونو ته ژمن دي.





د دې حقیقت یو دا مثال راته څرگندشو، چې هغه مظـاهره کـوونکي چـې پـه قاهره کې په امریکایي سفارت وروختل، دوی د امریکایي بیرغ له سوزولو وروسـته په دې سفارت د مصر حکومتي بیرغ پورته نه کړ او نه یې هلته د حسني مبـارک یـا جمال عبدالناصر نوم ولیکه. دوی په امریکایي سفارت د یوه اسلامي تنظیم (قاعدة الجهاد) تور رنگه بیرغ چې د توحید کلیمه طیبـه وربانـدې لیکـل شـوي ده، پورتـه کړل او د امریکایي سفارت په دروازو یې د (شهید اسامه بـن لادن) نـوم او جهـادي شعارونه ولیکل.

دغه راز کومو مظاهره چیانو چې په یمن کې په امریکایي سفارت برید وکړ، د دوی د ډېرو په لاسونو کې د افغانستان د اسلامي امـارت سـپین رنگـی کلیمـه دار بیرغ و. دوی د امریکایي سفارت د دروازې په سر ځوړند امریکایي بیرغ راکوز کړ ویې سوزاوه او په عوض یې د اسلامي امارت سپین بیرغ پورته کړ.

دا رویداد به ځینو ته یوه جزئي پېښـه ښـکاري خـو پـه حقیقـت کـې دا خـورا مهمه پېښه ده. له دې څخه موږ استنباطوو چې په اسـلامي امـت کـې لـه جهـادي خوځښتونو او اسلامي واکمنۍ سره هماغه شان مینه او قلبي تړاو شتون لـري، لکـه څنگه یې چې تمه کیږي.

اسلامي امت مصنوعي جغرافیوي پولو، بیلابیلو شعارونو، بیرغونو او د کفـارو شـیطاني دسیسـو پـه واقعـي ډول نـه دی متفـرق کـړی. دوی پـه رښـتیني ورځ دا بیلوونکي رسوم یو هم په رسمیت نه پیـژني، بلکـې واقعـي اسـلام، جهـاد، اسـلامي واکمنۍ او د اسلام حقیقي روح ته د پخوا په شان متعهد دي.

# بیت المقدس د تاریخ په لوړو او ژورو کې

۱۰/ ډسمبر/۲۰۱۷ میلادي

فلسطین د عربي ټاپوزمې په لویدیځ کې د پخواني شام د هغې برخې نوم دی چې د اردن سیند او مدیترانې بحیرې تر منځ پرته ده. که څه هم ټول شام ارض الانبیاء بلل کیږي خو فلسطین بیا په شام کې هغه ځانګړې ټوټه ده چې الله تعالی یې په سورة الاسرا کې د فیض او برکت امتیاز په صراحت بیان کړی دی. د تاریخي روایاتو له مخې د فلسطین اصلي اوسیدونکي هغه سامي عرب قبائل وو چې له جزیرة العرب نه دغې زرخیزې سیمې ته کوچیدلي وو، وروسته دا سیمه د یهودانو تر واک لاندې راغله او بیا د پیړیو په اوږدو کې د مختلفو قومونو او مذهبي پیروانو تر منځ لاس په لاس په شوه.

په اسلامي تاریخ کې د فلسطین له نوم سره له هغه مهاله آشنا کیږو کله چې له اوس نه شاوخوا څلورزره کاله پخوا د ابراهیم علیه السلام عبرتناک سرګذشت او تاریخي سفر پیلیږي. ابراهیم علیه السلام د عراق په أور سیمه کې وزیږېد، له هغه ځایه یې د ترکیې حران سیمې ته هجرت وکړ، وروسته له حران څخه د شام په خوا روان شو او په فلسطین کې میشت شو. په فلسطین وچکالي راغله او ابراهیم علیه السلام مصر ته لاړ خو ډېر ژر بیرته فلسطین ته راستون شواو همدلته د اوسیدو له امله الخلیل ښار دده په نوم مسمی شو.

په فلسطین کې د بیت المقدس اوسنی ښار چې وروسته په ایلیاء او قدس سره ونومول شو د ابراهیم علیه السلام په زمانه کې د یبوس په نوم یادېده، ابراهیم





علیه السلام لکه څنګه چې د ځمکې د مخ لومړنۍ ودانۍ بیت الله شریفه له سره ودانه کړې وه، د مسجد الاقصی په نوم هغه تاریخي مسجد یې هم له سره ودان کړ چې د ادم علیه السلام له زمانې راهیسې د قدس په سیمه کې پر الله تعالی د باور لرونکو عبادتځای و. په صحیحینو کې د أبوذر غفاري رضی الله عنه نه روایت دی چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې وپوښتل چې په ځمکه کې تر ټولو لومړی کوم مسجد جوړ شوی دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم ځواب راکړ چې لومړی مسجد الحرام جوړ شوی دی. ما وپوښتل او دوهم کوم مسجد جوړ شوی؟ ځواب یې راکړ چې مسجد الاقصی. أبوذر غفاري رضی الله عنه وایي ما وپوښتل چې د دوی د تاسیس تر منځ څومره موده وه؟ نبي علیه السلام ځواب راکړ: څلویښت کاله.

له دیني لیدلوري مسجد اقصی د کومې مشخصې ودانۍ یا عمارت نوم نه دی، بلکې د هغه ځای نوم دی چې له څو زریزو راهیسې د پیغمبرانو د عبادت ځای پاته شوی دی. هغه ساحه چې د مسجد الاقصی اطلاق وربانديې کیږي د څه کم پنځه سوه متره طول او شاوخوا درې سوه متره عرض درلودونکې هغه ساحه ده چې اوسنی مسجد الاقصی، قبة الصخره او نور متبرک مقامات احاطه کوي.

دا مبارکه ځمکه لکه څنګه چې د ادم علیه السلام او ابراهیم علیه السلام د عبادت ځای پاته شوی، وروسته حضرت یعقوب علیه السلام او یوشع علیه السلام هم د الله تعالی په عبادت پاللې دی. داود علیه السلام دلته د عبادت لپاره ځانګړی محراب ودان کړی و او زوی یې حضرت سلیمان علیه السلام همدلته یو لوی معبد ودان کړ چې په هیکل سلیمان یې شهرت ومونډ او بیا د بخت نصر د یرغل په مهال ونړول شو.

د سليمان عليه السلام له زماني وروسته دا سيمه د يهودانو تر تصرف لاندې راغله، خو ځرنګه چې يهود يو سرکشه قوم و الله تعالى ورباندې بيا بيا آفتونه نازل کړل. که څه هم د آخري نبي حضرت محمد صلى الله عليه وسلم له بعثت وړاندې د فلسطين يهود بيا بيا ترمختلفو يرغلونو لاندې راغلي خو په دوی دوه ستر عذابونه هغه راغلي چې قران کريم هم ورته په سورة الاسراء کې اشاره کوي. الله تعالى فرمايي: وَ قَضَيْنا إِلى بَنِي إِسْرائِيلَ فِي الْكِتابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَ لَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيراً. الاسراء ۴ آيت

د فلسطين د يهودو لومړی ستر فساد هغه و چې د الله تعالى د استازو په نه منلو سربيره يې ځيني پيغمبران قتل کړل، الله تعالى د بابل حاکم بخت نصر په فلسطين حاکم کړ، بخت نصر په لسګونو زره يهود قتل کړ، نور يې له فلسطين څخه وشړل او ډير يې د غلامانو په ډول له ځان سره بوتلل، بخت نصر د سليمان عليه السلام له وخته پاته معبدهم ونړاوه، فلسطين تر ډېرو کلونو د يهودو له تصرف څخه وتلی و تر دې چې د فارس حاکم کوروش په بخت نصر بری وموند او يهودانو ته يې اجازه ورکړه چې بيرته فلسطين ته راوګرځي.

د يهودو دوهمه لويه ناروا د عيسى عليه السلام د قتل هڅه وه، دوی په خپل باطل زعم هغه په دار کړ مګر په حقيقت کې الله تعالى هغه ترې اسمان ته پورته کړ، د دې جرم له امله الله تعالى په دوی د روم حاکمان مسلط کړل او دوی يې بيا بيا سخت وټکول، زرګونه يهود يې مړه اوګڼ نور يې له فلسطين څخه د نړۍ بيلابيلو برخو ته په تيښته مجبور کړل.

په څلورمه ميلادي پيړۍ کې چې د روم امپراطور قسنطنطين مسيحيت قبول کړ، نو فلسطين چې د عيسى عليه السلام د تولد او د دوی په زعم د تصليب ځای و د نوموړي لپاره يې ځانګړی تقدس درلود. د رومي امپراطور همدا دلچسپی





د دې لامل شوه چې بيت المقدس د يهودو له واک څخه ووت او د روم مسيحي واکمن يې متوليان شول. د روم د امپراطورۍ له تقسيم وروسته بيت المقدس د ختيځ روم د امپراطورۍ تر واک لاندې پاته شو. د اوومې ميلادۍ پيړۍ په لومړيو کې هغه مهال چې اسلام په جزيرة العرب کې ظهور کړی و، د فارس او روم واکمن له يو بل سره په جګړو بوخت وو، دغه وخت بيت المقدس د لنډوخت لپاره فارسيانو ونيو، خو د شام رومي حاکم هرقل ورباندې حمله وکړه او بيرته يې د دې مهم ښار واک په لاس کې واخيست.

د اسلام په راتګ سره د نورو اسماني اديانو په شان په محمدي دين اسلام کې هم بيت المقدس لومړنۍ قبله وګرځول شوه. کله چې د اسراء او معراج واقعه راغله او نبي عليه السلام لومړی بيت المقدس ته لاړ، هلته يې د انبياء کرامو امامت وکړ او بيا اسمانونو ته پورته شو، په دې سره په اسلام کې د بيت المقدس اهميت او فضيلت نور هم ځرګند شو. الله تعالى د اسراء د واقعې په اړه نازل کړيو آيتونو کې د بيت المقدس متبرک مقام په مسجد الاقصى سره ونوماوه او بيا د لومړنۍ قبلې همدا نوم شو.

وروسته که څه هم د مسلمانانو قبله بيت الله شريفه وټاکل شوه، خو رسول الله صلى الله عليه وسلم بيت المقدس يو له هغو دريو مساجدو څخه وباله چې مسلمانان يې بايد زيارت وکړي. عن أبي هريرةرضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: "لا تشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد: المسجد الحرام، ومسجد الرسول صلى الله عليه وسلم، ومسجد الأقصى. متفق عليه

هغه وخت چې اسلام د پراخيدو په حال کې و او اسلامي فتوحات روان و، په فلسطين او بيت المقدس کې که څه هم يهود موجود وو اما د دې ټولې ساحې واک د رومي مسيحيانو په لاس کې و، يهودان د څلورمې ميلادي پيړۍ را وروسته نور د

فلسطين او قدس شريف د واک په موضوع کې فريق نه بلل کيدل، حتی وروسته هم د صليبي جګړو په مهال د بيت المقدس د واک اصلي دعوه داران صليبي مسيحيان او مسلمانان ول او د يهودو لپاره چا دا حق په رسميت نه پيژاند چې په دې مهمه ساحه دې واک ولري. دا چې څرنګه وروسته د دې سيمې واک يهودو ته ورکړل شو او په فلسطين کې يهودي دولت تشکيل شو، دې موضوع ته به وروسته کتنه وکړو.

په نبوي دور کې له رومي مسيحيانو سره د مؤته غزا قدس ته نږدې د اردن سيند په ختيځه غاړه وشوه، وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم د دې سيمې د فتحې لپاره د اسامه بن زيد په مشرۍ لښکر تيار کړ، د ابوبکرصديق رضی الله عنه په دور کې د ارتداد فتنې د شام او بيت المقدس فتحه وځنډوله، تر دې چې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په دور کې د ابوعبيده بن الجراح په مشرۍ اسلامي لښکر قدس ښار چې هغه مهال يروشيلم او ايلياء بلل کيده محاصره کړ. له څه وخت محاصرې وروسته د ښار مسيحي مشر پادري صفرونيوس په دې شرط تسليمي ته غاړه کيښوده چې د مسلمانانو خليفه حضرت عمر رضی الله عنه به قدس ته راځي او دی به په خپل لاس د ښار واک ورسپاري. په ۱۵ هجري کال کې چې ٦٣٦ ميلادي سره سمون خوري حضرت عمر رضی الله عنه پرته له جنګ څخه د قدس ښار ته ننوت، د اسلامي خلافت برخه يې کړ او په بيت المقدس يې ونوماوه.

قدس له هغه وروسته د راشده خلافت دغه راز اموي او عباسي دولتونو په مهال د مسلمانانو تر واک لاندې و. په اموي دوران کې عبدالمالک بن مروان قبة الصخره ودانه کړه دغه راز يې مسجد اقصی له سره تأسيس کړ چې د نوموړي زوی وليد بن عبدالمالک دغه ودانۍ پسې تکميل کړې. د امويانو له سقوط وروسته چې





واحد اسلامي دولت ټوټه ټوټه شو، قدس بيا بيا د عباسيانو، فاطيميونو او قرامطه وو تر منځ لاس په لاس شو. تر دې چې په ۱۰۷۱ ميلادي کال کې د سلجوقيانو تر واک لاندې راغی.

دغه مهال چې اسلامي واکمنۍ له يو بل سره په خپلمنځي جګړو اخته وې اروپايي مسيحيانو فرصت غنيمت وباله او د صليبي جګړو په اغاز سره يې د مديترانې له اړخه په اسلامي قلمرو بريدونه پيل کړل، په ۱۰۹۹ ميلادي کال کې صليبي مسيحيانو د شام د نورو برخو په شان بيت المقدس هم ونيو او دلته يې له ۷۰ زره زيات مسلمانان په قتل ورسول. د صليبي جګړو په وړاندې اسلامي جهاد پيل شو، د بيت المقدس د آزادۍ لپاره ډيرې هڅې وشوې تر دې چې په ۱۱۸۷ ميلادي کال کې د حطين په جنګ کې له بريا وروسته صلاح الدين ايوبي وتوانيد چې په بيت المقدس کې هم صليبيان مات کړي او دغه متبرک مقامات يو ځل بيا تر واک لاندې راولي. صلاح الدين ايوبي په قبة الصخره لګول شوی صليب مات او رانسکور کړ او له ۸۸ کاله بيلتون وروسته يې قدس شريف يو ځل بيا له اسلامي جغرافيې سره پيوند کړ.

د سلطان صلاح الدين ايوبي له وفات وروسته په ۱۲۲۹ ميلادي کال کې بيت المقدس د لنډې مودې لپاره يو ځل بيا صليبيانو ونيو خو د ايوبي واکمنو لخوا بيرته ورڅخه آزاد شو. کله چې د ختيځ لخوا په اسلامي نړۍ چنګيزي فتنه راپورته شوه، د ماوراء النهر، خراسان، فارس، عراق او شام د ډېرو برخو له نيولو وروسته تاتاريانو د فلسطين د نيولو اراده هم وکړه، خو په ۱۲۵۹ ميلادي کال کې د مصرـ مملوکي حاکم سلطان قطز د بيت المقدس ختيځ ته د عين جالوت په ساحه کې تاتاريانو ته پريکنده شکست ورکړ چې همدا شکست د تاتاري يرغل د شکست پيلامه هم ثابت شو.

له دې وروسته د شپاړسمې میلادي پیړۍ تر وروستیو بیت المقدس د مملوکي سلطنت تر واک لاندې و، تر دې چې په ۱۶۱۶ میلادي کال کې د عثماني سلطنت مشر سلطان سلیم الاول دا سیمه په خپله واکمني کې شامله کړه. په په ۱۸۳۱ – ۱۸۴۰ م کلونوکې د مصر حاکم محمد علي فلسطین له مصر۔ سره ملحق کړی خو عثمانیانو بیرته ترې ونیو، له دې لنډې مودې پرته د ۱۷ – ۱۸ او ۱۹ میلادي پیړیو په ټولو کلونو کې بیت المقدس د عثماني دولت تر واک لاندې و تر دې چې په ۱۹۱۷ میلادي کال کې د لومړي نړیوال جنګ په مهال د انګریزانو لخوا اشغال شو.

دا چې فلسطین او په خاص ډول بیت المقدس چې عثماني شاهانو د قدس الشریف لقب ورکړی و څرنګه په وروستي ځل د مسلمانانو له لاس ووت او بیا څرنګه دلته یو اسرائیلي دولت تشکیل شو یو اوږد مبحث دی. خو سرټکي یې دا دي چې یهودو له پیړیو پیړیو دا انتظار درلود چې دوی به د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه بیرته خپل وطن کنعان (فلسطین) ته راګرځي. د نولسمې پیړۍ په وروستۍ نیمایي کې چې د یهودو صهیوني حرکت په زور کې و، یهودي مفکر هرتزل په ۱۸۹۵ میلادي کې یو کتاب ولیکه چې نوم یې و (یهودي دولت) نوموړي په دې کتاب کې د یهودو لپاره په دیني نظریه د ودان شوي هیواد تیوري تشریح کړه او د داسې یوه دولت د جوړیدو لپاره یې د فلسطین، ارجنټاین او یا هم په افریقا کې د یوګنډا کومه برخه د احتمالي سیمې په حیث وړاندیز کړه.

په ۱۸۹۷ کال کې د همدې نظریې په اساس د سوئیس په بال ښار کې د یهودو نړیوال کانفرانس جوړ شو او د یهودي دولت په عملي لارو چارو یې غور او پریکړې وکړې. په داسې حال کې چې د یهودو هڅې رواني وې په ۱۹۱۴ میلادي کال کې لومړۍ نړیواله جګړه ونښته چې یوې خواته د انګلیس او فرانس په مشرۍ ډیری





اروپایي هیوادونه او بل اړخ ته المان او عثماني دولت وو. د جنګ په اوږدو کې د امریکا متحده ایالات د نندارچي په رول کې و او په دواړو اړخونو یې وسلې خرڅولې. په دې وخت کې انګلستان هڅه کوله چې امریکا هم په خپله ننګه په جګړه کې داخله کړي. انګریزان چې د فلسطین په ګاونډ کې مصر۔ یې تر واک لاندې و او عرب یې د عثماني ترکانو خلاف پاڅولي وو د فلسطین راتلونکي احتمالي واکمن بلل کیدل. انګریزانو دغه مهال له یهودو سره یوه پټه معامله وکړه، هغه دا چې یهودي صهیوني تحریک به په امریکا کې د خپلې یهودي لابۍ د فشار په توسط امریکایي حکومت د متحدینو په ګټه په جګړه کې ګډیدو ته هڅوي او په مقابل کې به انګلیستان په فلسطین کې یهودو ته د دولت جوړولو لپاره ځمکه ورکوي.

د همدې معاهدې په اساس په ۱۹۱۷ میلادي کال کې چې کله انګریزانو د سویز په جګړه کې عثمانیانو ته شکست ورکړ او بیت المقدس یې اشغال کړ څو میاشتې وروسته د همدې کال د نومبر په دوهمه د انګلیس د بهرنیو چارو وزیر آرتور بالفور د یهودي دولت د تشکیل اعلامیه صادره کړه. د بالفور اعلامیه د یهودي دولت د تشکیل لومړۍ خښته شوه، له دې اعلامیې وروسته د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه فلسطین ته د یهودانو راتګ پیل شو، په جرمني کې د یهودو په وړاندې د هټلر سخت چلند دغه بهیر نور هم توند کړ، انګلیس غوښتل د بالفور د اعلامیې په تعقیب یهودي دولت رسما رامنځته کړي، خو د دوهم نړیوال جنګ پیښیدو دغه کار تر ۱۹۴۸ میلادي کال پورې وځنډاوه.

د لومړۍ او دوهمې نړیوالې جګړې تر منځ کلونو کې فلسطین ته د یهودو راتګ په قوت سره روان و، دغه راز فلسطین میشتو یهودو د انګلیس تر څار او ملاتړ لاندې له عربو مسلمانانو څخه پرلپسې ځمکې اخیستې او قبضه کولې.

انګریزان چې فلسطین یې تر استعمار لاندې و یهودو ته یې ډول ډول امتیازات مهیا کول خو بالمقابل عرب یې تر سختو محدودیتونو لاندې ساتلي وو. په دې ډول د انګریز په هڅو د دوو لسیزو په ترڅ کې په فلسطین کې د یهودو شمیر له زرګونو څخه لکونو ته ورسید او په فلسطین کې یو ځل بیا یوه د پام وړ یهودي ټولنه رامنځته شوه.

د دوهم نړیوال جنګ له پای ته رسیدو وروسته چې انګریزانو د خپلو مستعمرو نه د وتلو اراده درلوده همدا وخت یې د یهودي دولت د رسما جوړولو لپاره مناسب وباله. مخکې له دې چې انګریزان له فلسطین څخه ووځي، انګلیستان او امریکا د ملل متحد له لارې د ۱۹۴۷ کال د نومبر په میاشت کې په رسمي توګه د فلسطین تقسیم او د یهودي دولت جوړیدل اعلان کړل. د ملګرو ملتونو د پریکړې له مخې د فلسطین خاوره په دریو برخو ویشل شوې وه، په دې ډول چې د قدس ښار او مقدسو مقاماتو واک به د ملل متحد په مشرۍ د یوې بې طرفه ادارې سره وي. د فلسطین د نورې ځمکې ۴۳ فیصده به عربو او ۵۷ فیصده به یهودانو ته ورکول کیږي تر څو په کې لومړنی یهودي دولت جوړ کړي.

خو یهودان چې له دې وړاندې یې پوځي ډلې جوړې کړې وې او د سترو قدرتونو ملاتړ هم ورسره و، هڅه یې کوله چې له ورکړل شوي سهم زیاته برخه د ځان کړي. تر دې چې کله د ملل متحد ځانګړی استازی کونت برنادوت د ملل متحد د پریکړې د تطبیق او د تقسیم د عملیې د څار لپاره فلسطین ته راغی، د یهودانو لخوا ووژل شو، یهودانو په لومړي قدم کې د نقب صحرا چې د پریکړه لیک له مخې د عربو برخه وه، په جبر سره ونیوله اووروسته یې د نورو سیمو د لاندې کولو او د مسلمانانو د شړلو لپاره زورزیاتی پیل کړ.





یهودانو د څو کلونوپه ترڅ کې د قدس ښار د ډیرو برخو په شمول د فلسطین اکثره سیمې قبضه کړې او مسلمانان یې لویدیځ اړخ ته دغزې ترانګې او ختیځ خواته د ضفه الغربیه (د اردن سیند لویدیځې غاړې) محدودې ساحې ته وشړل. د قدس ښار چې لویدیځه برخه یې له پیله د یهودو او شرقي خوا یې دمسلمانانو په لاس کې وه، وروسته یې شرقي خوا چې مقدس مقامات په کې دي هم یهودو ونیوله او د مسلمانانو د تدریجي شړلو عملیه یې پیل کړه.

د ۱۹٦۷ کال په جنګ کې چې اسرائیلو د کفري نړۍ په ملاتړ په لویدیځه غاړه سربیره د مصر سینا ټاپوزمه او د سورېې د جولان لوړې قبضه کړې، عرب دولتونه او فلسطیني مقاومت یې له سخت حالت سره مخامخ کړل. وروسته مصر او اردن د اسرائیلو دولت په رسمیت وپیژاند چې دا د اسرائیلو په وړاندې د عربو لومړی تنزل و. همدې چلند اسرائیلو ته جرأت ورکړ او په ۱۹۸۰ میلادي کال کې د اسرائیلو پارلمان بیت المقدس رسما خپله پلازمینه وبلله، د خلیج د جګړې په مهال چې دفلسطیني مقاومت مشر- یاسر عرفات صدام حسین ته د کویټ د نیولو مبارکي ورکړه، فلسطینیان نور هم له عربي ملاتړ څخه محروم او اسرائیلو ته یوازې شول.

اسرائیلو که څه هم له تیرو څلورو لسیزو راهیسې بیت المقدس خپله پلازمینه بلله، مګر نورې نړۍ د اسرائیلو دغه سیاست په رسمیت نه پیژاند، نو ځکه نړدې ټولو هیوادونو خپل سفارتونه په تل آبیب کې ساتل او په بیت المقدس کې یې یوازې کونسلګرۍ درلودې. اوس چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرامپ بیت المقدس د اسرائیلو رسمي پلازمینه وبلله او اراده لري چې د امریکا سفارت ورته را انتقال کړي، دا یوه داسې هڅه ده چې شاید نور له امریکا سره تړلي هیوادونه هم دې چارې ته تشویق کړي.

په امریکا کې یهودي لابۍ ژور نفوذ لري. لکه څنګه چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې د امریکا یهودي لابۍ د دې هیواد واکمن د انګلیس په ګټه په جګړه کې داخلیدو ته وادار کړي وو اوس هم ویل کیږي چې د تیرو ټاکنو په مهال یهودي لابۍ چې د امریکا په اقتصاد او رسنیو قبضه لري له ډونالډ ټرامپ سره یې په دې شرط پراخې مرستې کړې وې چې نوموړی به د امریکا سفارت بیت المقدس ته نقلوي. د همدې معاملې په پایله کې اوس داسې ښکاري چې د اسلامي امت لومړنۍ قبله یو ځل بیا له اسلامی جغرافیې بیلیږي او مسلمانان به یي بیا د یوه بل صلاح الدین د ظهور تر وخت په فراق کې څوریږي.

و الی الله المشتکی و به نستعین





## دکتور عمر او ملا عمر، د ثبات او وفا غبرګ سمبولونه

۲۰/ فبروري/۲۰۱۷

یو هغه عمر و چې په مصر کې د طاغوت په وړاندې د ایمان او استقامت رمز بلل کېده او بل هغه عمر چې له دې ناپيژندويه عمر سره یې دیني خپلوي په داسې ډول وپالله چې تر ابده به د تاریخ ویاړ وي.

دکتور عمر عبدالرحمن د مصر د دهقهلیه ولایت په جمالیه کلي کې وزیږدید، د لسو میاشتو و چې په سترګو ړوند شو خو دا معلولیت یې د راسخ عزم په وړاندې خنډ نه شو. په یوولس کلنۍ کې یې قران کریم حفظ کړ، په ۲۲ کلنۍ کې د جامعةالازهر د اصول الدین پوهنځي ته بریالی شو او په ۲۷ کلنۍ کې په ممتازه درجه ترې فارغ شو.

په سترګو ړوند عمر عبدالرحمن نه یوازې په مصر کې د نبوغ او علمي استعداد له برکته وپیژندل شو بلکې وروسته ثابته شوه چې دغه د علم لاروی د عمل په میدان کې هم له چا وروسته نه دی. نوموړی ۳۲ کلن و چې د مصر مستبد حاکم جمال عبدالناصر مړ شو او عمر عبدالرحمن یې د خپل جامع مسجد له منبر څخه د جنازې د نه کولو فتوی صادره کړه. جمال ناصر چې کمونیستي تمایلات یې لرل په مصر او عربي نړۍ کې د اسلامي فکر له سترو دښمنانو څخه و. د عمر عبدالرحمن دې جرأت نوموړی د اسلامپالو تر منځ په الشیخ المجاهد سره مشهور کړ چې د عمر تر پایه په همدې لقب یادېده.

عمر عبدالرحمن د خپل راسخ ایمان او عزم له امله بیا بیا د مصر د جابرو حاکمانو لخوا زندان ته ولیږل شو. بیا بیا د طاغوتي محاکمو میز ته ودرول شو او

سختې سزاګانې ورکړل شوې. خو دې امتحاناتو د نوموړي عزم ستومانه نه کړ او نه یې هم د حق غږ خاموشه شو. شیخ عمر خپله د دکتورا رساله هم د جهاد په موضوع او د سورة التوبې په تفسیر ولیکله. د انور السادات د اسلام دښمنه استبداد په خلاف یې د جماعة الاسلامیه په نوم تنظیم جوړ کړ. کله چې انور السادات د یوه قانون له مخې د تعدد ازواج او منع الطلاق قوانین نافذ کړل عمر عبدالرحمن یې په ړندو سترګو مقابلې ته راووت او تر پایه یې د اسلامي احکامو د دفاع مبارزه وکړه.

هغه د ژوند په ورستیو کلونو کې له بیلابیلو امراضو کړېده، روماتیزم، شوګر او د مزمن سردرد په شان ناروغۍ یې درلودې. خو بیا هم د عبادت او جهاد د کار لپاره ځوان و. په مصر کې د نوموړي د زندان د ملګرو په وینا هغه له ډېر ضعف سره سره همیشه روژې نیولې او د شپې به یې په صلوة التهجد کې د قران کریم دومره تلاوت کاوه چې د عمر په لحاظ تر ده ځوان مقتدیان به پسې ستړي شول او لمونځ به یې ورپرېښود مګر شیخ عمر به ولاړ و.

شیخ عمر په ۱۹۹۳ م کال کې امریکا ته د یوه سفر په مهال د امریکا حکومت ونیو او د عمر قید سزا یې ورکړه. نوموړی د عمر په ورستیو کې دومره ضعیف و چې حتی خپله ګرځیدلای هم نه شوای او په نورو ناروغیو سربیره د معدې د سرطان ناروغي هم ورته پیدا شوې وه. تر دې چې وړمه ورځ د فبرورۍ په ۱۸ یې د وفات اعلان وشو. رحمه الله

له شیخ دکتور عمر سره مې ځکه د ملا محمد عمر مجاهد نوم پیوند کړ، چې ملا محمد عمر د نوموړی په باره کې د وفا یوه تاریخي کردار اداء کړ. هغه دا چې د طالبانو د حکومت په وروستي کال کله چې د شلتېر نو مؤسسې ځینې خارجي کسان عیسویت ته د تبلیغ په جرم ونیول شول او له طالبانو سره بندیان وو،





امریکایانو یې د خلاصون غوښتنه کوله او د خلاصون په لړ کې د احتمالي معاملې خبره هم کیدله.

دا مهال چې طالبان ډېر مفلس او تر بندیزونو لاندې وو نو فکر کېده چې د امارت مشر ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله به د دې کسانو په مقابل کې نور امتیازات طلب کړي. مګر ملا محمد عمر مجاهد له امریکایانو وغوښتل چې عمر عبدالرحمن دې خوشی کړي تر څو د دوی بندي کسان خلاص کړای شي.

ملا محمد عمر مجاهد مصر نه و لیدلی، د اخوان المسلمین او جماعة الاسلامیه له تنظیمونو سره هم نابلد و، خو په دې پوهیده چې د مصر سپین ږیری شیخ په امریکا کې د اسلام په تور محبوس دی. ملا محمد عمر مجاهد له نوموړي سره قطع نظر له تنظیمي، فکري او نورو تړاوونو یوازې د ایمان وروروولي وپالــله او له امریکا یې د نوموړي د خلاصون غوښتنه وکړه.

کاشکې زموږ هر اسلامپال همدومره ژور او حقاني فکر ولري. کاشکې هر مؤمن او مجاهد د ګوندي تړاو، مذهب او مسلک په ځای یوازې د اسلام رشته کافي وبولي او خپل مسلمان او مجاهد ورور ته د اخلاص او وفا غیږه خلاصه کړي.

متاسفانه نن خو ځیني هغه چې ځانونه د عمر عبدالرحمن دفکر او منهج لاروي بولي په ملا محمد عمر او د هغه په لارویانو د انحراف ټاپې لګوي. دغه اهل البدع چې حق او اسلام یې په ځان کې منحصر کړی، اشاعره او ماتریدیه د اهل السنة و الجماعة له عقیدې وتلي بولي او په یونیم ملیاردیز امت کې یوازې خپل څو لکه همفکران ورته مسلمان بریښي نو تیار د تکفیري خوار جو په مسند ناست دي.

دوی موږ هیڅکله د عمر عبدالرحمن او عبد الله عزام پلیوني نه شو بللی، بلکې دوی هغه لارورکي دي چې یوازې د خپلو خیټو په احساساتي فتواوو د

مسلمانانو تکفیر او تقتیل ځان ته روا بولي او نړیوال جهاد یې د بدنامۍ لـه ګـواښ سره مخ کړی دی.

واقعـي مسـلمان داسـې وي لکـه مـلا محمـد عمـر چـې خپـل امـارت یـې د ناپیژندیه مسلمانانو په خاطر د سقوط له خطر سره مخامخ کړ، هغه نمـک حرامـه او نامرده هیڅکله د اسلامي مروت څښتن نه شي بلل کیدای چې په هغه اولس چې دوی ته یې پناه ورکړې وه، دوی یې په کورونو کې ساتلي وو او د دوی په سر یې لـه کفارو سره جنګ کاوو مګر کله چې دوی له قبائلي سیمو عراق تـه سـتانه شـول لـه هغه ځایه یې د کفر فتواګانې اود ارجاء ټاپې په بدل کې ورته راولیږلې.





## څلورم فصل ــــ هیواد او اولس

- ❖ پیامد و عواقب پیمان فروش افغانستان
- ❖ افغانستان (جزء لایتجزأ) دی
- ❖ راځئ چې د تعصب کرغیړن مرض وپیژنو او ځان ترې وساتو!
- ❖ کلي کې هم ژوند روان و...
- ❖ د افغانستان پرمختګ ته د اسلامي امارت ژمنتیا
- ❖ افغان اولس دین ته ژمن دی که بې دینۍ ته؟

# پیامد و عواقب پیمان فروش افغانستان




الحمدلله رب العلمین والصلوة والسلام علی رسوله محمد وعلی آله واصحابه أجمعین وبعد:

خوانندگان گرامی! چنانچه اطلاع دارید به تاریخ هشتم ماه میزان سال جاری زمامداران ادارهء نامنهاد جدید کابل به رهبری اشرف غنی احمدزی معاهده یی را بنام پیمان امنیتی با امریکا به امضا رسانیدند، و به این گونه موجودیت و بقای نیروهای اشغالگر را در افغانستان برای مدت بیشتری تمدید کردند. این پیمان زمانی به امضا رسید که تنها ۲٤ ساعت از به قدرت رسیدن اشرف غنی احمدزی در نتیجهء انتخابات تقلبی و انتصاب امریکایی گذشته بود. شتاب و عجله در امضای این پیمان توسط زمامداران جدید و عدم ارزش دهی به آراء و نظریات افغانان آزاده، علمای کرام، دانشمندان، منورین و شخصیت های با نفوذ و جان فشانی برای بجا آوردن مطالبهء امریکا ظاهر می سازد که در حقیقت این همه وضعیت دراماتیک و بحرانی از قبل برنامه ریزی گردیده بود تا امریکائی ها بتوانند در تاریکی و اوضاع دگرگون پیمان مورد خواهش خویش را بالای بردگان خود به امضا برسانند، که بالاخره به این هدف نایل آمدند.

چنانچه این پیمان با امریکا توسط نمایندگان ملت نه بلکه توسط عده یی از خودفروختگان و غلامان امریکایی تحت فشار آقای شان به امضا رسیده است، بناء





مدار هیچ نوع اعتبار و حیثیت قانونی نمیباشد. این پیمان علاوه بر اینکه از لحاظ شرعی مردود می باشد از حیثیت و اعتبار قابل ملاحظه یی از نگاه قوانین مروج و وضعی نیز برخوردار نمی باشد.

در این نوشتار تلاش می کنیم که تحلیل مختصری از جوانب مختلف این پیمان، پیامدها و عواقب آن داشته باشیم تا هموطنان خویش را متوجه عمق و خطر این موضوع حساس و مسئولیت شان در قبال آن بگردانیم.

**حیثیت شرعی پیمان امضا شده با امریکا:**

پیمان امضا شده با امریکا صراحتا با اساسات شرعی و ارشادات فقهی در تعارض می باشد. این پیمان دوستی طویل المدت با کفار امریکایی می باشد در حالیکه خداوند متعال در آیت ١٤٤ سورهء النساء و آیت ٥١ سورهء المائده مسلمانان را از دوستی با کفار منع نموده است. بر اساس این پیمان نیروهای مسلح بیشمار، وسایل جنگی، طیاره ها، توپ ها و وسایل دیگر نظامی امریکایی اجازه دارند تا در خاک افغانستان باقی بمانند. این در حالیست که دین اسلام شرایط خاصی برای سکونت کفار در سرزمین اسلامی دارد. چنانچه بر اساس احکام دین مبین اسلام تنها ذمی و یا مستأمن میتواند در سرزمین اسلامی زندگی کند. ذمی کافری است که تبعهء کشور اسلامی بوده و همهء قوانین آن کشور را می پذیرد و در بدل رهایش و حفاظت مال و جان وی توسط دولت اسلامی جزیه می پردازد و مستأمن به شخصی گفته میشود که به اجازهء دولت اسلامی از دار حرب جهت تجارت و یا امور رسمی دیگری وارد کشور اسلامی شده باشد و برای مدت محدودی تحت شرایط خاص و بدون داشتن اسلحه و دست زدن به امور تخریبی در سرزمین اسلامی سکونت پذیر باشد. اسلام هرگز اجازه سکونت و بقای کفار را بجز در دو حالت ذکر شده در سرزمین اسلامی نمیدهد. امریکایی ها که

متوصل به قوه شده و این کشور را اشغال کرده اند و اجازهء کنونی موجودیت و بقای مسلح و بالا دستی ایشان یک اقدام کاملا مخالف و معارض با اساسات دینی می باشد و آشکارا است که آنچه از جهت دینی امر نا مشروع باشد شر محض پنداشته میشود و مصالح شخصی و یا گروهی نمیتواند حکم شرعی این شر را مبدل سازد.

بر اساس هدایات شرع مسلمانان میتوانند تنها در میدان جنگ با نظرداشت مصالح خویش با کفار تعهد آتش بند و یا صلح نمایند، که در آنصورت مسلمانان شرعا پابند وفا به این عهد خویش اند. علاوه بر آن دوستی با کفار، دادن پایگاههای نظامی برای لشکر کفار در سرزمین اسلامی، مصئونیت قضایی برای آنان، و آزادی کامل برای انجام هر عملی که خواسته باشند و مسلمانان را تحت غلبهء آنان قرار دادن شرعا جواز ندارد، خداوند متعال می فرماید: ((وَلَن يَجْعَلَ اللّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلاً)) ۱۴۱ النساء، ترجمه: «و هرگز خداوند برای کافران بر [زیان] مؤمنان راهی باز نگذاشته است».

بر اساس همین اصل دینی و آرای بیشترین فقهاء بردهء مسلمان در ملکیت بادار کافر باقی مانده نمیتواند، اگر بردهء مسلمان اجازه ندارد در ملکیت شخص کافر قرار داشته باشد پس به طریق اولی جایز نیست تا ملت آزاده و مسلمان تحت باداری و سرداری کفار قرار گرفته و رسما پابند قوانین و فرامین آنان گردند. رسول الله صلی الله علیه وسلم می فرماید: "الاسلام یعلو ولا یعلی علیه" رواه البیهقي. «اسلام (دین) برتر است وچیزی بالا دست آن نیست» یعنی بالا دستی کافر بر مسلمان جایز نیست.

خداوند متعال بطور مکرر در قرآن کریم از دوستی با کفار و از میلان بسوی آنان منع نموده می فرماید: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ





تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِوَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ)) آیت ۱ سورهء الممتحنة، ترجمه: «ای مؤمنان، دشمنان مرا و دشمنان خودتان را دوستان [خود] مگیرید که به آنان از روی دوستی پیام بفرستید. حال آنکه به [دین] حق رسیده به شما کفر ورزیده‌اند».

و نیز می فرماید: ((وَلاَ تَرْكَنُواْ إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللّهِ مِنْ أَوْلِيَاء ثُمَّ لاَ تُنصَرُونَ)) سورهء هود، آیت ۱۱۳. ترجمه: «و به ستمکاران گرایش نیابید که آن گاه آتش [جهنّم] به شما خواهد رسید و در برابر خداوند دوستانی ندارید، آن گاه نصرت نمی‌یابید». و می فرماید: ((بَشِّرِ الْمُنَافِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا * الَّذِينَ يَتَّخِذُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ الْعِزَّةَ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا)) سوره النساء، آیات ۱۳۸ و ۱۳۹. ترجمه: «به منافقان خبر ده به آنکه عذابی دردناك [در پیش] دارند آن [منافقانی] که کافران را به جای مؤمنان دوستان [خویش] می‌گیرند آیا به نزد آنان عزّت می‌جویند؟ پس [بدانند که] عزّت همه از آن خداست».

قبلا ذکر شد که هر نوع عهد و پیمان با کفار، بجز آنچه ذکر شد، جایز نیست، مگر بالفرض اگر چنین پیمانی مانند معاهدهء آتش بس جایز نیز پنداشته شود، انعقاد آن توسط زمامداران ادارهء کابل اعتبار شرعی ندارد، زیرا این چنین تعهد و یا پیمان با کفار از صلاحیت رهبر، بزرگ، امام، خلیفهء مسلمانان و یا نمایندهء وی می باشد. امریکائی ها این تعهد را با جانب مقابل که مجاهدین اند نکرده اند، بلکه آن را با دست نشاندگان و نمک خورهای خویش انجام داده اند. و این بردگان خود فروخته به این دلیل نمایندگی از ملت مسلمانان کرده نمیتوانند که بر اساس فتوای عالم بزرگ فقه امام محمد بن الحسن الشیبانی رحمه الله اگر کفار با یک گروه محاصره شده یا محبوس مسلمانان پیمان صلح را به امضا برسانند آن پیمان اعتبار شرعی نمی داشته باشد، زیرا که هر عهد و پیمانی که تحت فشار

کفار انجام می یابد لازما مصالح و منافع کفار در آن در نظر گرفته شده و به زیـان مسلمانان می باشد لهذا از نګاه شرع منعقد نمی ګردد.

قاعدهٔ شرعی می ګوید که هرګاه فعل مباح باعـث و یـا مقدمـه بـرای حـرام بګردد و یا با حرام خلط ګردد و یا منجربه حـرام باشـد، آن فعـل اګـر چـه در ذات خود مباح باشد حـرام پنداشـته میشـود. بنـابرین، اصـول فقهـی مـا میګویـد کـه: "تحصیل أسباب الواجـب واجـب وأسـباب الحـرام حـرام". مسـلم الثبـوت ص ۳۸ «بدست آوردن اسباب واجب واجـب اسـت و بدسـت آوردن اسـباب حـرام حـرام است».

نتیجه و پایان موجودیت امریکائی ها در افغانستان تسلط و اشـغال کفـار بـر کشور، قتل و قتال مسلمانان، چور و چپاول، بمباردمان، فحاشی و ادامهٔ ګمراهـی می باشد، که اینهمه اعمال نا مشروع می باشد، و این پیمان سـبب تمدیـد و دوام این اعمال نا مشروع و حرام میباشد بناءً حرام و نا مشروع تلقی می ګردد.

یک مسئله عام فقهی است که در هر آنچـه کـه ملکیـت شائع افـراد متعـدد باشد، یعنی افراد زیادی در آن شریک باشند، اګر یکتن از شریک ها آنرا به فـروش برساند یا آنرا به ګروی بدهد، آن خریـد و فـروش و یـا ګـروی شرعـا مـدار اعتبـار نیست. زمین و حریم فضایی افغانستان و همه امکانات موجود در ایـن کشـور کـه بر اساس این پیمان اکنون تحت تصرف و مورد استفاده امریکـائی هـا قـرار ګرفتـه است مال مشترک ملت مسلمان افغانستان است، اګر فردی مانند اشرف غنی و یـا حنیف اتمر برخی از این کشور را به قباله امریکا می دهد، ایـن چنـین عقـد فاقـد اعتبار بوده و هیچ فردی از افراد شریک در کشور ملزم به وفا به آن نمیباشند.

علاوه بر این امـارت اسـلامی افغانسـتان کـه شرعـا حـاکم سرزمـین اسـلامی افغانستان پنداشته میشود، از آغاز اشغال کشور صراحتا اعلان داشته است که هـر





نوع پیمان، قراداد، تعهد و داد و سـتد بـا ادارهٔ اجیـر کابـل فاقـد اعتبـار بـوده و امارت اسلامی افغانستان ملزم به وفا به آن نیست. بنـابرین هـر قـرارداد، پـیمان و معاهده که با این ادارهٔ اجیر صورت می ګیرد مدت اعتبـار آن تـا بـه بـر افراشـته شدن پرچم امارت اسلامی بر برج های ارګ در کابـل مـی باشـد و بعـد از آزادی و فتح امارت اسلامی هیچ نوع مسئولیت در مقابل این نوع تعاهدات ندارد.

دلایل فوق واضح می سازد که از نګاه شرع پیمان امضا شده با امریکا مـردود، نا مشروع بوده و فاقد اعتبار می باشدو چنانچه ذکر شد ملت مسلمان افغانسـتان هرګز هم از نګاه شرعی و هم از نګاه قانونی مسئول این چنین تعاهدات و پیمان ها نمی باشند.

## تحلیل تخنیکی و نواقص پیمان:

در این پیمان عبارات ګنګ به کار برده شده اسـت، کـه امریکـائی هـای بـالا دست میتوانند آنرا مطابق به مصالح خویش تعبیـر کننـد. مـثلا در مقدمـه بـدون تعین زمان موجودیت امریکایی ها در افغانستان بقای اشـغالګران در کشـور "غیـر دایمی" ذکر شده است. غیر دایمی چنانچه میشود به چنـدین سـال تعبیـر ګـردد میشود به چندین صد سال نیز تعبیر ګردد.

در پیمان آمده است که امریکایی هـا بـا اسـتفاده از خـاک افغانسـتان بـالای کشورهای همسایه و یا دشـمن دیګـری عملیـات انجـام نمیدهنـد مګـر مـا شـاهد هستیم که امریکا با استفاده از خاک افغانستان به شکل روزانه در مناطق قبایـل و همجوار بر مجاهدین حمله می کند. از تناقض آشکار میان سخن و عمل ظاهر مـی ګردد که امریکایی ها عملا متعهد به مواد ذکر شده در پیمان نیسـتند، بلکـه تنهـا از آن موادی استفاده می کنند که میتواند دلیلی بـرای موجودیـت طویـل المـدت شان در منطقه باشد.

در این پیمان امریکایی ها با خیلی زیرکی توانسته اند زمامداران ادارهء کابل را فریب دهند. هر جایی که مسئولیت متوجه امریکا می باشد در آنجا بجایی اینکه عبارت "امریکا متعهد است" باشد عبارت "امریکا سعی می کند" به کار برده شده است، که دلالت بر عدم التزام امریکا بر این پیمان می کند.

در فقرهء ششم، ماده چهارم پیمان، افغانستان متحد عمدهء امریکا خارج از ناتو خوانده شده است. افغانستان که همیشه موقف بی طرفی برایش مفید ثابت شده اما به سبب میلان بسوی قطب های نظام جهانی مواجه تباهی شده است در یک ردیف گرفتن آن با کشورهای غربی میتواند باعث زیان های متعددی برای آن در منطقه باشد. در اینجا که پیمان شانگهای در حالت شکل گرفتن است، روسیه بخاطر اوکراین و سوریه در جنگ و رویارویی با غرب قرار دارد و در کشورهای همسایه نیز احساسات ضد امریکایی در حالت اوج گرفتن است، حیثیت متحد بودن امریکا باعث منزوی شدن افغانستان و مواجه شدن آن با مشکلات زیادی در منطقه خواهد شد.

مواد این پیمان صراحتا موجودیت نیروهای امریکایی را در افغانستان نه برای دفاع و حفاظت از این کشور بلکه برای حفاظت از منافع و مصالح بین المللی امریکا می خواند. فقرات ماده ششم می گوید: تحت حملات قرار گرفتن افغانستان توسط یکی از کشورهای خارجی، یا اقدام علیه حاکمیت، استقلال و یا تمامیت ارضی افغانستان باعث نگرانی شدید امریکا خواهد بود. و در آن صورت امریکا دربارهء عکس العمل مناسب با زمامداران افغان مشورهء خودرا شریک می سازد.

اگر این پیمان، چنانچه ادعا می گردد، برای تقویه، محافظت و دفاع از افغانستان باشد، پس باید در صراحت می نمود که امریکا برای از بین بردن هر





نوع تهدیدی که متوجه حاکمیت ملی و تمامیت ارضی افغانستان باشد اقدام جدی کرده و در مقابل هر نوع حملات از این کشور محافظت می کند. اینکه امریکائی ها در اینصورت مسئولیت خودرا تنها منحصر به اظهار نگرانی کرده اند پس این نگرانی را میتوان از امریکا نیز ظاهر کرد پس ضرورت به موجودیت در اینجا چیست؟ هویدا است که نیروهای آن برای اهداف جهانی غیر افغانی در این جا مستقر اند و مصالح افغانستان برای آنان اهمیت و ارزشی ندارد.

فقرات مادهء یازدهم این پیمان می گوید که عساکر امریکایی، کارمندان ملکی و پرسونل متعلق به آنان در صورت ارتکاب جرم از مصئونیت قضایی برخوردار می باشند. زمامداران افغانی نمیتوانند منسوبین نظامی و یا غیر نظامی امریکایی را به جرم این ارتکاب جنایتی در مقابل کشور و یا اتباع کشور توقیف، تحت بازپرسی و یا زندانی کنند. به همین شکل جانب افغانی نمیتواند مجرمین امریکایی را و یا دعواهای متعلق به آنان را به محکمهء جهانی و یا محکمهء کشور سومی راجع کند.

بر اساس این ماده عساکر امریکایی، کارمندان ملکی و پرسونل خدماتی آن دارای معافیت کامل از هر نوع جرم و جنایت می باشند. یعنی آنان میتوانند در افغانستان هر جرم و جنایتی را انجام دهند. آنان می توانند آزادنه به قتل، دزدی، زنا، اختطاف، جاسوسی، آبرو ریزی و بی عزتی مردم، چور و چپاول آثار تاریخی و اموال شخصی مردم و یا هر نوع اعمال تخریبی دست بزنند و هیچ کس حق ندارد که مانع ارتکاب این چنین جنایات شان گردد. آنان تنها جوابگوی حکومت امریکا هستند و بس... در گذشته وقتی نیروهای امریکایی مرتکب چنین جنایات می شدند افغان ها در مقابل آن اعتراض می کردند، مگر بعد از این پیمان، جانب افغانی حق اعتراض را نیز ندارد زیرا که زمامداران ارگ رسما پذیرفته اند که اتباع امریکا از هر نوع تعقیب قضایی و عدلی مصئون هستند. خلاصهء مطلب این ماده

چې په منځني ختيځ او نوره اسلامي نړۍ کې د مسلمانانو په خلاف د لويديځوالو استعماري جګړې هم د تيرو صليبي جګړه يوه کړۍ وه، چې د اقتصادي موخو ترڅنګ يې د يوه مذهب او مفکورې په لحاظ د اسلام راج ختمول او د مسلمانانو تذليل هم هدف و.

همدا اوس په افغانستان، عراق او نورو اسلامي هيوادونو کې د امريکايانو جګړې او مداخلې هم سره له دې چې اقتصادي موخې لري، خو په څنګ کې ورسره عقيدوي انګيزه هم لوی لاس لري. دوی غواړي رښتينی اسلام د يوه تمدن په صفت له منځه يوسي او په ځای يې منحرف مسيحيت د برلاسۍ ستيج ته پورته کړي. د امريکايانو په اړه ويل کيږي چې د نړۍ په سطحه د غيرمسلمانانو تر منځ تر ټولو په خپل مذهب ټينګ ولاړ او عقيدوي خلک دي، نو ځکه د نورو په نسبت دوی په اوسنيو جګړو کې ډېره علاقمندي ښيي.

## د باطل لپاره له قربانۍ څخه عبرت

ماچې د لارنس ژوند ليک لوست نو ځينې برخې يې که څه هم مبالغه اميزه وې، خو په ټوله کې مې دا ترې احساس کړه، چې دې سړي د خپلې باطلې مفکورې او ارمان لپاره خورا ډېر تکليفونه ګاللي دي. د کتاب د معلوماتو له مخې لارنس چې په لومړي ځل د برتانيا له اکسفورډ څخه روانيده نو يوازې سل پونډه ورسره و، او کله چې د بيروت په ساحل پياده شوه نو يوه روپۍ يې هم په جيب کې نه وه. نوموړي د لبنان، سوريې، فلسطين، عراق او حجاز تر مابين د اوږدو دښتو مزلونه ټول پياده ووهل. دوه ځله ترکانو د جاسوس په نامه ونيو، خو دواړه ځله له اعدام لږ مخکې د لوی خطر په منلو سره په تيښته بريالی شو. د برتانيې د جنګ وز ارت لپاره د منځني ختيځ د نقشې جوړولو لپاره يې د جزيرة العرب او سرې بحيرې په حدودو کې خورا اوږده مزلونه ووهل. دنوموړي د ماموريت دا ټوله موده د مرګ له





ګوابښ سره مله وه، ځکه د ده شنو سترګو، ژېړو ويښتانو او سره پوستکي په لومړي ځل دی عربو ته ورپيژاند چې د دې خاورې نه دی. له بلې خوا په ده باندې د ترکيې حکومت خورا ستر انعام هم ايښی و، خو له دې ټولو خطرو سره لارنس د خپلې باطلې عقيدې لپاره په چوپړ بوخت و، د عربو په کليو، بانډو او دښتو کې يې کلونه کلونه خورا تريخ عمر تير کړ، په دې ټولو سختيو سربيره له نوموړي څخه د برتانيې حکومت يوازې د قربانۍ د پسه کار اخيست او هر خطرناک جاسوسي ماموريت به يې ده ته ور لغاړې کاوه. په دې لړ کې نوموړی څوځله د ترکانو تر واک لاندې دمشق او شام ته لاړ او د ترکي قلمرو دننه يې په داسې حال کې جاسوسي کوله، چې ترکانو وربانديې غټ انعام مقرر کړی و.

د لارنس لپاره تر ټولو ازمېښتي پړاو له بدوي عربو سره ګوزاره وه، عربو به په ده باندې ريشخند واهه، چا به ورته ښکنځلې، تونديې خبرې، پيغورونه ورکول، حتی چې عادي عربو به اهانتا په مخ په څپېړو واهه او لاړې يې ورتوکلې، مګر ده دا ټول څه په سړه سينه زغمل او يوازې خپل هدف ته متوجه و. نن سبا په داسې حال کې چې زموږ مجاهدين د الله تعالی د رضا لپاره د برحقې مبارزې په لاره کې سترې قربانۍ ورکوي او له هر ډول حالاتو سره مقابله کوي، مګر ځينې داسې کسان هم پيدا کيږي، چې د مبارزې په مهال د سختو او ازمېښتي حالاتو سره د مخامخيدو له امله ډېر زر حوصله له لاسه ورکوي او د برحقې مبارزې له ميدانه تښتي. دا ډول کسانو ته که خپل شرعي امير يوه تونده خبره وکړي هم نو دوی يې غچ له جهاده اخلي او ټول جهاد ته شا کوي، شته ځينې داسې کسان چې که په يوه مجلس کې لوړ ځای ورنکړل شي هم ګيلمن وي، که څوک شاباسۍ ورنکړي يا يې يو شکايت وانه ورېدل شي، بيا هم دستي د مبارزې صف پريږدي.

دا ډول کسان که د جهاد او مبارزې په بنيادي هدف او ارزښت باندې نه پوهيږي او د نورو مجاهدينو په قربانۍ، ايثار او تاريخي مشقت ګاللو يې سترګې

ړندې وي، باید چې لږ د لارنس غونډې د کفارو له کردار څخه غیرت ورولاړ کړي. هغوی د خپلې باطلې عقیدې لپاره کلونه کلونه هر ډول مشقت، تکلیف، پیاده مزلونه، بې خرڅي، بې التفاتي او د هر دوست او دښمن جفا زغمي، نو ولې یې موږ باید ونه زغمو؟ آیا زموږ هدف تر دوی کم ارزښته دی چې په داسې قربانیو نه ارزي که څنگه؟؟ لارنس دیرش کاله د عربو په وچو صحراگانو کې، تنها وږی تږی او له خپلوانو لرې د خپل باطل هدف لپاره په خدمت نه ستړیږي، موږ چې په خپل وطن او کور کې، په مناسب ماحول کې د الله تعالی د هغې رضا چې الله تعالی یې (ورضوان من الله اکبر) بولي، د حاصلولو لپاره لگیا یو ولې ستومانه اومایوسه شو.

لومړی باید دا خبره سپینه کړو، چې آیا موږ د الله تعالی د رضا لپاره لگیا یو او که د کوم شخص یا دنیوي گټې اونوم لپاره؟ که مونیت دنیوي گټه، وقار او شهرت وي، نو بیا په دې باید عقیده ولرو چې زموږ د جهاد او دنیایي کاروبار تر مابین هیڅ فرق نشته، بلکې دنیایي کاروبار ترې ډېر ښه دی، ځکه هغه صفا کاروبار دی او دلته یو دیني ارزښت د دنیا لپاره کارول کیږي، چې د الله تعالی په نزد ډېره لویه مؤاخذه لري.

او که موږ د دین د اعلاء او د الله تعالی د رضا لپاره لگیا یو، نو بیا ولې د اشخاصو یا سیستم لخوا د متضرر کیدو په صورت کې غچ له دیني خدمت اوجهاد څخه اخلو!؟ في سبیل الله مجاهد باید داسې فکر وکړي چې معامله یې له الله تعالی سره ده او هر تکلیف او ستونزه باید د الله تعالی د دین په خاطر وزغمي، په هیڅا باندې بې مورده احسان بار نه کړي، د توجه، التفات، شهرت او مطرح کیدو په سوچ کې نه شي او لکه څرنگه چې د الله تعالی رضا په هر ډول قرباني ارزي همداسې له هر ډول حالاتو سره ځان عیار او د هر ډول تکلیف زغملو ته سینه سمندر کړي.





## پڅه حربه

په عربوکې د لارنس د ماموریت په مهال د کفري ښکیلاک گڼ شیطاني چلونو سرې ته ترنظر ورځي. د (بېل یې کړه اېل یې کړه) فارموله، د قومي تعصب پارول، د بیلابیلو عربي قومونه تر منځ قبیلوي عقدې لمسول، هر چاته خپله درنه د بل سپکه، د غلطو دروغجنو او تشویش اچوونکو اوازو او تبلیغاتو خپرول او داسې نورې هغه حربې دي چې لارنس د عربو د اېل کولو او د ترکانو په خلاف د کارولو په چاره کې ترې استفاده کړې، خو په دې لړ کې یوه بله مؤثره حربه چې لارنس یې (پڅه حربه) بولي هم د عربي قبائلو په رام کولو او غولولو کې یې ستر رول ادا کړی.

لارنس وایي چې کله به د عربي سردارانو سره په اړیکو کې ستونزه او جنجال پیدا شو او یا به تر مابین د عدم اعتماد ستونزه وه، نو بیا به انگریز له پڅې حربې (احسان) څخه استفاده کوله. انگریزانو به په یوه چل د جنجال کوونکو او نه رام کیدونکو عربي مشرانو په خوله کې څه پیسې، وسلې او یا نور مادیات وراچول، چې بیا به هغوی له انگریز سره د مخامخ کیدو لپاره هیڅ سترگې نه درلودې او ټول اوامر به یې په پټه خوله منل.

لکه چې وایي (الانسان عبدالاحسان) انسان په هرصورت کې (شعوري یا غیر شعوري) د احسان تر تاثیر لاندې راځي، له همدې امله خو پښتانه وایي (چې نس لري له هغې بلا مه ډاریږه) که موږ تاریخ وگورو د مسلمانانو هغه مبارزې هیڅکله هم د بري پړاو ته نه دي رسیدلې، چې په خپلو امکاناتو د اتکاء په ځای د پردیو احسانونو پوروړې وې.

په حقیقت کې استعمارگرو له ډېره وخته د خپلو مخالفینو دا د ضعف نقطه درک کړې ده، نو ځکه مستقیما یا غیرمستقیما خپل مخالفین په یوه نوع تر احسان

لاندې ساتي، ترڅو یې له مخالفت څخه لاس په سرکړي. د سړې جګړې په مهال امریکایانو د (مارشل پلان) له مخې له ډېرو هیوادونو سره وړیا مرستې کولې، دغه مرستې چې هغه مهال د امریکا او روسیې تر منځ په مناسباتو کې دې هیوادونو ته د حق السکوت په نامه ورکول کیدلې، وروسته یې هغه ټول هیوادونه د امریکایي نامرئي استعمار په ځنځیر وتړل، چې تراوسه بیا د امریکا د هر ډول نخرو په مقابل کې سترګې نه شي پورته کولی.

لکه څنګه چې په حکومتي سطحه مادي احسان منل د دریځ د کمزورۍ سبب ګرځي، په فردي شکل هم ډېر کسان یوازې د مادیاتو په توسط د غولیدلو او د احسان تر تاثیر لاندې واقع کیدلو له امله له خپل مسیر څخه منحرف کیږي.

اوس چې اسلامي امت یو ځل بیا د امریکایي کفري ښکیلاک له استعماري چالونه سره مخامخ دی، نو که کوم فرد، اولس، ډله یا سیستم غواړي، په بریالیتوب سره خپل مشخص کړی مسیر طی کړي، نو د مبارزې په لاره کې باید همیشه یوازې په دې خبره باور ولري چې:

مرګ له تندې په مذهب زما بهتر دی
له ژوندون د بې همتو په اوبو





## د تاریخ مظلوم، شهید ملا عبد الله ګردیزی

۲/ سبتمبر/۲۰۱٦

شهید ملا عبد الله چې مغرضو تاریخ لیکونکو په ګوډملا سره تشهیر کړی دی، د پکتیا ګردیز ختیځ ته د ډاکټر نجیب پلرني کلي (مېلن) ته څېرمه د اتماني د کلي اوسیدونکی او په قوم احمدزی و. ملا عبد الله په پکتیا کې د اتماني په ملا سره شهرت درلود. چې د انګریز خلاف جهاد کې یې ښه کردار اداء کړی و او تر خوست او پکتیکا یې خلک له نوم سره آشنا ول.

د غبار د تاریخ له مخې کله چې امان الله خان لومړنۍ نظامنامه جوړه کړه بعضي فقرات یي صریحا له شریعت سره ټکر و، مثلا له بلوغ وړاندې نکاح یې غیرقانوني او مردوده بلله. سنزل نوید په خپل کتاب (افغانستان در عهد امانیه) کې لیکي چې د خوست د منګلو قوم یو تن چې یوه نجلۍ یې په ماشومتوب نامزاده کړې وه کله یې چې غوښتل له بلوغ وروسته یي ځان ته واده کړي د نجلۍ کورنۍ په دې نکاح راضي نه وه، خبره حکومت ته لاړه د امیرالدین په نوم حکومتي چارواکي د نظامنامې په اساس فیصله وکړه چې دغه نکاح غیرقانوني شوې او باید فسخه شي. د نجلۍ کورنۍ په دې خبره راضي شوه خو نکاح کوونکی مدعي ملا عبد الله ته ورغی او فتوی یې ترې وغوښته. ملا عبد الله ورته وویل چې په شریعت کې له بلوغ وړاندې نکاح منعقده ده او هیڅوک یې نشي فسخ کولی. دې خبرې زور واخیست تردې چې د ملا عبد الله د فتوی په اساس د منګلو قوم د نظامنامې په مقابل کې ودرېد. ملا عبد الله ګردیزي او مشر شاګرد یې ملا عبدالرشیدسهاک چې د زرمت له سهاکو څخه و، د ۱۳۰۲ لمریز کال په حوت کې حکومت ته عرض وکړ چې د نظامنامې غیر شرعي مواد تبدیل کړي خو حکومت په نظامنامه دومره

ډېر ټينګار درلود او په داسې جبر يي تطبيقوله چې زما د استاد مولـوي اعظـم ګـل صاحب له قوله د هغه وخت يوه شاعر موجوده وضعيت د شعر په ژبـه داسـې بيـان کړی و.

## هرکسی نظم نامه آموختند/ کتب شرع را همی سوختند

د امان الله خان حکومت د ملا عبد الله غوښـتنه رد کـړه او همـدا و چـې مـلا عبد الله د پکتيا، پکتيکا او خوست په سيمو وګرځيد، د تاريخ له روايته په يوه لاس کې به يې قرآن او په بل کې نظامنامه نيولې وه او خلکو ته به يې ويـل چـې کـوم يـو منئ؟ خلکو به طبعا قرانکريم مانه او ده ورتـه ويـل چـې اوس قـرآن نـه بلکـې دغـه نظامنامه په تاسو حکومت کوي. په دې ډول پـاڅون پيـل شـو، حکومـت لـوی پـوځ پکتيا ته وليږه خو شکست يي وخوړ او قريبا تر يو نـيم کـال پـورې سـختې جګـړې وشوه چې د ملا عبد الله پاڅونيانو دلويې پکتيا او لوګر ډېرې ساحې ونيولې حتی د ميدان وردګو تر سيداباد پورې ورسيدل.

پاڅون په پوره بريا روان و او په ورانـدې يـې ټـول حکـومتي کوښښـونه ناکـام شول مګر هغـه وخـت لـه زوال او کمـزورۍ سره مـخ شـو کلـه چـې لـه هنـد څخـه دعبدالکريم په نوم يو غير افغان خوست تـه لاړ او پـه دې پـاڅون کـې داخـل شـو، عبدالکريم له هنده راغلی، دعوه يې درلوده چې د اميرشيرعلي خان د زوی يعقوب خان د مينځې زوی يم، ده دعوه کوله چې اصلا د افغانستان پاچاهي زمـوږ يعنـي د اميرشيرعلي خان د اولادې حق دی، عبدالرحمان خان چې د افضـل خـان زوی او د اميرشيرعلي وراره و، دوی د انګريز په کومک زموږ د پاچاهي حق غصب کړی دی. کله چې دا سړی راغی حکومت او انګريز دواړو يې د تشهير لپاره ډېـر کـار وکـړ او له موقع په استفاده يي دا خبره مشهوره کړه چـې د مـلا عبـد الله پـاڅون د اسـلام جنګ نه بلکې د امير شيرعلي خان اولادې ته د پاچاهي د ستنولو مبارزه ده. داسـې





هم ويل کيږي چې دغه سړی انګريزانو راليږلی و تر څو پاڅون بـدنام کـړي، د دې خبرې له شهرت سره د پاڅون داعيه او شرعي انګيزه کمـزورې او ډېـر خلـک تـرې بيل شول، تردې چـې پـه پـای کـې لـږ کسـان پاتـه او هغـه د مـلا عبـد الله او مـلا عبدالرشيدپه شمول حکومت ونيول او د کابل شاه شهيد ته نږدې د سياه سنګ پـه سيمه کې يي اعدام کړل.

وايي ملا عبد الله چې له نيول کيدو وروسته امان الله اخـان تـه وروسـتل شـو هغه ورته وويل چې ما به تاته ښښنه کړې وای مګر دا چې تا عبـدالکريم د پاچـاهۍ دعوه دار له ځان سره ملګری کړ نو اوس دې نه شم ښښلی.

دغه وخت عبدالکريم د انګريز تر واک لاندې هنـد تـه وتښـتيد، د امـان اللـه خان حکومت يي له انګريز څخه د نيولو او دوی ته سپارلو غوښتنه وکړه، انګريزانـو چې تردې وړاندې د عجب خان افريدي د ورسپارلو غوښتنه کـړې وه مګـر دا چـې امان الله خان عجب خان افريدی ورونه سپاره، عبدالکريم په هند کې پاته شو چـې وروسته برما ته تبعيد او هلته يي خودکشي وکړه.

نن سبا د شهيد ملا عبد الله په اړه ړانده تـاريخ ليکـونکي وايـي چـې نومـوړی انګريز راپورته کړی و مګر دا چې ملا عبد الله له انګريز سره تړاو نه درلـود پـه دې اړه ډېر شواهد شته. سنزل نويد په خپل کتاب کـې د انګريـز او افغـان حکومـت د پټو مذاکراتو داسې اسناد خپاره کړي چې هغوی په دې لټه کې دي تر څو پـه ګـډه د ملا عبد الله مالي ملاتړ کوونکي پيدا کړي، د هغو اسنادو لـه مخـې د انګريزانـو غالب ګومان دا و چې د روسيې نوي واک تـه رسـيدلي بلشـويکان د مـلا عبـد اللـه ملاتړ کوي خو د دې خبرې لپاره هم هيڅ ثبوت نه دی مونـدل شـوی خـو پـه عـين حال کې دا اسناد له ملا عبد الله سره دانګريز د ملاتړ احتمال په کلکه ردوي.

بهادر شاه ظفر کاکاخیل د خپل کتاب (پښتانه د تاریخ په رڼا کې) په ۸۸۹ مخ کې وایي چې د ملا عبد الله د ځېلو لپاره انګریزانو له امـان اللـه خـان سره د پنځـه زره ټوپکو مرسته کړې وه، دغه راز ډاکټر حسن کاکړ د بي بي سي لخوا چاپ شوي کتاب (ژوندۍ خاطرې) په ۳۰ مـخ کـې ویـلي چـې د انګریزانـو د هغـه وخـت ټـول جنګي ارشیفونه یي کتلي خو داسې کوم سند یا شواهد یې پـه کـې نـه دي مونـدلي چې د ملا عبد الله په پاڅون کې د انګریز لاس لرل تـرې ثابـت کـړي بلکـې انګریـز عملا د امان الله خان تر څنګ ولاړ او د پاڅون د سرکوبولو هڅه یي کوله.

د ۱۹۲۵ د مې میاشتې په ۲۵ مه ملا عبد الله او ۶۰ تنـه ملګـري یـې چـې د ده درې زلمي زامن او یو زوم هم په کې و د کابـل ختـیځ کـې سـیاه سـنګ سـیمې تـه یووړل شول او د خلکو د لوی ټولي تر مخ چارماري او اعدام شول. پـه اعـدام شـویو کې د ملا عبد الله تر ټولو جذباتي ملګری ملا عبدالرشید سهاک هم و چې ځان یـې بت شکن باله، ځکه ده د استقلال له منار سره درول شوي د نادر خـان مجسـمه پـه پټه ماته کړې وه اوپه همدې یي شهرت درلود. د تاریخ په روایـت مـلا عبدالرشـید تر اعدام وړاندې د خبرو په مهال د دې په ځای چې ټیټه یي وواېي یو ځل بیا امـان الله او دده ملګري کافران وبلل او په وړاندې یي د جهاد غږ پورته کړ. زمـا د اسـتاد مولوي اعظم ګل صاحب شفاهي روایت دی چې ددغو کسانو د شهادت په ځای تـر ډېره وخته د شپې مهال ډیوې او انوار لیدل کیـدل، دا خـبره دومـره مشـهوره شـوه چې په کابل کې د خلکو تر منځ په یوه لویه هنګامه بدله شـوه او خلکـو د مـلا عبـد الله د حقانیت لوی دلیل ګاڼه، تردې چې حکومت د دې خـبرې لـه خپریـدو خطـر احساس کړ او بیا یي په دې ځمکه ځو بازاري سـپیان ووژل تـر څـو هغـه اثـر خـتم شي. والله اعلم





په دې ډول د شهید ملا عبد الله داستان پای ته ورسید خو د ده مبارزې امان الله خان مجبور کړ چې لویه جرګه راوغواړي او نظامنامـه د علـماء کرامـو نظـر تـه وړاندې کړي چې په دې ډول ډېری غیرشرعی مواد ترې لرې شول.

د روس ضد جهاد په مهال شهید مولوي نصر الله منصور یو له هغـو کسـانو و چې ملا عبد الله یې د یوه ستر غازي او مبارز عالم په حیث معرفي کـاوه، نومـوړي به د جلسو په مهال د شهید ملا عبد اللـه نـوم د یـوه اتـل پـه حیـث پـه غټـو تـورو خطاطي کاوه تر څو یي نوی نسل له نوم اوکارنـامو سره بلـد او لـه مبـارزې یـي زده کړه وکړي.

په هر حال شهید ملا عبد الله د افغانستان د استقلال د جګړو غـازي او بیـا د انګریز په خلاف د افغانانو د جهاد د علیاء اهدافو تـر ټولـو سـتر حـامي او د امـاني سیکولرزم په وړاندې سرسپارلی مجاهد و چې تر ټولو وړاندې یې افغانسـتان تـه د غربي بي دینه افکارو د سرایت په مقابل کې بیرغ پورته او تر وروستۍ شیبې یې د بې دینۍ په مقابل کې په جګو سترګو مبارزه وکړه.

اوس چې افغانستان یو ځل بیا د سیکولرایزیشـن لـه خطـر سره مـخ دی د بې دینۍ په وړاندې زموږ د دې مخکښ غازي پیژندل او قدرداني یـوه مهمـه اړتیـا ده چې باید نوی نسل ترې خبر او له قربانیو څخه یې زده کړه وکړي.

# د حوت دریمه، د الله اکبر د شپې یاد

۲۲/ فبروري/۲۰۱۴

د ۱۳۵۸ هـ ش کال ژمی و، کابل د موسم او یرغل سړې ګبنې نیولې و، د ځیلې زړه په چاودیدو و او د کمونیستي/ شوروي ستم چاړه هډوکي ته په رسیدو وه. په درست هیواد د ظلم او اختناق یوې مرګانۍ خپسې وزرې غوړولې وې، د همدې ستم او استبداد په اوج کې ناڅاپه دمؤمنو کابلیانو د ایمان سمندر په ځپو شو، د حوت په دریمه شپه کابلیانو د خپلو کورونو له بامونو د الله اکبر ملکوتي نعرې پیل کړې. د تکبیر نعرو د کابل په ځلیدونکي اسمان کې انګازې وکړې، د آسمايي غره له پرښو سره راغبرګې شوې، درست کابل یې په سر واخیست، د تکبیر دغه ښارشموله انګازې دومرې پراخې او تصادفي وې، لکه د یوه منظم پروګرام له مخې چې هرڅه ترسره شوي وو. مګر نه، دا هرڅه تصادفي و، الله تعالی په هغه شپه د خپلو ټولو مؤمنو بندګانو زړونو ته القاء کړې وه، چې د تکبیر نعرې ووهي او په دې توګه په وطن راغلي فرعون صفته طاغوت ته خپل عقیدوي غبرګون څرګند کړي.

د حوت د دریمې په شپه نه یوازې د کابل اسمان د الله اکبر زمزمو په سراخیستی و، بلکې (مرګ بر کمونیزم، مرګ بر شوروي او زنده باده مجاهدین) شعارونه هم په لومړي ځل په جهر سره د هیواد په پلازمینه کې پورته شول.

دا هغه وخت و چې د کمونیستي کفر او شوروي یرغل په وړاندې د هیواد په ډېرو سیموکې ولسي قیامونه پیل شوی وو، د کابل مؤمنو ښاریانو په خپل دې قیام





سره خپل ایماني او ملي مسؤلیت ترسره کړ او له خپلو نورو هیوادوالو سره یې همنوايي ثابته کړه.

د حوت د دریمې په سهار د کابل ښار په مختلفو سیمو کې د ولسي پاڅونوالو لاریونونو د کابل ښار واټونو ته ووتل، کمونیست رژیم او شوروي ملاتړي یې چې دې سرتاسري ولسي خوځښت سخت وارخطا کړي وو، په دې باور وو، چې که قیام کوونکي ونه ځپي کیدلای شي چې د کمونیستانو د واک تخته په بل مخ واړوي، نو ځکه یې د بې دفاع پاڅونوالو په ځپلو پسې ټانګونه او توپونه راوایستل او روسي توپدارې هلیکوفترې یې پسې راپورته کړې.

د حوت دریمه د کابل ښار په تاریخ کې یوه بې ساري ورځ وه، هغه ورځ چې بې دفاع او نازولي کابلیان په تش لاس د ټانګونو مخې ته ودریدل، په ډېرو یې د توپونو او بمبارونو مقابله وکړه، هیڅ نوع فشار او ستم ته تسلیم نه شول او ترهغه ساعته وجنګیدل، چې نور یې په رګونو کې وینې پاتې نه شوې.

د حوت په دریمه د کابل په واټونو د اوبو په ځای وینې وبهیدلې، شفاخانې په ټپیانو ډکې شوې او د قیام په تور تورن کابلیان جوپې جوپې د پل چرخي، دهمزنګ او د خاد د ریاستونو زندانونو ته واستول شول، چې بیا یې چا د ژوند او مرګ هیڅ خبر وانه وریېد.

د حوت قیام کټ مټ هغه قیام ته ورته و، لکه د شاشجاع او انګریزي یرغل په مقابل کې چې د کابل د خلکو او نورو افغانانو سرتاسري قیام پیل شو، چې په نتیجه کې یې شاشجاع قتل او انګریزي لښکر ده یواد څخه تیښتې ته اړ شو. مګر څرنګه شوروي یرغلګرو او افغاني کمونیستانو د حوت د پاڅونوالو په مقابل کې له سخت وحشت څخه کار واخیست، نو ځکه دغه قیام خپل نهایي هدف ته ونه رسید. شورویانو او افغاني کمونیستانو په ماشومانو، سپین ږیرو او نورو بې دفاع

وګړو باندې درنې وسلې وچلولې، په کورونو یې چاپې واچولې او عام خلک یې ډلې ډلې زندانونو ته واچول.

خو د الله اکبر شپې او د حوت د دریمې قیام کمونیستانو او د دوی بادارانو ته دا ثابته کړه، چې دا اولس یوازې د الله تعالی په خدایي او عظمت ایمان لري او بل هیڅ خدای دښمنه طاغوت ته سر نه شي ټیټولای. د حوت قیام په اولس کې یو نوی روح پو کړ، د یرغلګر اختناق د زور او رعب طلسم یې مات کړ او کابل میشتو مجاهدینو ته یې د جهادي عملیاتو جرأت ورکړ.

اوس چې تاریخي کابل او درست هیواد یو ځل بیا د معاصرامریکایي طاغوت تر ولکه لاندې دی او په وړاندې یې د افغانستان په کچه مسلح جهاد روان دی، دښمن کوشش کوي چې د بیلابیلو تبلیغاتي او کلتوري هڅو په توسط د افغان مؤمن اولس ایماني جهادي روحیه ووژني، خو متدین افغانان باید د خپل ویاړمن تاریخ وقائع هیر نه کړي او د خپلو اسلافو نقش قدم ټینګ ونیسي.

د حوت قیام موږ ته راښیي چې زموږ عقیده او خپلواکي په ډېرو قربانیو ارزي، زموږ اسلافو د دیني ارزښتونو او استقلال لپاره خورا سترې قربانۍ ورکړې دي، چې موږ باید خپل دغه افتخارات وړیا له لاسه ورنکړو، بلکې په پوره وفادارۍ او ایثار سره ترې ننګه وکړو.

د حق د لارې مجاهدپاڅون کوونکي دې سرلوړي وي

مختوري کمونیستان او د هغوی ننني نسل سکیولران دې سرټیټي وي

الله تعالی دې حوت د دریمې د شهیدانو شهادتونو او قربانۍ قبولې کړي، آمین





## د جدي شپږمه، د ډانګ او ټانګ مقابله

۲۶/ ډسمبر/۲۰۱٦

محمد خان ترکی د هلمند یوه اطرافي او کلیوال افغان و، څو لسیزې وړاندې چې کمونیستان په افغانستان کې واک ته ورسیدل او په تعقیب یې شوروي اتحاد په افغانستان پراخ پوځي یرغل وکړ. نړۍ او خصوصا د امریکا په شمول غربي بلاک یې له سختې ویرې سره مخامخ کړل.

تمه کېده چې د شورویانو له یرغل وروسته به ډېر ژر امریکا او د غربي پکټ نور هیوادونه د افغانانو ملاتړ اعلان او پوځي مرستې به ورسره پیل کړي. خو امریکایان چې په کوریا، ویتنام، کیوبا او نورو ډګرونو یې له شورویانو سختې ماتې خوړلې وې تر دا مهاله یې د سره پوځ رعب په زړه او حواسو منګولې ښخې وې، نو ځکه کله چې د افغانستان یو شمیر کمونیزم ضد اشخاص امریکا ته په سفر لاړل او له امریکایانو یې د شورویانو په خلاف د مرستې غوښتنه وکړه نو د محمد حسن ولسمل په استناد امریکایانو ورته په ځواب کې وویل چې: افغانستان موږ له وخته د شوروي د نفوذ سیمه او د شرقي پکت په پله کې پروت هیواد بللی و، نو ځکه په دې هیواد د شوروي یرغل موږ په خپلو ګټو تیری نه شو بللی او نه هم له افغان مقاومت څخه په ملاتړ غواړو د شورویانو حساسیت وپاروو.

د شوروي یرغل په لومړیو کې د امریکا دا خبره هسې یوه تیرایستونکې بهانه وه کنه اصلي علت دا و چې امریکایان او نوره نړۍ د شوروي له نه ماتیدونکي ځواک څخه سخت په ویره کې ول. هغه شوروي ځواک چې د هغه وخت په پوځي اصطلاح یي مداخله د فیل پښه ایښودل تعبیریدل چې بیرته پاڅول یې د انسان له توانه لوړ بلل کیدل.

وايي: که ګور ګران دی خو د مړي ناکام دی. د شورویانو له سره پوځ سره مقابله که څه تردې حده سخته او ویروونکې وه چې اټومي پینتګان یې له ویرې ګبنې نیولو. خو د افغانانو دیني، ملي او وجداني مجبوریت و چې هر څنګه کیږي د شوروي ټانګونو مقابلې ته باید راووځي.

افغانانو د هیواد په لراوبر کې په تش لاس جهاد شروع کړ. د هغه مهال د یوه مجاهد په وینا په لومړیو وختونو کې به چې شوروي ټانګونه کلیو ته راووتل نو افغان مجاهدینو يي د مقابلې لپاره هیڅ راز وسله نه درلوده. د مجاهدینو تر ټولو څواکمنه وسله دره ای ټوپک و چې په ټانګ يي مؤثريت نه درلود. وروسته ځینو مجاهدینو د صابون او پیترولو له محلول څخه بوتلي بمونه جوړ کړل چې په ټانګ د ویشتلو لپاره یې باید مجاهد د ټانګ لس مترۍ ته ځان رسولی وای چې ډېر ځله به د بوتل له ګوزار وړاندې د روسانو لخوا په نښه او شهید کړای شو.

ما چې دې موضوع ته (د ډانګ او ټانګ مقابله) عنوان ورکړ، مطلب مې د موضوع په اړه د هغه مهال یوه تاریخي واقعیت ته اشاره کول و.

د روسانو د یرغل په لومړیو کلونو کې د هلمند ولایت له مقدمو مجاهدینو یو تن محمد خان ترکی نومېده. محمد خان بې سواده و، عمر یې په شپني او مالدارۍ کې تېر کړی و خو په فکري لحاظ یو بشپړ او محکم مسلمان و. کله چې شورویان په وطن راغلل محمد خان ترکي هم له ملایانو واوریدل چې کفر راغلی او جهاد فرض دی. محمد خان خپله رمه پرېښوده خو ډانګ يې ونه غورځاوه. هغه دا ځل له ډانګ سره د روسي ټانګونو مقابلې ته راووت. محمدخان چې وروسته لوی مجاهد شو تر دې چې د هلمند پیژندل شوی مجاهد نسیم اخندزاده یې له جهادي شاګردانو او افرادو بلل کیږي په اړه يي مشهوره ده چې د خورا عالي توکل او لوړ عزم څښتن و.





تش لاسی او ډانګ په لاس محمدخان به چې کله د روسي ټانګونو مقابلې ته ووت. نو د خپلو ملګرو د حوصلې لوړولو لپاره یې داسې حماسه زمزمه غږوله

زما په لاس کې ډانګ ډانګ.... خدای ته مې تکیه ده

له تاسره که توپ ده یا که ټانګ یا طیاره ده

زما په لاس کې ډانګ ډانګ.... خدای ته مې تکیه ده

هوکې، د محمد خان او نورو مجاهدینو په لاس کې ډانګونه او تکیه یې پر خدای وه نو ځکه یې په لنډه موده کې د شوروي لښکرو اعتبار له خطر سره مخامخ او په هر ډګر یې درانه تلفات ورواړول. د روسي ټانګونو په خلاف د افغان (ډانګ په لاس) مجاهدینو استقامت نړۍ ته ثابته کړه چې د شورویانو مقابله شوني ده. نو ځکه بیا د امریکا په شمول د ګردې نړۍ له زړه رعب پورته شو او له افغان مجاهدینو سره مرستې ته راوړاندې شول.

شورویان مات شول، خو دا چې قلم د دښمن په لاس و تاریخ ولیکل چې شورویان (ریګن او ستینګرو) مات کړل. خو حقیقت دا و چې شورویان هغو مجاهدین مات کړل چې په لاس یې ډانګ او تکیه یې پر الله جل جلا له وه.

که پر الله تعالی واقعي توکل ولرو کولای شو د شپانه په ډانګ د شوروي غوندې د امریکایي ټانګونو مخه هم ورغبرګه او وطن یې له ګندګۍ خلاص کړو.

# د یا الله د زمزمې وخت رارسیدلی!

۲۳/ جنوري/۲۰۱۲

دا ٦٥٨ هجري قمري کال دی، د روژې مبارکه میاشت. اسلامي نړۍ د خپل تاریخ په تر ټولو بدحالت کې قرار لري. د چنګیزخان په مشرۍ د تاتاریانو وبا چې د ګوبي له دښتې راپیل شوې وه، دا دی اوس فلسطین تـه رارسـیدلې ده. دې نـړۍ ځبیښونکې اژدها له ختیځ ترکستانه نیولې بیا تر شام او دیار بکر پورې د کاشغر او ترکسـتان د اولسـونو، غوریـانو، خوارزمشـاهانو، زنګیـانو، عباسـیانو او نـورو ډېـرو اسلامي حکومتونه ترستوني تیر کړي او اوس یې په وړاندې یوازې پـه مصرـ کـې د ممالیکو اسلامي واکمني پاته ده.

د چنګیز اولادې له بحرالکاهل نیولې بیا تر مدیترانې پورې ټولې ځمکې لاندې کړې دي او آسونه یې که په شمال لویدیځ کې د بالتیک په بحیـره اوبـه کیـږي، پـه جنوب کې بنګال ته رسیدونکي او د سند له دریابه د اوښتو په حال کې دي.

د چنګیز لمسی هلاکو خان چې عباسي خلافت یې نړولی او په سوریه یې هـم واک ټینګ کړی، د مصر له یوازیني پاته اسلامي واکمنو هم غوښـتنه کـوي، چـې د ده سلطنت ومني او پرته له جنګ او یرغل ورته تسلیم شي.

هلاکو خان د کبر په اوج کې دیوه لیک په واسطه د مصرـ د مملـوکي سـلطنت مشر سیف الدین قطز داسې مخاطبوي: (دا لیک د ختیځ او لویدیځ د ټولو شـاهانو د پاچا له خوا دی، زموږ له تـورو تښـتیدلی مصري واکمـن سـیف الـدین قطـز او د ده ملګري او درباریان دې په دې پوه شي چې موږ په ځمکـه د خـدای لښـکر یـو، چـې د خدای له قهره پیدا شوي یو او په هغه چا مسلط کیږو چـې د خـدای د قهـر مسـتحق





وي. زموږ لخوا نیول شوي او تباه شوي ښارونه ستاسو په وړاندې دي چې باید عـبرت ترې واخلئ او مخکې له دې چې زموږ تورې ستاسو په مقابل کې له تیکو راووځي بایـد تسلیم شئ، ځکه د نه تسلیمیدو په صورت کې به بیا تاسو ته یوازې پښیماني پاته وي، موږ هغه مهال بیا په هیڅ ژړا کوونکي رحم نه کوو او نه د چـا شـکریه منـو. تاسـو بـه اوریدلي وي چې موږ خورا ډېر ښارونه فتحه کړي او ځمکه مـو لـه فسـاد څخـه پاکـه کړې ده، دغه راز مو خورا ډېر خلک وژلي دي، که تاسو زموږ خبره ونه منئ، نـو بیابـه تاسو ته یوازې د تیښتې انتخاب پاته وي او موږ به ستاسو د تعقیـب او رانیولـو. هغـه مهال به بیا هیڅ ځمکه تاسو ته پناه درنکړي، هیڅ لاره به تاسو لـه مـوږ نـه خـلاص نـه کړي او نه به مو کوم ښار رانه وساتي. زموږ له تورو تاسو خلاصی نه لرئ، زموږ آسـونه ډېر تیز دي او غشي مو خـورا خـونړي دي، تـورې مـو د تنـدر غونـدې اورنـۍ دي او زړونه مو د غرونو په شان مضـبوط دي، زمـوږ شـمیر د صـحرا د ریګونـو غونـدې بـې حسـابه دی، نـو ځکـه مـو پخـې کلاګـانې او حصـارونه نـه شي ایسـارولی او مخـالف سرتیري مو په وړاندې مقابله نه شي کولای.

وروستۍ خبره داده که زموږ شرائط او اوامر مو ومنل، نو تاسو به په امن پاتـه شئ او که مو مخالفت وکړ نو هلاکت مـو حتمـي دی. نـو ښـه خـبره دا ده چـې زر ترزره د تسلیمۍ ځواب راولیږئ او په دې برخه کې هیڅ ځنډ ونه کړئ)

دا لیک هلاکو د خپلـو کسـانو د یـوه پـلاوي پـه لاس مصرـي اسلامي واکمـن سلطان قطز ته ولیږه. سلطان قطز چې کله د هلاکو دا متکبرانـه لیـک ولوسـت، نـو خورا خوشیني شو. خپل درباریان او ملګري یې راټول کړل تر څـو د هلاکـو د لیـک لپاره ترې ځواب وغواړي، بالاخره د ټولو مشوره په دې راغله چې د تاتـاري یرغلګـرو په مقابل کې په اللهي نصرت باور وکړي او جګړې ته یې ځان امـاده کـړي. سـلطان قطز امر وکړ چې د هلاکو استازي راونیسئ ټول ووژنئ او مړي یې راځـړوئ. همـدا سې وشول، مصري واکمنو د هلاکو خان استازي ټول په تورو بانـدې نـیم نـیم پـرې

کړل او مړي يې راوځړول او په دې توګه يې هلاکو ته پيغام واستاوه چې زموږ يوازينۍ او آخرين تصميم ستاسو په مقابل کې د تورې په څوکه فيصله ده او بس.

له دې وروسته يې د هلاکو مقابلې ته د لښکر په اماده کولو پيل وکړ، په شام کې د هلاکو د يرغلګرو جنګياليو دحال اخيستلو لپاره يې احوال اخيستونکي ګروپونه د فلسطين په لور وليږل. دغه وخت په مصر کې ديني علماوو فتوا ورکړه چې پر هر مسلمان باندې جهاد فرض عين دی، ځکه چنګيزي لښکر خورا ډېر اسلامي ملکونه لاندې کړي دي او اوس يې د مصر اسلامي واکمنې هم له خطر سره مخ کړې ده. سلطان سيف الدين قطز لوی لښکر اماده کړه او د ٦٥٨ قمري کال د روژې په لومړيو کې له مصر څخه د فلسطين او شام په خوا د تاتاريانو مقابلې ته روان شو. له نوموړي سره په لار کې د عربو او نورو اولسونو خواره واره مجاهدين هم ملګري کيدل، د سلطان قطز لښکر د فلسطين غزې ته ورسيد او هلته څه مهال تم شو. دا وخت د (کتبغا نوين) په مشرۍ د تاتاريانو تر ټولو ستر يرغلګر لښکر چې شام يې لوټ کړی و، د بعلبک ښار ته نږدې دبقاع په سيمه کې دېره وه. کتبغا ته خپلو مخبرانو احوال ورکړ، چې د سلطان قطز لښکر غزې ته رارسيدلی او نيت لري له مغولو (تاتاريانو) سره يوه پريکنده جګړه وکړي. دا هغه وخت و چې د تاتاريانو قوت د بل هر وخت په نسبت په اوج او موج کې و، دوی تقريبا ټوله اسلامي نړۍ لاندې کړې وه او يوازې د جزيرة العرب او مصر سيمې ورته پاتې وې، دوی چې د ګوبي له صحرا څخه خپل د سوبو او جګړو بهير پيل کړی و، تراوسه يې شکست نه و خوړلی، دوی ټول محکوم اولسونه په زور له ځان سره ملګري کړي و د هغوی نارينه يې د سرتيرو په توګه استخدام کړي او ښځې يې مينځې کړې وې، چې له دې امله يې قوت څو برابره زيات شوی و.

کله چې د هلاکو خان يرغليز مشر کتبغا ته د سيف الدين قطز د لښکر د راتللو احوال ورسيد، نوموړي له خپلو مشاورينو سره مشوره پيل کړه چې د دې





لښکر په مقابل کې بايد څه وکړي. ځينو وويل چې تر هغو دې مقابلې ته نه وروځي ترڅو له لوی سلطان هلاکو څخه اضافي کومک او مرستندوی لښکر نه وي رارسيدلی، خو ډيرو نورو بيا په دې فارمولې استدلال کاوه چې (جيش التتار لا تقهر) تاتاري لښکر هيڅکله نه مغلوبيږي. دوی ويل چې د هلاکو د اضافي کومک پرته هم د دوی د دې يرغليز لښکر شمير د سلطان قطز له لښکر څخه زيات او په ښو جنګي تجربو او وسائلو سمبال دی، نو ځکه دا ښه نه ده چې له دې مقابلې په شا شو.

تاتاري پهلوان کتبغا ته هم بالاخره همدا وروستۍ مشوره په ځای وبرېښېده او د جنوب په خوا يې د سلطان قطز د مقابلې لپاره لښکر ته د روانيدو امر وکړ.

د اسلامي لښکر مشر سلطان قطز چې دا مهال له خپل لوی لښکر سر په فلسطين کې و، د خپل يوه قوماندان (رکن الدين بيبرس) په مشرۍ يې يوه ډلګۍ د تاتاريانو مخته وليږله، ترڅو د هغوی د لښکر د شمير، قوت او جنګي پروګرام په اړه د استخباراتي معلومات له راټولولو علاوه په اولنيو چريکي بريدونو د تاتاری لښکر د وړاندې راتګ مخه ډب کړي. رکن الدين بيبرس سلطان قطز ته احوال وليږه چې تاتاري لښکر د فلسطين ختيځ کې د نابلس او بيسان تر منځ د (عين جالوت) سيمې ته رارسيدلی او همدا د جګړې لپاره ښه مناسب ډګر دی.

سلطان قطز هم په خورا بيړه له خپل لښکر سره د عين جالوت سيمې ته ځان ورساوه او د ٦٥٨ هجري قمري کال درمضان دمبارکې مياشتې ٢٥ مه وه چې د اردن سيند په لويديځه غاړه د عين جالوت په ميدان د مسلمانانو او تاتاريانو لښکرې په خونړۍ جګړه سره دوڅار شوې.

دا جګړه خورا نا انډوله وه، تاتاريان چې ګڼ ښارونه يې فتحه کړي او د نړۍ په لراوبر کې يې هر په مخه ورتلونکی لښکر دړې وړې کړی و، د جګړې د ګټلو يې خورا ډېر چانس درلود. ځکه دوی د جګړو د ګټلو او د مخالف لښکر د ماتولو لپاره

خورا ټاکونکي تجرې زده کړې وې، لښکر یې جنګ آزموده او په ښو آسونو او وسلو سمبال وچې شمیر یې هم خورا زیات و. خو په مقابل کې یې د مسلمانانو لښکر چې هیڅ جنګي برتري یې نه درلوده یوازې د خپلې بقاء لپاره جنګیدل.

سلطان قطز خپل لښکر د هغه مهال له جنګي پروګرام سره سم په څو برخو ویشلی و. یوه برخه یې د رکن الدین بیبرس په مشرۍ د تاتاریانو د اولنۍ مخامخ حملې مقابلې ته سوق کړه، یوه برخه یې د منتظره قطعې په دود د جګړې له لیکو شاته غونډیو کې انتظار پریښوده ترڅو د ضرورت په وخت په جګړه بوختومجاهدینو ته دمه ورکړي. دغه راز یې د لښکر چپ او ښي خواته (میسرې او میمنې) ټولیو ته هم په دښمن د برید قومانده ورکړه او په خپله د اسلامي لښکر په قلب (منځ) کې پاته شو، ترڅو په اسانۍ سره ټولې خواوې رهبري کړای شي.

سره له دې چې سلطان قطز د خپلو مجاهدینو د پارولو او تشجیع لپاره د جګړې له پیله وړاندې ډیره هڅه کړې وه، اسلامي لښکریانو ته یې د تاتاریانو مظالم بیان کړي وو، چې په اسلامي اولسونو یې څنګه تجاوزات ترسره کړي دي، دغه راز یې د دې اسلامي لښکر د احتمالي شکست بد عواقب هم ورته بیان کړي وو او خپل لښکریان یې له روحي لحاظه داسې جنګ ته اماده کړي وو، چې د ډېرو په سترګو کې د شهادت د شوق او جهادي احساساتو له امله اوښکې ډنډشوې وې.

خوله دې سره سره څنګه چې تاتاري لښکر د جنګي صف ماتولو خورا پخه تجربه درلوده د جګړې له پیل لږ وروسته تاتاریان په دې توانیدل، چې د جګړې په ډګر کې لوړ موقعیتونه او غونډۍ چې ستراتیژیک اهمیت یې درلود، ترخپل تسلط لاندې راولي او په مسلمانانو باندې د خپلو تیزو او جنګ ازموده آسونو څخه په استفاده تندریزې حملې پیل کړي. د تاتاري سپرو دغه ډول پرمختیایي بریدونه په تاریخ کې ځانګړې شهرت لري، چې دوی به په خورا لیونتوب ترسره کول او ډېر زر





به یې له مخالف جهت څخه د جګړې ابتکار په لاس کې اخیست. د تاتاري سپرو د همدې برید په ترڅ کې د سلطان قطز د لښکر میسرې (چپ اړخ) سخت شکست وخوړ او جنګي صف یې درې ورې شو. دا شیبه د سلطان قطز لپاره خورا بوږنوونکې وه، نوموړي چې د خپل لښکر په میسره کې دا حال ولید نو په پوره حوصله یې د لښکر په منځنۍ حصه کې خپل لښکریان په جګړه بوخت پریښودل او له یوه ډله مجاهدینو سره یې په خپله بیرته د میسرې دټینګولو هڅه پیل کړه، په دې مهال تاتاریانو په نورو برخو کې هم بریدونو ته زور ورکړ او د جګړې شدت وروستي حد ته ورسید. سلطان قطز د وروستۍ هڅې په توګه خپل منتظر سرتیري هم د جګړې میدان ته داخل کړل، خو بیا هم د تاتاریانو بریدونه په شانه تمبیدل او نږدې وه چې اسلامي لښکر له شکست سره مخ او د اسلامي امت د امید دا وروستۍ څلی هم د تاتاري توپان په مقابل کې ونړیږي.

په دې مهال چې په ټولو برخو کې سخته جګړه روانه ده او د تاتاریانو د پریکنده بریدونو په مقابل کې په محدود اسلامي لښکر کې د ستړیا احساس او د شکست علائم ښکاري، د سلطان قطز جهادي احساسات وروستي حد ته رسیږي، نوموړی د جګړې په تاوده ډګر کې، د امید او نا امیدۍ ترمنځ د کشمکش په احساساتي شیبه کې، ناڅاپه د خپل جنګي آس له شا څخه ټوپ وهي، ځان لاندې غورځوي، خپله جنګي خولۍ په ځمکه ټکو او په لړزوونکي غږ کریغې پورته کوي (وا اسلاماه!!! واسلاماه!!!) د نوموړي دا د زړه له تله راپورته شوې چیغه د اسلامي لښکریانو په مړاوو هډونو کې نوی روح پوکي، یوه ډله ځوانان په خورا جوش او ولولو د سلطان قطز په شاوخوا راټولیږي اوپه تاتاریانو له نوي روحیې سره بریدونو پیلوي. سلطان قطز خپلو سویو چیغو ته همداسې ادامه ورکوي او وروسته په چیغو چیغو کې په پوره اخلاص او انکسار په لوړ اواز وایي (یا الله!! انصرعبدک قطز علی التتار اې خدایه خپل بنده قطز په تاتاریانو بریالی کړه! په همدې حال کې سلطان

قطز د خپلو پاریدلو ملګرو په ملتیا د تاتاریانو په صفونو ناترسه بریدونه پیلوي، او له ژوند او مرګه بې پروا د تاتاریانو د صفونو منځ ته ورننوځي. د توپاني هجوم په بهیر کې د سلطان آس ټپي کیږي، نوموړی له آس څخه کوزیږي او د خپلو پیاده سرتیرو په ملتیا د تاتاریانو د لښکر په زړه حمله کوي، وروسته بیا د سپرو له ډلګۍ سره ملګری کیږي او پرمختیایي جګړې ته زور ورکوي، ترڅه ځنډ وروسته د مسلمانانو د جذباتي حملوپه پایله کې ناڅاپه د جګړې معادله سرچپه کیږي، د تاتاریانو ستر پهلوان او مشر کتبغا چې د خپل لښکر په قلب کې یې قرار درلود د مسلمانانو په لاس قتل کیږي او په دې توګه د تاتاریانو په صفونو کې د شکست نښې رابرسیره کیږي.

په پای کې تاتاریان له سخت شکست سره مخ کیږي او تقریبا ټول لښکر یې د مسلمانانو په لاس له منځه ځي، د مؤرخینو په قول دا جګړه (د عین جالوت معرکه) لومړنۍ جګړه وه، چې له نړۍ څخه یې د تاتاریانو مخه راغبرګه او په لومړي ځل یې سخت شکست په کې وخوړ. تر دې پخوا تاتاریانو هیڅکله داسې شکست نه و خوړلی، له ماتې وروسته سلطان قطز تاتاریان پسې تعقیب کړل او بیا د تاتاري وحشي پدیدې په هیڅ میدان کې هم پښه ټینګه نه شوه. تاریخ لیکي چې له دې شکست وروسته تاتاریان څو ځله بیا هم په شام کې د سلطان قطز مقابلې ته راووتل، خو په هرځل یې د تېر په پرتله عبرتناک شکست وخوړ، د عین جالوت د معرکې په اړه ویل کیږي، چې د تاتاري لښکر له ماتې وروسته د جګړې په آخرینه لمحه کې د دې غزا اتل سلطان قطز داحساساتو په اوج کې د اس له شا راکوز شو او الله تعالی ته دشکر په سجده پرېووت.

تاریخ لیکونکي وایي سره له دې چې د عین جالوت په ورځ د سلطان قطز بریالیتوب یو عادي رویداد و، ځکه چې دوه لښکرونه سره مخامخ شي ضرور به یې یو ګټي، خو دې جګړې ته ځکه په تاریخ کې په فوق العاده نظر کتل کیږي، چې





نړیوال تاریخي جریان ته یې اساسي لوری وټاکه. دې جګړې هغه مفکوره باطله کړه، چې ویل کیدل به تاتاري لښکر شکست نه خوري، د همدې مفکورې تر سیوري لاندې مسلمانانو د اسلامي نړۍ دوه په درې برخې خاوره دتاتاریانو په مقابل کې له لاسه ورکړې وه، دغه راز دې جګړې په بنسټیزه توګه د تاتاریانو تعرضي دریځ په دفاعي بدل کړ او نه یوازې دا چې له دې وروسته تاتاریان په کومه پوځي بریا خپلولو ونه توانیدل بلکې له همدې ورځې یې تدریجي زوال پیل شو. د سلطان قطز د بریالۍ غزا له برکته تاتاریانوته په پله پسې توګه داسې ماتې ورپیښې شوې لکه بریاوې یې چې ګټلې وې، سلطان قطز له عین جالوت وروسته دوی پسې تعقیب کړل، دشام اشغال شوي ښارونه حلب او دمشق یې بېرته ترې ونیول او په دې توګه یې تاتاري مهلکې پدیدې ته دزوال آغاز کیښود.

اسلامي تاریخ لیکونکي چې معمولا د تاریخي اوښتونونو او بدلونونو عوامل او علل څېړي، په اسلامي تاریخ کې د دې مهمې غزا د ګټلو په اړه وایي، چې بنیادي عامل یې د سلطان قطز لخوا د وروستي امید په توګه یوازې په الهي نصرت باندې بې ساري بروسه او تکیه وه.

سلطان قطز چې له مصره روانېده نو د مصر ډېر سیمه ییز واکمن له دې وجې ورسره ملګري نه شول، چې له تاتاریانو سره د نوموړي د محدود لښکر مقابله یې لیونتوب او د ځان هلاکت باله. خو د هغوی د دې عقلي قیاس په مقابل کې سلطان قطز ویلي وو چې تاسو ځانونه د مسلمانانو امیران بولئ په داسې حال کې چې د مسلمانانو بیت المال خورئ جهاد او غازیان بد ګڼئ. زه خپله د تاتاریانو مقابلې ته ورځم او په تاسو باندې الله تعالی ښه عالم دی، وروستۍ خبره داده څوک چې د غزا شوق لري له ماسره دې ملګري شي او څوک چې جهاد ته نه ځي خپلو کورونو ته دې لاړ شي)

وروسته د جګړې په مهال هم سلطان قطز په خورا عجز الله تعالی ته خواستونه کول، ترڅو د ده کوچنۍ ډله بریالۍ کړي، نو موړي په توده جګړه کې د یاالله یا الله چیغې وهلې او ګا م په ګام یې الهي نصرت رانګاوه، چې په پایله کې د الهي نصرت مستحق وګرځید او په ستره بریا فائز شو. له دې څخه معلومیږي چې که مسلمان مجاهدین په الهي نصرت پوره باور ولري، همیشه الله تعالی ته متوجه واوسي او له خپل کم شمیر او د دښمن له قوت څخه نظر منصرف کړي، بریالیتوب یې حتمي دی.

په اسلامي نړۍ د چنګیزیانو یرغل موږ ته همدا رازده کوي، چې دوی په ختیځ ترکستان، خوارزم، خراسان، فارس، عراق، شام او نورو سیمو کې د مسلمانانو خورا قوي قوي لښکرونه مات کړل، خو په پای کې الله تعالی د مسلمانانو د یوې کوچنۍ ډلې په مقابل کې وشرمول.

نن سبا په اسلامي نړۍ غربي یرغل یو ځل بیا موږ ته هماغه د تاتاریانو د عروج د مهال خاطرې رایادوي. د هغه مهال غونډې اوس هم تقریبا درسته اسلامي نړۍ د کفري غربي یرغلګرو تر پټ یا ښکاره اشغال لاندې ده او دا یوازې د افغانستان مجاهد اولس دی، چې د دې سیلاب په مقابل کې د وروستي کمر په توګه مقاومت کوي. موږ وینو چې اوس هم د عین جالوت د ورځې غونډې د اسلام او کفر د لښکرونو ترمنځ د افرادو او امکاناتو له اړخه خورا ستر تفاوت موجود دی، خو تیرې څو کلنې تجربې ښیي چې د افغان غازیانو ارادې هم د سلطان قطز دلښکریانو غونډې مضبوطې، په الهي نصرت متکي او د شهادت په شوق خړوبې دي، چې همدا سعادت د اسلامي لښکر دبریالیتوب نغد زیری بلل کیږي.

راځئ په دې حساسو شیبو کې د سلطان قطز په دود خپلو ټول حواس الهي رحم او نصرت ته متوجه کړو او د زړه له تله ووایو: (یا الله! په افغان معرکه کې خپل مستضعف بندګان دې په غربي کفارو باندې بریالي کړې) امین ثم آمین





## ٢٦ دلو١٣٦٧ هـ ش ــ قصص الاولین مواعظ للآخرین

١٤/ فبرروي/٢٠١٢

٢٣ کاله وړاندې

دا ١٣٦٧ هـ لمریز کال دی، د سلواغې شپږ ویشتمه، د افغانستان د ساړه ژمي یوه یخه او چیچلې ورځ، د درستې بشري نړۍ سترګې یو ځل بیا د آسیاپه لوړو کې پراته دې هیواد (افغانستان) ته ځیرځیر دي، نن په دې خطه یو بل تاریخ ساز جریان بشپړیدونکی دی، داسې جریان چې وروسته د تاریخ لیکونکو په اجماع د شلمې میلادي پیړۍ (معجزه) وبلل شو. په رښتیا هم هغه واقعیت چې ٢٣ کاله وړاندې په دې قلمرو کې بشپړ شو، معجزې ته ورته و.

د افغانستان په شمال کې د آمو سیند په غاړه د حیرتان ښارګوټي په آسمان تازه د لمر سترګې ځرک وهلی، ناڅاپه د ښار یخ وهلې چوپیتا دټانګونو غرهار ماته کړه، ټانکونه وغورېدل او د لوګیو لړې یې هسکې شوې، روسي سرتیري د تل په شان په ټانګونو او زرهپوښونو وختل، د ټانګونو کاروان حرکت وکړ او په ځمکه یې یو ځل بیا زلزله ګډه کړه. خو داسې ښکاري لکه نن چې هرڅه برعکس وي، نن د تیرو نهو کلونو خلاف د روسي کتار مخه په بله ده، په تیرو نهو کلونو کې په پرلپسې توګه لیدل کیدل، چې د شوروي د څلویښتم لښکر په وسلو سمبال سرتیري له اشغالګرانه غرورسره د دوستۍ (!) له پله را اوښتل او له حیرتان څخه مخ په جنوب د افغانستان په ساره او اوږده کې خپریدل. خو نن لکه چې د څلویښتم لښکر بخت سرچپه شوی وي، ځکه نن لاره هماغه ده ټانګونه هماغه اوسرتیري هماغه، خو مزل په بله خوا دی. نن نه یوازې روسي لښکر د جنوب په ځای د شمال په خوا روان

دی، بلکې د شوروي سرتیرو وضعیت هم په غیرمعمولي توگه د پخوا بـرعکس دی، نن د سرتیرو په شونډو فاتحانه موسکا نشته، برعکس د ټولو اورمیږونه ځوړنـد او د شرمندگۍ او شکست احساس لاهو کړي دي.

ټانگونه د دوستۍ پله ته ورسیدل. داهماغـه پـل دی چـې پـوره ۳۳۳۵ ورځـې وړاندې پـه یـوه همداسـې یـخ سـهار پـرې د شـوروي مقـدماتي یرغلیـز قطعـات د افغانستان غاړې ته اوښتي وو. پل بې له شـکه هماغـه دی، خـو پـرې د (اوښـتلو) او (راوښتلو) وضعیت یې د ځمکې او اسمان تـوپیر لـري. نـن پـه دې اوسـپنیز پلـه د ټانکونو د حرکت غرهار او شور افغان اولس ته د اشغال، محکومیت او یرغل انگیزه نه لیـږدوي، بلکـې د دې سرلـوړي او پـه خپلـواکۍ مـین اولـس د آزادۍ او تلپـاتې حماسې پژواک له ځانه سره لري.

ټانگونه په پله پورې وتل، خو یو تن له ټانگونو پلې پاته سرتیری لاهم په معنـې داره گـامونو د دې اوږده مـزل وروسـتي گامونـه بشـپړوي. دا دڅلویښـتم لښـکر وروستی سرلښکر جـنرال بـوریس گرومـوف دی، نومـوړی چـې لـه کـومې خـاورې گامونه اخلي دلته یې د خپل متبوع پوځ پوره ۱۴۴۵۳ ککرۍ خـاورې شـوې دي، نـو ځکه یې گامونه نیولي، لړزاند او فکر لاهو دی. نوموړی دپ له په امتداد پـه داسـې حال کې تېر شو، چې هیڅ یې شاته ونه کتل، خو کله چې د پل بلـې غـاړې (شـوروي قلمرو) ته واوښت، شاته ځیر شو، د خاورین افغانستان، خړ ځېږه غرونه او سـوزنده رغونه یې تر نظر تیر کړل او بیا یې تر شونډو لاندې ځو جملې ولوستې.

د گروموف دا له ځان سره لوستې جملې اوس هم (د تاریخ معما) بلـل کیـږي، د ژورنالیستانو له بیا بیا ټینگار سره سره تراوسه گروموف دې ته ندی حاضرشـوی، چې دا راز افشاکړي، ځیني وایي گرومـوف وویـل (مـوږ بـه بیـا هیڅکلـه هـم دلتـه رانشو)





## په افغانستان کې د شوروي ماته

روسان هم کټ مټ د نورو اروپایانو غونـدې د اشغال، اسـتعمار او اسـتثمار خورا اوږد تاریخ لري، چې ترڅو پیړیو رسیږي. په افغانستان یرغـل د دوی لـومړنی یرغل یا اشغال نه و، خو دلته فاحش شکست یې بې له شکه چې پـه تـاریخي لحـاظ یوه ټاکونکې ماتې او پوځي ناکامي وه، چې پخوا ورسره کله هم نه ول مخ شوي.

روسان د مقاومت ماتولو خورا اوږدې تجربې لري، دوی د ۱۸ مې ۱۹ مې او ۲۰ مې پیړیو په ترڅ کې د لسیزو جگړو په پایله کې په پله پسې توگه په دې توانیـدلي، چې په داغستان، شیشان او منځنۍ اسیا کې د مسلمانانو پاځونونو د ډېرو تلفاتو له تحمل سره سره وځپي. دغه راز دوی په بیا بیا د شوروي په لراوبـر کـې د کمـونیزم خلاف پـاځونونو پـه مـاتولو هـم بریـالي شـوي وو، چـې لـه همـدې املـه دوی تـه د افغانستان اشغال او کنترول هم یو معمولي ماموریت او بوختیا ښکاریدله. خـو دا به په افغان اولس د الله تعالی ځانگړی مرحمت او د دې اولس د بې ساري ایثـار او قرباني برکت وبولو چې الله تعالی یـې د شـوروي نړیخـور لښـکر پـه وړانـدې پښـه ټینگه کړه، شورویانو دلتـه د مقاومـت مـاتولو خپلـې دودیـزې لارې لکـه (دمحلـي اجیرانـو اسـتخدام، پـوځي یرغـل، سـخت پـوځي فشـار او قسـاوت، اولـس جـبرا ډلییزمهاجرت ته اړ ایستل او نور) ټول وکارول، خو بیا یې هم د اشـغال خـوب اوبـو وړی ثابت شو.

د شوروي د یرغل په وړاندې افغان اولس چې له پخوایي د افغاني کمونیستانو په مقابل کې پاځون کړی و په بـې تـوپیره توگـه مقـدس جهـاد تـه مـلا وتړلـه او دا دروند مقاومت یې د څو کلونوپه اوږدو کې په پوره متانت د بریا تر منزله ورساوه. سره له دې چې د دې مقاومت د بریا بیه د افغان مجاهدینو لپاره خورا درنه وه خـو شوروي لښکرو ته هم په کې خورا درانه ځاني او مالي تلفات ورسیدل. د شـوروي د

ځلوېښتم لښکر یوه جنرال (محمود قارییف) په خپل کتاب کې په افغانستان کې د شورویانو د تلفاتو په اړه لیکلي دي: د افغانستان په جګړه کې د شوروي مجموعا ۱۴۴۵۳ کسان ووژل شول، چې له جملې یې ۱۳۸۳۳ تنه پوځیان ۵۷۲ تـه د کـي جـي بي کارمنـدان ۲۸ تنـه د وزارت داخلـې مربـوط پرسـونل او ٦٦٤ تنـه مشـاورین او ترجمانان وو.

د قارییف په خبره په دې جګړه کې د شورویانو ۴۹۹۸۳ تنـه ټپیـان شـوي دي چې له جملې یې ٦٦٦٩ تنه د تل لپاره معیوب شوي دي، دغه راز ۳۳۰ نفـره شـوروي پوځیان تراوسه د افغانستان په غرونو او درو کې نادرکه دي، چې شوروي حکومـت یې بیا د مرګ او ژوند هیڅ څرک نه دی لګولی.

د مالي تلفاتو په اړه قارییف وایي چې د افغـان مجاهـدینو پـه لاس د شـوروي ۱۰۳ ډول ډول الـوتکې ۳۱۷ چـورلکې ۱۴۷ ټانګونـه ۱۳۱۴ پـوځي مـوټر ۴۳۳ تـوپ ویشتونکي دستګاوې ۱۱۳۰۹ انجینیري وسائل ۱۱۳۹٦ مخـابراتي دسـتګاوې او ۱۱۳۸ نور بیلابیلې پوځي وسیلي او دستګاوې له منځه تللي دي.

پـه افغانسـتان کـې د شـوروی شکسـت چـې پـه تعقیـب یـې د (اتحـاد جماهیرشوروي) په نامه شوروي امپراطوري هـم ونړیـده د شـلمې پیـړۍ یـو مهـم رویداد و، چې په نړیواله سطحه یې تـاریخ او جغرافیـې تـه اساسي تغیـر ورکـړ. د شوروي د سقوط په پایله کې د وارسا پکټ له منځه لاړ، سړه جګړه پای ته ورسـېده، په منځنۍ اسیا او ختیځه اروپا کې ګڼ شمیر جمهوریتونو خپلواکي ترلاسه کـړه، د برلین دیوال ونړید او په روسیه کې کمونیزم د تاریخ برخه وګرځېد.

قصص الاولین مواعظ للآ خرین

هوښیاران وایي (د تیرو نکلونه د وروستنیو لپاره پندونه دي) مـوږ نـن سـبا د شوروي د تیښتې۲۳مه کلیزه په داسې مهال لمانځو، چې په هیواد مو یوه بل نړیوال





اشغالګر هجوم راوړی او له تیرو لسوکلونو راپدیخوا یې زموږ ولس او خاوره اشـغال کړې ده. دا اشغالګر کوم ناشناخته او نامتعارف ځواک نه دی، بلکـې هغـه امریکـا ده چې د افغانانو په لاس د شوروي ترماتې وړانـدې یـې د قطبـي خـرس پـه خـوا د سترګو اړولو جرأت هم نه درلود، په داسې حال کې چـې شـورویانو ورتـه پـه لاتینـه امریکا کې په پله پسې توګه تربـوران پالـل، اوسـنۍ امریکـا څـو لسـیزې د دریمـې نړیوالې جګړې د پیل کیدو له ویـرې ګېڼـې نیـولې وه او د شـورویانو ټـولې خـاطر تیزۍ یې په مړو سترګو زغملې.

خوکله چې د افغان د وینو دریاب د شوروي بیړۍ ډوبه کړه او په پایله کې یې نړۍ یو قطبي شوه، لـه امریکـا څخـه د لسـیزو ګېڼـې هـم پورتـه شـوه او پـه پـوره نامردۍ یې تر ټولو لومړی په هغه اولس سترګې وربرګـې کـړې، چـې د ټـولې نـړۍ غوندې یې امریکا هم د کمونیزم له وحشي پدیدې څه په امن کړې وه.

نن افغانستان د امریکا له خوا اشغال دی، خو د تیرو لسوکلونو په اوږدو کې د افغان اولس د بې ساري جهاد او مقاومت په برکت امریکا د عـروج څوکـه وهلـې او اوس بیرته د نزول په خوا مقدر پړاو لنډوي. نن سبا د افغانستان مسئله او دلتـه د امریکایانو د حضور موضوع پـه یـوه نړیـوال بحـث اوښـتې، لـه نړیوالـو مطبوعـاتو رانیولې، د افغانستان او امریکا د اولسونو ترعمومي مجالسو پورې هر څوک پـه دې اړه خپل خپل نظریات وړاندي کوي.

د بحث مهم ټکی دا دی چې آیا امریکا بـه لـه افغانسـتانه ووځـي او کنـه؟ د امریکا حکومت چې د پاڼ او پړانګ ترمنځ ګیر ښکاري هم په دې اړه واضح څـه نـه وایي، کله وایي په ۲۰۱۴ میلادي کال کې به سرتیري وباسي او کلـه بیـا وایـي چـې د اوږده مهال لپاره به په افغانستان کې له خپلو لاسته راوړنو (!) دفاع وکړي.

د دا ډول شکونو او بحثونو د یوطرفه کولو لپاره به مناسبه وي، چې د شورویانو د فضیحت د ۲۳ مې کلیزې په مناسبت په لوړ عربي متل استدلال وکړو چې (قصص الاولین مواعظ للآخرین) د تیرو شویو کیسې د راتلونکو لپاره ګټور پندونه دي. د افغانستان اوسني اشغالګر که د ځان پردې غواړي، نو ورته په کار ده چې لږ د جغرافیې د هوس (جوع الارض) پاللو سره په څنګ کې د تاریخ مطالعه هم وکړي. دوی دې ووینې چې شورویان څنګه دلته راغلل، څه یې وکړل او بیا په څه حالت کې د دې وطن په پرېښودلو اړ شول.

که واقعیت ته وګورو په افغانستان کې د بریالیتوب لپاره د شورویانو طرح او ستراتیژي د امریکا په نسبت په مراتبو پخه او کانګریټي وه، هغوی دلته څو لسیزې فکري، سیاسي، تبلیغاتی او استخباراتي کار کړی و. د افغانستان د حساب وړ نفوس یې د متعهد دوست په توګه له ځانه سره درلود، له افغانستان سره یې اوږده پوله درلوده، د افغانستان په تعلیمي او امنیتي لیکو کې یې ژور او اساسي نفوذ درلود، له افغانستان سره یې دقیق کلتوري، فکري او اقتصادي روابط او تعارف درلودل، چې په مقابل کې یې امریکا دا هیڅ هم نه لري او خپل اجیران یې په دې خاوره د پراشوټ له لارې پیاده کړی دي.

په پای کې دایادونه اړینه بولو چې که امریکا او امریکا خپل د (دلوې ۲٦) دې معنې دارې نیتې ته په مهم نظر ونه ګوري او څه تري زده نه کړي، نو ښایي د فطرت هغه قانون پرې تطبیق شي چې وایي (څوک چې له پخوانیو عبرت وانه خلي، ضرور به د وروستنیو لپاره په خپله عبرت شي)

پای





## شپږم فصل ـــ تبلیغاتي یرغل او رسنیز جهاد

- پر طلوع برید ولې دښمنان وبوږنول؟
- جان آقا الکوزیه!
- له څرک مجلې سره یوولس کلنه یارانه
- طالب او بي بي سي
- موږ د دښمن د تبلیغاتي جنګ قربانیان
- شیطاني رسنۍ و پیژنئ!
- د تبلیغاتي جنګ نوې څپه
- آنلاین دولتي تروریزم

## پر طلوع برید ولې دښمنان وبوږنول؟

۲۵/ جنوري/۲۰۱٦ میلادي

د روان ۲۰۱٦ میلادي کال د جنورۍ په شلمه مازدیګر څه باندې پنځه بجې د اسلامي امارت د استشهادي کنډک یوه قهرمان فدایي مجاهد د پلازمینې کابل په جنوب لویدیځ ځنډه کې د روسیې سفارت ته نږدې د طلوع نیوز اړوند د کابورا پروډکشن د کارکوونکو په کاسټر موټر فدایي برید وکړ چې په نتیجه کې یې یو پولیس او ۷ تنه د طلوع نیوز کارکوونکي ووژل شول او لسګونه نور ټپیان شول.

طلوع نیوز په افغانستان کې د موبي ګروپ په نوم د یوه پراخ رسنیز شرکت اړوند ټیلویزوني چینل دی، موبي ګروپ چې د یوه افغاني الاصله استرالیایي سعد محسني لخوا رهبري کیږي په افغانستان کې تر ټولو ستر رسنیز شرکت بلل کیږي، چې د طلوع، طلوع نیوز او لمر په نامه ټیلویزوني شبکې، د ارمان او اراکوزیا په نومونو راډیویي خپرونې او کابورا پروډکشن په نوم د بهرنیو فلمونو د دوبلاژ / ژباړې شبکې لري.

موبي ګروپ چې په افغانستان کې د غرب د فکري او فرهنګي یرغل د پرمخ بیولو لپاره جوړ او طراحي شوی دی، د امریکا، انګلیس، استرالیا، فرانسې او نورو کفري هیوادونو تحت الحمایه یو قوي او د پراخو مالي امکاناتو درلودونکی سازمان دی، موبي ګروپ چې مخامخ له امریکایي سفارت څخه اکمالیږي او قومنده اخلي تر واک لاندې رسنیزې شبکې یې یوازې هغه څه خپروي چې د غربیانو لخوا ورته القاء کیږي.





موبي ګروب او د طلوع نیوز غونډې تر واک لاندې شبکې یې دومره ځواکمني دي چې حتی د ارګ او ګوډاګي حکومت د چارواکو هم زور نه پرې رسیږي، له تیرو څوارلسو کلونو راهیسې دغه شبکې تخریب کارانه فعالیت کوي، له فضل هادي شینواري نیولې، تر کریم خرم، سیاف، کرزي، صبغت الله مجددي، قیام الدین کشاف او ډېرو چارواکو پورې حکومتي لوړپوړو بیا بیا په څرګنده په دې شبکه اعتراضونه کړي، د هغو خپرونې یې زیان اړونکي بللې خو هیڅ یو هم نه دی توانیدلی چې د طلوع د خودسرۍ په مخکې ودریږي یا یې خپرونې تر یوه حده سانسور کړي، چې د دې ټولې خودسرۍ او بیباکۍ علت یې هماغه د غربیانو ځواکمن ملاتړ او ورسره نږدې تعلقات دي.

طلوع نیوز چې په بیلابیلو برخو کې یې افغانستان او مجاهد اولس ته پراخ فرهنګي او درانه زیانونه اړولي، د اسلامي احکامو د توهین او تمسخر هڅه یې کړې، د افغاني هویت او درنښت د کمرنګه کولو او ټیټ ښودلو لپاره یې کمپاین کړی، د ملي وحدت د نړولو زیار یې ایستلی، د روان جهاد او مجاهدینو په خلاف یې تر ټولو زهرجن تبلیغات کړي، د فحشاء، فسق، اختلاط، بي حیایي، بي سترۍ، ډمتوب، قمار، زنا، لواطت، سود، ارتداد او دغسې نورو ناروا کړنو د ترویج لپاره یې پراخ کمپاین کړی له ډېره وخته داسې تقاضا موجوده وه چې اسلامي امارت یې باید په وړاندې یو جدي او قاطع دریځ ونیسي او له روانو بیباکانه کړنو یې راوګرځوي.

بالاخره نږدې درې میاشتې وړاندې د اسلامي امارت نظامي کمیسیون لخوا د یوې اعلامیه په خپرولو سره طلوع او د یک ټي وي په نوم تیلویزوني شبکې د مجاهدینو په نظامي اهدافو کې شاملې او رسما ورته اخطار ورکړل شو.

د جنوری په شلمه په طلوع نیوز له برید وروسته په ټولنیزو شبکو کې افغانانو او د نړی مسلمانانو د مجاهدینو دغه اقدام په پراخه کچه وستایه او هغه یي د اسلامي فرهنګ او فکر د ساتنې په لاره کې یوموجه او ضروري اقدام وباله.

بالمقابل په نړیواله کچه خصوصا په کفري عالم کې د طلوع نیوز سره د خواخوږۍ او همبستګۍ یو داسې کمپاین پیل شو چې هیڅ تمه یې نه کیدله، د نړۍ نږدې ټولو کفري هیوادونو او سازمانونو په طلوع نیوز برید وغانده.

د فرانسې حکومت، د امریکا حکومت، د یونسکو سازمان، د بي سرحده خبریالانو سازمان، د ملل متحد امنیت شورا او داسې نورو سازمانونو په لوړه سطحه په دې اړوند غبرګون وښود. د غربي فکري مراکزو او د لادینیت د ترویج مؤسساتو په طلوع برید د بیان په آزادۍ برید وباله او سخت غبرګون یې پرې وښود، د کابل ګوډاګي واکمن اشرف غنی وویل چې پر طلوع برید د افغانستان په اساسي قانون برید دی، مطلب دا چې هغه څه چې طلوع یې خپروي د ده دحکومت د اساسي قانون سره برابر دي او کلکه ننګه یي کوي.

دې ټول جریان جوته کړه، چې طلوع کوم عادي ټیلویزیوني شبکه نه بلکې د غرب د نړیوال فکری یرغل یوه اساسي اود حساب وړ مهره ده نو ځکه یې ملاتړ او غمرازۍ ته ټوله کفري نړۍ په داسې اتفاق رادانګي.

له طلوع سره د کفارو دغه ډول ملاتړ دا خبره ثابتوي، چې په افغانستان کې موجودې رسنۍ باید له سره وپیژندل شي، له سره تعریف او هویت یي تحلیل شي. دا رسنۍ په اصل کې رسنۍ نه بلکې لکه څنګه چې د اسلامي امارت ویاند مجاهد صاحب څرګنده کړې استخباراتي شبکي دي چې کنټرول یي د دښمنو هیوادونو د استخباراتو په لاس کې دی.





تر دې پخوا مجاهدینو د دښمن په مختلفو اماکنو او مراکزو بریدونه کړي، د باګرام اډه، د امریکا سفارت، په اریانا هوټل کې د سي آی اې مرکز، د آیساف قومنداني او دغسې نور ګڼ حساس مراکز یي په نښه کړي، خو د یوه په اړه هم غربیانو دومره توند عکس العمل نه دی ظاهر کړی. مګر دا چې په طلوع د برید په اړه دومره توند عکس العمل ظاهروي، معلومیږي چې مجاهدینو دا ځل د دوی تر ټولو حساس رګ ته لاس وروړی، د دوی په تر ټولو مهمه او د حساب وړ نکته یې برید کړی او هدف یي په ښه ډول تشخیص کړی دی.

د طلوع په ننګه د کفري نړۍ دریدل او توند غبرګون اظهارول د طلوع نیوز، یک ټي وي او دغسې نورو شبکو چې ظاهرا د رسنیو تر نوم لاندې فعالیت کوي، هویت او ماهیت نور هم بربنډوي او له کفري جهتونو سره د دوی ټینګ او نږدې تړاو څرګندوي.

زموږ ټولنه باید دغه شبکې وپیژني، د دوی له لیدلو او خبرو منلو څخه ځان وساتي، دوی ته باید د دښمنو تبلیغاتي رسنیو په نظر وګوري او د له منځه وړلو او بي اعتباره کولو لپاره یي ټولې ممکنه هڅې په کار واچوي.

له کفري رسنیو د پاک او محفوظ افغانستان په هیله

# جان آقا الكوزيه!

۱۵/ سپتمبر/۲۰۱۵

د مړینې له حادثې دې خبر شوم، خو باور وکړه دعاء مې درته په خوله رانغله، پوهيږم چې د عنوان تر حده هم مسلمان وې او هم افغان، خو د عمل په ډگر کې دې نه راسره اسلام وپاله او نه افغانيت.

الكوزى صيب!

هغه شپې مې په ياد دي، چې امريكايي الوتكو زموږ په ختيځو كليو غومبرونه وهل، شپې مهال به مو له ډاره د تيلو څراغونه تت ساتل، چې هسې نه د امريكايي الوتكو تر بريد لاندې راشو، خو د يرغل د پيل په همدې غومبريزو شپو كې مې په لومړي ځل د آزادۍ له راډيو ستا غږ واورېد.

له هماغې شيبې دا دې څوارلس كاله پوره كيدونكي دي، ستاسو رسا او نافذ غږ مې هميشه اوريدلى، په مايک چلولو او نطاقۍ ستاسو حاكميت مې هميشه حس كړى، خو ورسره مې ستاسو لخوا د امريكايي تبليغاتي زهرو تراخه غړپونه هم تېر كړي دي، مگر له دې سره سره مې تل دا ارمان كړى چې كاشكې د اسلام او افغانيت د كاله د دې بچوړي رسا غږ خو د شيطان په ځاى د رحمان په لاره كې استعمال شوى واى، كاش چې دې طلايي حنجرې خو د باطل په ځاى د حق اواز زمزمه كړى واى... كاش... او كاش.

مگر ستاسو د ناڅاپي مرگ حادثې په ډاگه كړه چې زما هغه خواهش پوره نه شو، تاسو د ژوند تر وروستۍ سلگۍ د امريكايي طاغوت په تبليغاتي خدمت كې





پاته شوى او په پاى كې مو بې روحه جسد هم د كفر د فكري جگړې له سنگره پورته شو.

الكوزى صيب! شايد تاسو به اميد درلود، چې د امريكايي كفر د تبليغاتي خدمت په ترسره كولو سره به د امريكا تابعيت او گرين كارت ترلاسه كړم، شايد تاسو گرين كارت ترلاسه كړى هم وي، مگر د دې په ځاى چې له غريبې چكسلواكيا څخه خپل د پرديسۍ ژوند د امريكا په مرفه ژوند بدل كړئ، ناڅاپه داسې لوري ته مسافر شوئ چې هلته گرين كارت نه چليږي.

رښتيا هم، په قبر، ميدان حشر، حساب او ميزان او پل صراط باندې گرين كارت او امريكايي آډنټي كارټ په درد نه خوري، هلته يوازې د مسلمانۍ كارت چليږي او د خپلو اعمالو تذكره.

الكوزى صاحب! تاسو بختور واست چې الله تعالى د ننگرهار په يوه مسلمان متعهده كورنۍ كې دنيا ته راوستلئ، مگر تاسو خپل بخت په لغته وواهه، پيدا الله تعالى كړې مگر تاسو امريكا ته د عبوديت سر ښكته كړ، رازق مو الله تعالى و، مگر تاسو د آزادې اروپا په راډيو كې د كانگريس لخوا تصويبيدونكو ډالرو ته خوله ونيوله. د سپتمبر له يوولسمې وروسته د امريكايي طاغوت د استدراجي ظالمانه توپان په رالوتو سره مو ټول انساني او اسلامي اقدار او سرې كرښې هيرې كړې، خپل ټول اصل او نسب ته مو شا كړه، او يوازې هغه څه مو د كولو وړ وبلل چې معاصر لوى شيطان مسټر بوش فرمايل.

هوكې، موږ ټول پوهيږو چې آزادي راډيو د امريكا يرغليزه راډيو ده، چې د هر هيواد لكه افغانستان او عراق غوندې ملكونو لپاره د امريكا د پوځي يرغل د تبليغاتي پشتوانې لپاره جوړيږي او استخداميږي.

نه پوهيږو تا او ستا انډيوالو کومې ليونۍ اوبه څښلې چې خپله ديني او افغاني لاره مو ورکه کړې، د دې په ځای چې د خپل دين حق اداء کړئ، د بې دينۍ لپاره مو پراګ ته کډې وکړې، د دې په ځای چې خپل شرقي خاصيت وساتئ د غرب چوپړ ته مو عمرونه وقف کړل، پر ځای د دې چې د افغانستان د مصرف کړيو اوبو، خوراک او اکسيجن حق اداء کړئ د افغانستان د دښمنانو او خپلواکۍ خوړونکو په سنګر کې ودريدئ.

نه پوهيږم له دغه موقف نيولو او دغې بدنامۍ لارې له اختيارولو ستاسو هدف څه دی؟

معلومه ده چې له دې لارې خو د آخروي اجر، جنت او د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم د راضي کولو تمه نه شئ کولئ، بلکې تاسو هم باور لرئ چې غوره کړې لاره مو له دغو ټولو سترو موخو سره په تضاد کې ده، نو معلومه شوه چې اهداف مو دنيوي او نفساني دي.

په دنيا کې مو که هدف يوازې د رزق پيدا کول وي، نو هغه خو له دغې خطرناکې او دين دښمنې لارې پرته هم امکان لري، الله تعالی چې دغه څه کم اوه ملياردە انسانان او په بلياردونو حيوانات او حشراتو ته رزق ورکولای شي آيا تاسو ته به يې درنکړي؟ دا دی عملا وينئ چې زياتره افغانان د امريکا له مرداريو پرته په حلال رزق ژوند کوي او الله تعالی يې ورته مهيا کوي.

که هدف مو د خپل ځان او خپلو اولادونو آرام او نيکنام ژوند وي، نو دغه هدف خو مو لا اوس بايللی دی، تاسو چې په ۵۷ کلنۍ کې لا ارام نلرئ، د اروپا په نيمه شپه د خپرونو لپاره پاڅيږئ، او د کهالت په دې سن کې هم لا د امريکا په در قبول شوي نه ياست، لا هم بايد د ګرين کارت لپاره څوکاله سخته دنده وکړئ تر څو تقاعد او ګرين کارت درکړل شي، نو ژوند خو همدا دی چې دربانديې تېر شو،





ستاسو د نورو همکارانو لپاره تر ټولو ښه مثال تاسو ياست، چې څرنګه مو د امريکايي ګرين کارت او د تقاعد د حقوقو ارمان له ځان سره ګور ته يووړ، مرګ همداسې ناڅاپه راځي او ژوند همداسې نيمګړی دی.

که له تاسو سره د خپل د نسل او اولادونو غم وي، نو په ډاډ به درته ووايم چې دغه اولادونو مو چې تاسو يې د راتلونکې لپاره ځانونه د کفر لمنې ته غورځولي، سر له اوسه يې خپل اولادونه مه بولئ.

که ستاسو هويت اسلام، افغانيت او پښتونولي وي، نو اولادونو مو لا له اوسه له دغو ارزښتونو خلاص دي، هغه چې د غرب په چاپيريال کې لوی شي، په غربي ژبو زده کړه وکړي، غربي رواجونه، ارزښتونه، کلتوري، فکري، ديني او ټولنيز چاپيريال يې د شخصيت تدوين او تکوين وکړي، له هغه به بيا کوم لوده د افغانيت او مسلمانۍ تمه ولرې؟ د هغوی به لومړی نسل ژبه او خپل عنعنات هيروي او دوهم به يې له عقيدې هم لاس مينځي او رسما به له خپل اصلي هويت نه انکار ته ملا تړي، تاسو په امريکا کې ليدلی شئ، چې هلته څومره هويتونه ذوب شوي دي، دا تمه مه کوئ چې دغه غرب ځپلي اولادونه به مو بيا په سپين ږيرتوب کې د پلارولۍ حق اداء کوي، هغوی مو چې د سپين ږيرو پالنځي ته امانت وسپاري هم ورته خوشاله اوسئ.

الکوزی صېب!

ژوند بايد د هدف لپاره وي د داسې هدف لپاره چې په دومره سترې ژوند وارزي، نه پوهيږم هغه کوم هدف دی چې ستاسو غوندې له خپل هويته پردي شوي يې د ترلاسه کولو لپاره منډې ترړې وهي.

د افغانستان او عراق د جګړو غوندې په درسته اسلامي نړۍ د غرب پوځي، فکري، اقتصادي او تبليغاتي يرغل چې له دوه نيمو پيړيو په مختلفو اشکالو را روان

دی، داد دين او بي دينۍ جګړه ده، دا د غرب او شرق جګړه ده، داد دموکراسۍ او اسلامي نظام جګړه ده او دا په محلي سطحه د بيلګې پـه توګـه د افغـاني هويـت او ويسټرنايزيشن جګړه ده. د غرب لخوا د دې جګړې متصديان، ګټونکي او بـايلونکي غربي بي دينه استعمارچيان او اقتصادي خوګان دي، نه پوهيږم تاسو له کومې خـوا په دې اشر کې راغورځيدلي ياسـت؟ نـه پـوهيږم تاسـو چـې د اسـلام، افغانيـت او شرقيتوب ادعاء هم لرئ، د غرب له يرغل سره مو کومه خپلوي او مناسبت دی؟ او بالاخره که دا جګړه غرب وګټي يا يې وبايلي تاسو ته کوم څه په لاس درځي؟

که زما منئ لږ خپلو ګريوانو ته سرونه ښکته کړئ، لږ خپل موقعيـت او دريـځ درک کړئ. په دې جګړه کې له تاسـو يـوازې د مصرـفي مـوادو پـه حيـث اسـتفاده کيږي. زما يقين دی چې غربي بي دينـان بـه تـر خپلـو منځـو ستاسـو پـه حماقـت خاندي. آيا تر اوسه مو يو غربي بي دينه يا عيسوی ليدلی دی چې د مسـلمانانو پـه ننګه د لويديځ په خلاف جنګيدلی وي؟ باور مې دی چې دغسې بيلګه به د اسلام او عيسويت د تصادم په څوارلس سوه کليز تسلسل کې هم پيدا نه کړئ.

نو الکوزی صيب او د ده غوندې د امريکايي کفر چوپړمارانو!

په باور سره درته ويلی شم چې تاسو په پردۍ جګړه کې بوخـت ياسـت، تاسـو په يوه داسې لاره روان ياست چې په دنياوي لحـاظ يـوازې بي دينـه، بي ارزښـته او سترې ژوند درکوي او په اخروي لحاظ مو مستقيما د کفارو په صف کې راپـاڅوي. ځکه په قيامت کې به هر څوک په هغه ډله کې راپاڅي چې پـه دنيـا کـې يـې د چـا شمير ډير کړی وي.

نو جنابانو!

دنيا به تيره شي، دا پنځوس يا اويا کاله عمر دی په تاسو او ټولو بـه تيـر شي، قيامت به شي امريکا او دبدبه به يې ټول نيست او نابود شي، مګر له تاسو سره به د





قيامت په ورځ يوازې هغه اعمال ملګري وي چې په دنيا کې مو کړي دي، په آخـرت کې به نه ګرين کارت په ښمر درشي نه هم د امريکا سره کاري خدمت.

بلکې د جارج بوش، او ټوني بلير غوندې د کفر د مشرانو شـناخت او ملګرتيـا به مو د غاړې طوق وي، ښکته به ورباندې ګورئ او همدغه لار به مو په پای کې لـه الهي مجازات سره مخ کوي.

نو لږ په ځان رحم وکړئ او د امريکا د ګټو لپاره خپل آخرت مه تباه کوئ.

## له څرک مجلې سره یوولس کلنه یارانه

٨/ فبروري/٢٠١٥

شوق او علاقه هم عجیب شی دی چې کله خو بیخي په سړي نخرې کـوي. د الله تعالی تقدیر دی چې زما په خټه کې یې له مطبوعاتوپه تیره له مجلو، ورځپاڼو او نورو چاپي نشریو سره شوق اېښی دی، دا شوق مې لومړی هغه مهال پیـدا شـو چې په ماشومتوب کې دماما په کور کې د یوه زاړه اخبار پـه کلکسـیون واوښـتم، د ماما کره د یوې شپې په نیت تللی وم، خو د زړو اخبارونو مطالعې داسې مصروف کړم، چې په ناخبرۍ کې مې درې شپې وکړې.

د طالبانو د حکومت په مهال چې ماشوم وم د پکتیا ولایت پـه مرکـز ګردیـز کې مې زده کړې کولې، د بلال بن رباح دارالحفاظ ته به کله ناکلـه شریعـت اخبـار راتلو، اخبار به په اداره کې پروت و، خو زما به ورته داسې تلوسه وه لکه د تږي چې اوبو ته وي، هسې په بهانه به مې کوښښ کاوه چې اداري تـه ورشـم اواخبـار راغلا کړم، الله تعالی مې دي نه ازمويي خو چې خپل ځان ته ګورم که څوک راته د پیسو بنډلونه هم پریږدي غلا به يي نه کړم، خو که چیرته کومه نایابه مجله یـا اخبـار پـه لاس راغی کیدای شي تر خپله وسه یې د ځان کولو هڅه وکړم.

د اخبار سره د هغه مهال مینې ته چې اوس سوچ کـوم بیخـي د لیونتـوب تـر حده وه، که په بازار کې بـه مـې د اخبـار ټوټـه پیـدا کـړه نـو دوړې بـه مـې ځینـي وڅنډلې او په جیب کې به مې کیښود ترڅو یې په مناسب فرصت ولولم، زما د یـوه هم صنفي پلار په بازار کې دوکان درلود، چې هره اونۍ ورته اخبار راتلو، لـه هماغـه





همصنفي سره مې یوازې د همدې اخبار لپاره اشنایي تـوده کـړې وه، چـې لـه خپـل دوکانه به یې اخبار راته راووړ. خیر له اخبار او مجلې سره د لیـونۍ مینـې کیسـې دومره زیاتې دي چې که ټولې لیکم شاید دا مطلب ډیر اوږد شي دلته به یـوازې لـه څرک مجلې سره د خپلې یارانې کیسه درسره شریکه کړم.

امریکایـانو پـه افغانسـتان یرغـل وکـړ او د طالبـانو حکومـت یـې ونـړاوه، د امریکایانو له یرغل څو میاشتې وروسته د ولایـت مرکـز تـه لاړم، څـه ګـورم چـې د بازار په څنډو کې د (نی) په نامه غرفې جوړې شوي او دلۍ دلۍ اخبارونه او مجلې په کې پرتې دي، د مجلو په لیدلو مې ځانګړې خوښي احساس کړه، د کلید، ملالۍ، روز، هفته نامه کابل، صبا، پرواز، زنبیل غـم او پـه ډیـرو نـورو نومونـو اخبارونـه او مجلې مې رانیول، خو چې مې وکتل له یوې مخې له اشغالګرانه تبلیغاتو، عریانۍ او نورو اسلام ضد مطـالبو ډک وو، مجلـې ښـې ډیـزاین شـوي او اوډل شـوي وې، خـو منځپانګه یې داسې زهرجنه وه، چې چاته په ښودلو او حتی په کور کې په ساتلو یـې شرمیدلم.

په دې مرحله کې که څه هم هرځای کتابخـانې لـه اخبـارونو او چـاپي نشـریو ډکـې وې، تـر دې چـې امریکایـانو بـه د صـلح او پخلاینـې پـه نامـه اخبـار مفـت تقسیمولو، خو په دې ټولو مطبوعاتو کې یـوه نشـریه هـم داسـې نـه وه چـې د کـوم رښتیني مؤمن او متعهد فرهنګپال تنده یې خړوبه کړې وای.

زما په شان ددیني او ملي معیاري مطبوعاتو تږي مینـه وال د اشـغال راوړیـو مطبوعاتو د دریاب په غاړه همداسې تږي پاته وو، چې نه خو یې د حق شعار بدرګـه کوونکې کومه مجله یا کتاب موندلی شو او نه یې له غرېړو او تصویري رسنیو دغـه تنده خړوبولای شوای.

رښتيا هم د اشغال د پيل کلونه سخته مرحله وه، نړيوال کفري ايتلاف په خورا غرور او ليونتوب کې و، هر څه يو اړخيز و او د مخالف هيڅ غږ برداشت يې نه درلود، راډيوگانو، اخبارونو او نورو رسنيو ټولو د بوش او بلير مدحيې خپرولې. په اشغال راوړيو موسمي رسنيو سربيره زمونږ د هيواد او سيمي زياتره هغه رسنۍ او ليکوالان چې ځانونه يي متعهد بلل او د اسلامپالنې او ژمنتيا ډېرې يې په سينه ټکولې هغوی هم قبلې بدلې کړې، د زور، زرو او تزوير په وړاندې يي د ژمنتيا پښې ولړزيدې تردې چې په پای کې د غرب د تبليغاتي يرغل په اتڼ ورگډ شول او ښه يې قلمونه په کې وڅرخول.

دا مهال نو د هر اخبار، مجلې، نشريې او هر ليکوال د ليکنې سروکی همدا وو چې: نړيوال مرستندويان، سوله ساتي ځواکونه، طالب ترهگر، د طالبانو پاتي شوني، د طالبانو کرغيړن دور، جلالت مآب حامدخان کرزی او محترم جورج ډبليو بوش او داسې نور ويوکي چې د متعهدو او په وطن ستي فرهنگپالو په زړونو د غشو غوندې وتل.

په داسې تپه توره شپه کې چې ترورېميو له څلورو خواوو هجوم راوړی وي، هر څوک په شبکورۍ محکوم او د رڼا په وړاندې د تيارو استازو سرتاسري ايتلاف کړی وي، تاسو خپله پوهيږئ چې د رڼا د مينانو او د لمر څرک د ترږو تلوسه به تر کومه حده ليونۍ او اوج ته رسيدلي وي.

زه او زما په شان د معياري او حقاني ژورناليزم مينان د ۲۰۰۴ م کال په لومړيو کې په همداسې حالت کې گير وو، له يوې خوا له مطبوعاتو سره ژوره علاقه وه له بلې خوا د يرغلگرو دروغجن او زهرجن مطبوعاتي هجوم و چې د مؤمنو فرهنگپالو په زخمونو يي مالگې دوړولې، د مطبوعاتي اختناق همدا د اوج شيبې وې چې يوه ورځ مې د مدرسې د يوه طالب په لاس کې په څرک مجلې سترگې ولگېدې.





هو کې، څرک د مطبوعاتي تورتم په اوج کې لومړنی څرک وهلی و، داسې څرک چې په لومړنيو شغلو يې د دروغجنو خفاشانو سترگې ړندولې او د حق او حقيقت ترږيو ته يې د سترگو ځلا وربښله، د يرغليز اختناق په همدې تورتم کې څرک زما په شمول د ډېرو سترگو ته ځلا ورکړه، ډېرو لوستونکو او د مطالعې مينوالو د څرک په رڼا لار وموندله، تردې چې د دښمن د گمراه کوونکو تبليغاتو او تزويرونو له شر څخه په امن پاته شول، د اشغال او استعمار اهدف يې وپيژندل او په مقابل کې يي د مبارزې او جهاد ډگر ته وړاندې شول.

د مدرسې له طالب څخه مې څرک مجله د مطالعې لپاره واخيسته، نه پوهيږم لومړنۍ که دوهمه گڼه وه، ځيني عنوانونه مې يي اوس هم ياد دي، يو عنوان يې داوه: خالصه بيا دې خدای زلمی کړه. دغسې نور په زړه پورې جهادي، علمي او دعوتي مطالب په کې و، مجله مې په داسې تلوسه لوسته لکه کومه ورکه مې چې موندلې وي، له هماغه وخته مې له څرک سره د مينې تار واچاوه، سره له دې چې د ترلاسه کولو کوم ټاکلی ادرس يي راته معلوم نه و، خو له مختلفو لارو او تپ و تلاش نه په استفاده مې هڅه کوله چې دغه ښايسته مياشتنۍ مجله ترلاسه او خپل ادبي تنده ورباندې ماته کړم.

يو وخت د ولايت په مرکز (گرديز) کې يوه کتابتون ته لاړم، کتابتون له حکومتي او يرغل راوړيو مجلو او نشريو ډک و، مجلې مې په لټ په لټ اړولې خو خوند يي نه راکاوه، د کتاب خرڅوونکي راته فکر شو، لاندې باندې يي راته وکتل، له ډيرې، جامو او نورو مشخصاتو يي وپيژندلم چې طالب دی، پرته له دې چې څه ووايي د ميز لاندې يي لاس دننه کړ او د څرک مجلې تازه گڼه يي راوايسته، مخې ته يي راته ونيوه او ويې ويل: واخله ملاصاحب!

ما چې مجله وليده سمدستي مې د قيمت پوښتنه ترې وکړه او مجله مې واخيسته، پوښتنه مې ترې وکړه چې آيا تاسو دا مجلې هميشه خرڅوئ، دوکاندار چې ډېر محتاط و، راته وويل موږ يې پټې خرڅوو، دلته راځي خو موږ يې پټې ساتو، مراجعينو ته گورو او داسې څوک چې پوهيږو له داسې مجلې سره علاقه لري يوازې هغوی ته يې ښکاره کوو او اوس د دې مجلې همدغه ځانگړي خريداران پرې اموخته شوي او له موږ څخه يې وړي.

څرک مې پرلپسې لوسته چې په گټورو معلوماتو او فکري روښانتيا سربيره يې د ليکوالۍ او فرهنگپالۍ شوق هم را کې وپنځاوه، يو وخت مې دا ارمان و چې کاشکې مې کوم شعر يا ليکنه په دې مجله کې چاپ شوي وای، مجلې ته مې په يوه ادرس شعر ورواستاوه پرته له ځنډه په کې چاپ شو، له دې وروسته مې دڅرک له کارکوونکو سره د ليدلو او همکارۍ تلوسه وه او بيا مې الله تعالی هغه ارمان هم پوره کړ، هغه ورځ مې تراوسه په ياد ده، چې د يوه ملگري د را ليکلي ادرس له مخې له گڼې گوڼې ډک ښار کې د څرک په مخفي ادرس پسې گرځيدم، څو ځايه مې بازاري ترانسپورت بدل کړ، له ډکو سرکونه او تنگو کوڅو تير شوم، د يوه پله په سر ودريدم، څلورو خواوو ته مې وکتل، خو لوری رانه ورک و، زه چې د ويرې او شوق احساساتو اخيستی او په يوه مخفي هدف پسې لالهانده وم ځان راته د نسيم حجازي د تروږمۍ مسافر د داستان اتل ايسيدو، هغه چې د غرناطې په اشغال شوي ښار کې، د ډار او خطر له احساس سره له البسين مسجد څخه راوځي او د مجاهدينو په مخفي ادرس پسې کوڅې او لارې پل کوي.

بالاخره مې د څرک پټ دفتر وموند، يوه تياره کوټه چې تنگې کوڅې ته يې کړکۍ او دروازه وتلې وه، په کوټه کې يوه ميز، يوکمپيوتر او ورسره دوه څوکۍ ايښې وې، په څوکيو دوه تنه ځوان فرهنگي مجاهدين ناست و، زه داسې مهال





ورغلم چې يوه ورته ليکنه لوسته او دوهم تن يې په کمپوز بوخت و، همدا ورک او گمنام فرهنگي مورچل د څرک مطلع و، همدې مجاهدينو د مطبوعاتي تکتيم په اوج کې د جهاد او استقلال غږ پورته کړی و، همدوی او څو نورو گوتشمير ملگرو يې د يرغلگرو نړيوال رعب او دهشت مسخره کړی او په ډاگه يې د حق او حقانيت چيغه بدرگه کړې وه.

څرک سره له دې چې په امتحاني حالاتو کې يې څرک وهلی و او له بيلابيلو، موانعو، ستونزو او ابتلاوو سره يې ډغرې وهلې، تر دې چې څو ځله له خطراتو سره مخامخ شوه خو دا دی د يرغلگرو د تيښتې ترمهاله يې خپل متين گامونه جاري وساتل او ساه يې سترې نه شوه.

څرک مجلې تر يوې لسيزې د اوږده او پيوسته سفر له امله زموږ د هيواد په تاريخ د يوې ثابتې او نه هيردونکې نشريې په حيث ځان ثبت کړ، دا مجله لکه څومره چې د محتوی د افاديت او اهميت له اړخه کمسارې ده، د امکاناتو نشتوالي او د ظروفو تنگوالي ته په پام سره يې استقامت او تداوم هم تر يوې ژورناليستکي حماسې کم نه شي گڼل کيدای.

څرک په شاوخوا دوولس کلن بهير کې په هيواد او اسلامي امت د راغلي تر ټولو سختو حالاتو عيني تصوير نه يوازې کتونکو ته وړاندې کړ، بلکې د دې زمانې ژوندی انځور يې د راتلونکو نسلونو لپاره هم خوندي کړ. څرک د اشغال شوي اولس د آزادۍ او حريت چيغې بدرگه کړه، څرک د کلستر او ډيزي کټر بمونو په درزهار کې خپ شويو ځگيرويو ته آزانگه ورکړه، څرک د يوه سرلوړي خو يرغمل شوي اولس د جهاد او سرلوړۍ چيغه ورکېدو ته پرې نښوده بلکې په پوره جسارت يې د باطل په وړاندې د حق د زمزمې اکبر جهاد ترسره کړ.

ځرک نه يوازې د هيواد په سطحه د حق د احقاق اود باطل د ابطال ديني مسؤليت ترسره کړ، بلکې د نړۍ په کچه يې په ورځنيو حادو مسائلو پسې پل واخيست، د غربي ميډيا له دروغو او تحريف ځخه يي پرده پورته کړ او د نړۍ په هر کونج کې يې مسلمان امت د ورپيښو ستونزو او کړاوونو په اړه رانه او ناويلي حقائق د لوستونکو مخې ته کيښودل.

هوکې، ځرک د اشغال په تيره لسيزه کې هغه جريده وه، چې د يرغلگرو له عالمگيرې ميډيا سره يي ډغرې وهلې، په داسې حال چې د عصر مطرح قلموال او د ژورناليزم مدعيان د ډالرو په ډنډ کې لاهو او قلمونه يې د کفر خدمت ته وقف کړي وو، د ځرک قلموالو يوازې د اسلام او حقانيت په ننگه ملا تړلې وه، سرونه يې په ورغوي ايښي و او د ژوند په بيه يې د ژورناليزم په برخه کې خپل جهادي مکلفيت سرته رساوه.

زما باور دی، چې ځرک مجله به زموږ د جهاد او مبارزې د يوه وياړمن يادگار په حيث د هيواد په مطبوعاتي جوړښت کې ځان ته ثابت او تلپاتې ځای ثبت کړي، که په نږدې يا لرې راتلونکې کې مو په هيواد کې د سرتاسري اسلامي نظام د نفاذ ارمان ترسره کيږي، بايد چې ځرک مجله يې له رسمي نشراتي اورگانونو ځخه وي، ځکه دې مجلې په سخت وخت کې د اسلام خدمت کړی، په سختو مرحلو کې يې د اولس روح او روان دلاسا کړی او په داسې حال کې يي د اولس د زړه حال ويلی، چې د دموکراتيک اختناق له امله د اولس په حق گويه ژبه د سکوت مهرونه وهل شوي و، دې مجلې په داسې حال کې خپل ديني او وجداني مکلفيت ترسره کړی، چې د يو اړخيز يرغل او جبر له امله وجدانونه ليلام او قلمونه خرڅ شول، مجلې کرايه او ژورناليزم د حقائقو د تحريف او تکتيم آله وگرځېده.





په هر حال، خبره مې له ځرک سره له ياراني او علاقې راپيل کړې وه، په ځرک مې لومړی ځل د ۲۰۰۴ م کال په لومړيو کې سترگې خوږې شوې وې او اوس دا دی ۲۰۱۵ م کال رابريدونکی دی، نن چې د ځرک د کليزې په مناسبت خپل تأثرات ليکم نو هماغه لومړنۍ شيبې مې سترگو ته لرې برې کيږي.

هغه مهال مې هيڅ تصور نه کاوه چې يوولس کاله بعد به د ځرک په کليزه ليکنه کوم، فکر مې کاوه چې ځرک به هم زموږ د مطبوعاتي جريان د ځوانيمرگو نشريو، عزم، توکل، استقامت او نورو غونډې د مطبوعاتي اختناق د جبر قرباني او د چلوونکو په شهادت او بندي کيدو سره به يې مطبوعاتي سفر نيمگړی شي.

خو لله الحمد دا دی ځرک مو د غرب په خلاف د مطبوعاتي جهاد د لومړنيو نشريو له منځه د يوې يادگار مجلې په حيث راپاته ده، ځرک د پخوا په نسبت د پاموړ پرمختگ کړی دی، ځرک که پرون د محترم استاد محمدياسر مرکه له سهار ورځپاڼې ځخه په مننې چاپوله نن د دې جوگه شوې چې له مطرحو شخصيتونو سره په خپله مرکې وکړي، په بيلابيلو موضوعاتو تحليلونه خپاره کړي، دعلم، هنر، سياست، ساينس، تاريخ او ادب د مينه والو تندې ماتې کړي او د ورځې په نرخ برابر نشراتي مواد تر خپلو مينه والو ورسوي.

د ځرک کليزه دې د دې وزينې مجلې مسؤل مدير، تخنيکي همکارانو، ليکوالانو، لوستونکو او ټولو مينه والو ته مبارکه وي، الله تعالی ته دعاء کوو چې د حق دغه چيغه همداسې تانده او الهام ښونکي وساتي، او د زمانې له شرورو يې په امن ولري. آمين يارب العلمين

# طالب او بي بي سي

۳/ نومبر/۲۰۱۲

نن مې د بي بي سي پښتو پر ويب پاڼه د کالمونو په برخه کې د شمع نظامي په نامه د يوې ليکوالې کالم وليد چې په ټوله کې يې د دې خبرې د ثابتولو هڅه کړې وه چې (طالبان اوس هماغه پخواني ترجوماتونو او هوجرو پورې محدود طالبان نه دي پاته)

لومړی خو باور نه کوم چې دغه شمع نظامي به کوم اصلي نوم وي، په يقين سره ويلی شم چې دا د همدې بي بي سي پښتو کوم همکار دی، چې غواړي ترداسې ناشناخته نومونو لاندې خپل د زړه براس وباسي. د نومونړې دکړې خبرې په اړه به ووايم چې رښتيا هم اوس طالبان هماغه د څولسيزو پخوا افغان طالبان نه دي ځکه چې د حالاتو له بدلون او انقلابي شرائطو سره د هوجرې د طالبانو مسؤليتونه هم درانه شوي دي. د طالب فکر اوس يوازې د کتاب په حاشيه او نکته کې نه دی بند، بلکې په هيواد او اولس راغلې بدې ورځې يې د جومات ترڅنګ د دنګ چينار سيوري ته د ځوانۍ مستانه خوب تښتولی دی. اوسنی طالب د پروني هغه غونډې د خپلې خيالي (کتاب) د مطالعې ترڅنګ د خيالو (معشوقې) خيالونو ته نه دی ورخلاص، بلکې د حيرتان او ليلې په کومه ورکه دښته کې د نړيوال جبر او غدر د ټانګ او طيارې تر اور لاندې د اوسني طالب بې حسه شوی جسد د حال په ژبه وايي:

خاونده دا به ستا قضا وي
چې تورې څڼې مې د بلخ بادونه وړينه





اوسنی طالب د پروني هغه غونډې دکلي او مالت نازنين او د ماشومانو او تورسرو د نکلونو شاهزاده نه دی، بلکې اوسنی طالب د بل هر انسان په نسبت ډېر ځپل شوی، قتل شوی، بندي شوی، ملامت شوی او بالاخره په هر اړخيزه نفي ګواښل شوی دی. د طالب جان د مينې ګل بشره اوس د هماغو پخوانيو مستانه ټپو سندرماره نه ده، نن د پرمختللي غربي وحشت او يرغل په تورتم او د کندز او کلاجنګي د کانيتينري قتل عامونو په عصر کې د طالب د وطن هره ګل بشره د اوښکو او سلګيو په بدرګه يوازې دا ټپه ويلی شي چې:

شمال د يار په وينو ســـــور دی
چې د شمال شمال راځي ما ژړوينه

ننني طالب رښتيا هم له پخواني هغه سره ډېر توپيرلري، ځکه چې د پروني طالب د ښايست په اړه به ويل کيدل چې:

په شړشم غوړې څڼې
په رنجو تورې سترګې
د دنګ چينار په شانې دنګه ونه
سپينې جامې، کتاب ترڅنګ، چې په کوڅه تيريږي
نو ډېرې سترګې يې له بام څخه په پټه ځاري...

مګر ننني طالب چې د (الا بلا به ګردن ملا) په زمانه کې د دين، وطن، عفت، استقلال، ارزښتونو، اولس، جهادي ارمانونو او ډېرو نورو اقدارو دساتلو مسؤليت ورحواله شوی دی، يوازې په الهي تکل او ليونۍ مينه يې تقريبا د درستې نړۍ بارودو ته خپل سپينه سينه سپر کړې ده، نو ځکه د نن عصر د طالب په اړه يوازې دا ويل کيدای شي چې...

سپین طالبان تر شیدو سپین وو

دبم لوگو یې توربخون کړل سپین مخونه

طالب جان چې پرون تر گل نازک بلل کیده نن ترکاڼي کلک ثابت شو، په تیرو څو لسیزو کې موږ لیدل چې د وطن په ښارونو کې د کفر او عصیان لگیدلی د پلالې اور د طالب جان تر درمند (حجرې او جومات) پورې ورسېد. همدې اور طالب جان راویښ کړ او دې ته یې مجبور کړ، چې باید د مړ کولو لپاره یې لاس په کار شي. طالب د همدې اور په لمبو کې پوخ شو، د اور د وژلو لپاره یې هر راز قرباني ورکړه، د پتنگ غوندې په بیا بیا وسوزید، لمبه شو، ایره شو، شهید شو، ابدي شو او غازي شو. د اور او ایمان په دې جگړه کې طالب نادرې وکړې، ټول نړیوال باورونه او د ستراتېژیکو څېړنو د مراکزو اټکلونه یې غلط ثابت کړل، هغه امریکایي فرعون چې ایټمي چین او روسیې ورته سلامي وهله او درسته نړۍ ترې گېڼۍ نیولې وه، د طالب جان په لاس مسخره شو، بدل شوي طالب جان له ځان سره ډېر ټولنیز قضاوتونو او ادبیات هم بدل کړل، طالب په خپل عبقري کردار سره د (ملا ملا جنگ ده ما مه شمېره) دروغجنه افسانه هم د انتي طالبانو له اذهانو نسیا منسیا کړه.

حقیقت دا دی چې طالب ذاتا هماغه طالب دی، خو څرنگه چې د زړو اصالت اور ته د غورځیدلو په مهال معلومیږي، د معاصر طالب عبقري صفات هم هغه مهال روښانه شول، کله چې له ننگونو اوازمېښتونو سره لاس او گریوان شو. طالب د امت دت اریخ په خورا سختو شرائطو کې خپل مسیر په پوره میړانه وپاله، نو ځکه به په ټوله کې د بي بي سي دا خبره ومنو چې نننی په ازمیښتونو کې گیر طالب د پروني هغه په نسبت د ټولنیز رول له اړخه ډېر تغیر کړی دی.





خو ښاغلو بي بي سي والو! که طالب بدل شوی ستاسو بي بي سي هم په خپل حال نه ده پاته بلکې د پخوا په نسبت خورا ډېر او اساسي تغیرات په کې راغلي دي.

د بي بي سي زوړ تاریخ به نه راسپړو دا چې څرنگه د دوهم نړیوال جنگ په مهال بي بي سي خپل ټول اصول او مقررات په تاخچه کې ایښي وو او یوازې یې د مؤتلفینو د تبلیغاتي لوډسپیکر رول خپل کړی وو، د اوس لپاره دا خبرې په خپل حال پرېږدو، خوباید ووایو چې لږ تر لږه د افغانستان لپاره د بي بي سي خپرونو د اوس په پرتله پخوا ډېر اعتبار درلود.

د روس ضد جهاد په مهال بي بي سي یوازینۍ مشهوره رسنۍ وه چې افغانانو ته یې د هیواد او نړۍ خبرونه رسول، هغه مهال بي بي سي د اوس غوندې تبلیغاتي شبکه نه بلکې یوه معتبره رسنۍ وه، چې په خبرونو یې باور کیدلای شوای، بي بي سي د افغانستان د جهاد، روسي مظالمو او د مجاهدینو د بریاوو په اړه في الجمله ښه راپورونه نشرول که څه هم په دې مابین کې یې خپل دودیز پرنگي شیطانت هم نه هیراوه او په پوره جسارت یې د کونړ او لغمان عملیات هم د پنجشیر تر زمري (!) پورې تړل.

مگر له تېرې څه باندې یوې لسیزې راهیسې بي بي سي د افغانستان لپاره په خپرونو کې د ژورنالیستیکو اصولوپه نظرکې نیولو په ځای د لندن د رسمي تبلیغاتي پالیسي تطبیق ته متې رابډ وهلي دي.

په افغانستان د امریکایي یرغل د پیل په مهال بي بي سي په څرگنده د یواړخیزې جگړه ایزې رسنۍ رول خپل کړی و، د افغانستان لپاره د بي بي سي خبریاله کیټ کلارک له هغو بهرنیو استخباراتیانوسره په پنجشیر کې پیاده شوه، چې د امریکایي بمبار د رهبرۍ لپاره هلته لیږل شوي وو. کیټ کلارک په دې

مهال په خپلو راپورونو کې داسې دروغ وشنول چې ښايي بي بي سي پښتو او فارسي به يې پخوا سارى نه وي ليدلى. د کابل له سقوط وړاندې د کيټ کلارک هغه راپور مې ياد دى چې نوموړې ويل زه اوس د کابل په شمال کې په هغه سيمه کې يم چې پخوا د طالبانو په لاس کې وه مگر اوس د شمال ټلوالې نيولې، په حقيقت کې تردې مهاله طالبانو په شمالي ډنډکې هيڅ سيمه له لاسه نه وه ورکړې او کيټ کلارک به شايد له پنجشير څخه دروغ راپورول.

د امريکا د **National public radio** خبرياله **Sarah Chayes** چې په افغانستان د بريد د پيل په مهال د بلوچستان په کوټه کې وه په خپلو ياداښتونو کې ليکي، چې د دې سفر په مهال ورسره د بي بي سي خبريال (آدم بروکس) هم ملگرى و چې د افغانستان د جنوب د خبري پوښښ لپاره بي بي سي سيمې ته استولى و. نوموړې وايي چې بي بي سي به په دې مهال هغه شيان نشرول چې حتى خپل خبريال به يې ورباندې نه و خبر او نه به يې راپور ورکړى و. نوموړې د کويټې په سرينا هوټل کې د بي بى سي له مشرتابه سره د آدم بروکس جنجال يادوي، بي بي سي اعلان کړى و چې کندهار ښار له طالبانو نيول شوى دى، خو حقيقت دا و چې طالبانو تردې مهال په کندهار او شاوخوا سيمو بشپړ کنترول درلود، آدم بروکس که هرڅو کوښښ کوه او د بي بي سي له مشرتابه سره د توندو خبرو په مهال يې دسرينا هوټل ميز ته سوکونه ورکول، خو ترپايه يې هم په بي بي سي د هغه راپور ردول ونه منل چې بي بي سي يوازې د خپلو تبليغاتي ملاحظاتو په اساس نشر-کړى و.

د طالبانو د حکومت له سقوط وروسته بي بي سي د ځينو داسې لغتونو استعمال پيل کړ، چې نه يوازې د ژورناليستيکي اخلاقو خلاف و بلکې د پښتو ادبياتو له اړخه هم نا مانوسه وو، د دوى په قاموس کې افغان طالب (ترهگر،





اوروپکى، سخت دريځى، ځان مرگي) وبلل شو، خو د دې نامتوازنې جگړې اصلي اوربلونکو يرغلگرو ته (نړيوال سوله ساتي، مرستندويان) ويل کيږي.

د بي بي سي په سياسي قاموس کې همدا اوس د شلگر دپ ايندي او قدم خپلو لنډ غر اربکيان (ملي سرتاسري پاڅون) بلل کيږي، خو طالبان چې له ښارونو پرته ټول افغانستان يې په ولکه کې دى او کرزى ترې له ارگه ترپول تخنيکه په ځمکه نه شي گرځيدلى (طالب پاتي شوني) بلل کيږي.

بي بي سي د امريکايي يرغل له ورځې بيا تراوسه پورې خپلې هغې پاليسي ته ادامه ورکوي، چې د هيڅ يرغل مخالف او مجاهد غږ به نه نشروي، د طالبانو د ويناند غږ به يوازې د نمونې لپاره په کال کې يو ځل خپروي او په سيستماتيک ډول به هڅه کوي، چې د طالبانو د محکومولو، بدنامولو او ناکام ښودلو لپاره خپله پرانيستي جبهه گرمه وساتي.

د دې لپاره چې د بي بي سي له څپو څخه دکوم يرغل ځپلي افغان کړيکه يا امريکا ضد مجاهد غږ پورته نه شي، بي بي سي خپل د (ستاسو غږ) پروگرام تر ډېره حده له ژوندۍ بڼې څخه واړاوه، دوى اوس د دې پروگرام لپاره له وړاندې نظرونه اخلي چې تر کتنې او ايډيټ وروسته د خپريدو بخت مومي، کوم ټيلفونونه چې په ژوندۍ بڼه اخيستل کيږي، په هغو کې هم وروستۍ درجه احتياط نافذ شوى ترڅو کوم غير مطلوب (!) څه خپاره نه شي.

بي بي سي چې پخوا له کومو افغان واقعيت بينه کارپوهانو سره مصاحبې او بحثونه کول، اوس هغه کارپوهان د افغانستان په مسائلو نه راغږوي، ډاکټر روستار ترکي، قيوم مومند، يعقوب شرافت، ډاکټر فاروق اعظم، عبدالکريم حقانيار، ډاکټر صمد حامد اوځيني نور موږ تر يرغل وړاندې د همدې بي بي سي له لارې

وپيژندل، مګر دا لس کاله د دې کسانو غـږ ورک دی، ځکـه بي بـی سي اوس د دې کسانو په عوض ځينی نور ډالري صاحب نظران پيدا کړي دي.

بي بي سي د لسو کلونو له تجربـې وروسـته لا هـم د طالبـانو ويانـد د هغـوی حقيقي وياند نه بلکې ادعائي وياند بولي. د بي بـی سي خبريـالان خـو اوس چـې د عادي خبرو په مهال هم د طالبانو د وياند نـوم اخـلي نـو دا خنـدونکی وروسـتاړی ورسره غبرګوي چې (ذبيح الله مجاهد چې ځان د طالبانو وياند بولي!!)

عجيبه داده بي بی سي اوس په خبري او ژورناليستيکه برخه کې خورا سرچپه دريځ خپل کړی دی، بي بي سي په ټولـه کـې د افغانسـتان پـه لراوبـر کـې د خپلـو مؤظفو ژورناليستانو په خبره دومره باور نه لري، لکه د محلي چارواکو په خـبره يـې چې لري، همدا اوس روزانه له بي بي سي څخـه هغـه خبرونـه نشر-يږي چـې خپلـو خبريالانو يې نه بلکې سيميزو چارواکو بي بي سي ته سپارلي وي.

په ځينو ولايـاتو کـې خـو سـيميز چـارواکي دبي بي سي د خبريـالانو رول ادا کوي، څو مياشتې وړاندې د هلمند والي ګلاب منګل په رڼا ورځ دروغ وويل او ادعا يې وکړه چې په کجکي ولسوالۍ کې طالبانو د پـنځلس کسـانو څخـه سرونـه غـوځ کړي دي، په داسې حال کې چـې د بي بي سي سـيميز خبريـال د دې پيښـې پـه اړه هيڅ باور نه درلود (ځکـه چـې اصـلا دې پيښـې هـيڅ وجـود نـه درلـود) بي بي سي همدغه د ګلاب منګل راپور تېر کړ.

ما چې له بي بی سي څخه دغه خبر اورېد او بله خوا له سيمې هم خبر وم چې پېښه هيڅ جزئي واقعيت هم نه لري، نو که له يوې خـوا د لنـدن ميشـتو بي بي سي والو په ناخبرۍ خندا راتله لـه بلـې خـوا پـه دې هـم متاسـف وم چـې د بي بي سي غوندې د يوې پيژندل شوې رسنۍ خبري ارشيف په څومره ناترسۍ (لګيا دی) لـه دروغو ډکيږي.





سـبا بـه د بي بي سي اداره ويـاړي چـې د افغانسـتان د پيښـو ژونـدی غړيـز تاريخي ارشيف په واک کې لري، خو خلک به خبر نه وي چې هغه په يـواړخيز ډول د ګلاب منګل، زمري بشري، لطف الله مشعل او اکرم خپلواک له ګيـډې عنـديو او خندوونکو دروغو ډک دی.

دلته بايد د بي بي سي سيميز خبريالان او او مشرتابه سره جلا کړو، د بي بـی سي سيميز خبريالان زياتره رښتيني، پاک نفسه او سم خلک دي، د دوی زيـاتره لـه هغـې خـبري پاليسـۍ سره موافقـت نـه لـري چـې همـدا اوس (بي بي سي بـرای افغانستان) په لاره اچولې، د عامه افغانانو غونـدې دوی هـم لـه بي بي سي سره پـه لوی جنجال ککړ دي، دوی د دې لپاره چې د سيدعبدالرحيم غوندې له دندې ونـه شړل شي، اړ دي چې په سترګو يوه څه ويني مګر په راپور کې بل څه وليکـي، دوی که غواړي چې راپورونـه يـې پـه لنـدن کـې د بي بي سي د نيـوز روم لـه پـاټکونواو فلټرونو سلامت تير شي، نو بايد ډېر په دقت رښتيا په دروغو بدل کړي.

دا ټول حقائق څرګندوي چې د افغانستان لپاره د بي بي سي پښتو خپرونـې د پخوا په پرتله خورا ډېرې بدلې شوې دي. بي بي سي اوس هغه بي بي سي نه ده پاته چې افغانانو به د شخړې او جنجال په مهال يوه بل ته ويل (پـه واللـه بـه بي بي سي دربانديې وغږوم) بي بي سي اوس د افغان د جلال او ميړانې په رښتوني کيسـه کـې نه ده، تردې چې د نړيوالو يرغلګـرو پـه خـلاف د افغـان اولـس د ورځينـو لسګونو عملياتو او حماسو له منځه يوازې په يوه هم نه غږيږي، ځکـه بي بي سي اوس خپـل ټول وخت يوازې خپلو تبليغاتي دروغو ته ورکړی دی.

وايي د شلمې پيړۍ په څلورمه لسيزه کې بي بي سي د جان ريت په نامـه يـوه خورا مسلکي او ژورناليستيکي اصولو ته وفادار مشر درلود، نوموړي ويلي و چې کـه بي بي سي غواړي په نړيواله ميډيا کې اميتازي اعتبار خپل کـړي بايـد چـې يـوازې

واقعيتونوته متعهده پاته شي. نومـوړي هغـه مهـال پـه بي بي سي کـې خـورا مهـم اصلاحي تحولات راوستل خو کله چې دوهم نړيوال جنګ ونښت، برتـانوي چـارواکو جان ريت له دندې لرې کړ او په ځای يې خپل يوبل غيرمسلکي کس وټاکه نوموړي په بي بی سي کې د (وار رپورټنګ يونټ) په نامه برخه رامنځته کـړه، د جـان ريـت اصول يې ټول لغو کـړل او د المـان پـه خـلاف يـې يـوه نـوې جګـړه مـاره بي بي سي رامنځته کړه.

په افغانستان له بريد وروسته چې سړی د بي بي سي نوی تشکيلات، مقـرری، اوخبري چلند ګوري داسې ښکاري چې په بي بي سي کې يو ځـل بيـا هماغـه پېښـه تکرار شوي ده.

هوکې، موږ وينو چې بي بي سي بدله شوې ده، په بي بی سې کې يو ځـل بيـا د جان ريت په قوانينو پښې ايښودل شوي دي او د افغـان اولـس پـه خـلاف يـې سـتر تبليغاتي او فکري جنګ پيل کړی دی. خو دابايد ووايو چې دې بدلون يوازې بي بي سي ته زيان اړولی ځکه ډېـر افغانـان اوس د پخـوا خـلاف دبي بي سي د خپرونـو د اوريدو په ځای له خپلو مبايلونو څخه جهادي ترانـې اوري، هغـه څـه چـې د بي بي سي د دروغو په نسبت د دوی له دل او دماغ ورسره ډېره موافقه لري.





## موږ د دښمن د تبليغاتي جنګ قربانيان

۱۴/ جنوري/۲۰۱۴

د روان ميلادي کال د جنورۍ مياشتې په لومړيو کې يو شمير غربي رسـنيو د حکومتي چارواکو له قولـه راپـور ورکـړ، چـې د هلمنـد پـه خانشـين ولسـوالۍ کـې حکومتي عسکرو د سپوږمۍ په نامه يوه دوولس کلنه نجلۍ نيولې چې غوښتل يـې په حکومتي عسکرو فدايي بريد ترسره کړي.

بي بي سي، آزادي راډيو، پژواک اژانس، سي اين اين، طلوع نيوز، امريکـا غـږ، فردا راډيو او ګڼو نورو غږيزو، چاپي او آنلاين خپرونو په همدې اړه راپورونه خپـاره کړل، چې د ټولو د راپورونو يوازينۍ منبع د هلمند ولايت حکومتي چارواکي وو.

په دې راپورونو کې ويل شوي وو چـې ۱۲ کلنـه سـپوږمۍ د ظـاهر پـه نامـه د طالبانو د يوه قوماندان خور ده، چې په زور يې فدايي بريد ته اماده کـړې وه. د دې حيرانوونکي خبر په اوريدو سره د طالبانو مشرتابه د پيښـې د وضـاحت پـه تـلاش هڅې پيل کړې، د هلمنـد پـه خانشـين او نـورو نـږدې ولسـواليو کـې يـې پوښـتنې ګرويږنې او تلاش پيل کړ، ترڅو د پيښې حقيقـت معلـوم کـړي، مګـر د څـو ورځـو پرلپسې هڅو وروسته په يادو سيمو کې د دې پيښې هيڅ کوم شـواهد ونـه مونـدل شول، نه خو په دې سيمه کې د ظاهر په نوم د طالبانو قوماندان شتون درلـود او نـه هم د پيښې د وقوع په اړه نور کوم شواهد ترلاسه شول.

په دې لړ کې ما خپله په خانشين کې د طالبانو د عمومي مسؤل لـه مرسـتيال ملا يارمحمد سره تفصيلي خبرې وکړې، هغه راته وويل چې د دې اوازو په مهـال زه په سيمه کې موجود وم، راډيوګانو ويل چې دا پېښه په خانشـين کـې شـوې ده خـو

موږ په خانشين کې چې هرڅومره پلټنې وکړې د دې پيښې واقعيت مو ونه موند، نو ځکه دې نتيجې ته ورسيدو چې پېښه سوچه دروغ او د دښمن يوه تبليغاتي ډرامه ده.

دا پېښه لومړنۍ پېښه نه ده، تردې وړاندې تيرکال هم په هلمند کې ولايتي چارواکو ادعاء وکړه چې طالبانو په کجکي ولسوالۍ کې ۱۵ تنه ښځې وژلي دي، خو هغې پيښې هم هيڅ جزئي واقعيت نه درلود، چې په اوريدو يې د سيمې خلک د راډيوگانو دروغو ته حيران پاته وو.

هغه خلک چې په افغانستان کې اوسي او ورځني جريانات يې د سترگو په وړاندې تيريږي شايد د اسلام د دښمنانو په دغه رنگه تبليغاتو خطا نه شي، ځکه هغوی ته په تيرو دوولسو کلونو کې معلومه شوې ده، چې دښمن له نظامي جنگ سره په څنگ کې په لويه پيمانه تبليغاتي جنگ هم پيل کړی دی، چې حقائق مسخ کوي او دروغ د رښتياوو غوندې تبليغوي.

مگر هغه خلک چې د مجاهدينو په اړه خبرونه يوازې له راډيوگانو او غربي مطبوعاتو اوري، که چيري د دښمن تبليغاتي ماهيت درک نه کړي، بعيده نه ده، چې د جهاد او مجاهدينو په اړه په قضاوت کې تيروځي، د دښمن تبليغات يې ذهن په بله کړي او په دې ډول د لويي سردرگمۍ او ذهني گمراهۍ ښکار شي.

دا چې په اوسنيو شرايطو کې ځيني خلک د مجاهدينو په اړه د شک او ترديد مفکوره لري، زه په ډاډ سره ويلای شم، چې يوازې د غرب د تبليغاتي جنگ اثر دی، چې د مجاهدينو په اړه يې د خلکو اذهانو ته غلط تصور تزريق کړی دی.

دا ډول خلک چې د مجاهدينو په اړه غائبانه قضاوتونه کوي، مجاهدين د غربي تبليغاتو په ترازو تلي او د خپلې مشاهدې پرځای د نورو په خبرو او تبليغاتو اتکاء کوي، بايد لومړی د مجاهدينو په اړه حقائق ځانته معلوم کړي، دوی بايد د





مجاهدينو ماهيت، مرامنامه، اهداف او واقعي کړنلاره تر دقيقې مطالعې لاندې ونيسي او له هغه وروسته پرته له عقدې او تعصب څخه د عدالت په فضاء کې قضاوت وکړي.

موږ په ډاډ سره ويلای شو، چې مجاهدين يوازې او يوازې د نړيوالو دښمنانو د پراخ تبليغاتي جنگ قربانيان دي. د اسلامي امارت د مجاهدينو په خلاف دومره تبليغات شوي او دومره دروغ ويل شوي دي، چې په معاصر تاريخ کې يې ساری نه ليدل کيږي، د دې تبليغاتو اکثريت يې مطلق دروغ دي چې هيڅ جزئي واقعيت هم نه لري. ځيني ناخبره خلک چې همدا تبليغات اوري نو د رښتياوو گمان ورباندې کوي او له همدې امله د مجاهدينو په حق کې غائبانه قضاوت کوي.

دلته به ځيني داسې موضوعات ذکر کړو چې د هغو په رابطه واقعيت يو څه دی، خو تبليغات بل ډول کيږي.

لومړی: دښمن له تيرو دوولسو کلونو راهيسې تبليغات کوي چې مجاهدين له عصري علومو او مکاتبو سره جوړ نه دي، مکتبونه سوځوي، د نجونو په مخ تيزاب شيندي او ماشومان له علم او معرفت څخه محروموي.

دا تبليغات په داسې حال کې جريان لري چې همدا اوس د مجاهدينو ترتسلط لاندې ټولو سيمو کې مکاتب پرانيستي دي او حتی تر ښاري سيمو په ښه نظم او ضبط سره په کې تعليمي بهير په مخ درومي. مجاهدينو رسما له ښوونځيو سره د مخالفت تبليغات رد کړي دي او له معارف څخه يې خپل ملاتړ مکررا اعلان کړی دی. مجاهدينو تراوسه د هيڅ مکتب سوځول نه دي تاييد کړي بلکې هميشه يې د مکاتبو سوځوونکي، د شاگردانو مسموموونکي او د نجونو په مخ تيزاب شيندونکي جنايت کاران او د دښمن استخباراتي کارکنان معرفي کړي دي، خو له دې

واقعیت سره سره لا هم ځینې ناخبره خلک باور لري چې مجاهدین د معارف دښمنان دي.

دوهم: دښمن تبلیغات کوي چې مجاهدین له کوچنیو ماشومانو څخه په جګړه کې استفاده کوي، دوی په هلمند کې د سپوږمۍ په نامه د نجلۍ دروغجنه ډرامه هم د همداسې یوې پیښې په توګه تبلیغ کړه، په داسې حال کې چې اسلامي امارت په خپلې کاري لائحه کې په څرګندو ټکو مجاهدینو ته لیکلي چې کم عمره ځوانانو ته چې ږیره یې نه وي راغلې اجازه نشته چې په جهادي ګروپونو کې خدمت ترسره کړي.

دریم: د مجاهدینو په اړه دښمن تبلیغات کوي چې مجاهدین د عصري علومو، ساینس او پرمختګ دښمنان دي او دا ډول فعالیتونو ته اجازه نه ورکوي. دا په داسې حال کې چې د اسلامي امارت زعیم همیشه په خپلو فرمانونو کې د عصري علومو زده کوونکي او محصلین تقدیر کړي دي، د هغوی د فعالیتونو ستاینه یې کړې ده، دغه ډول مجاهدینو حتی الوسع هڅه کړې چې د دیني علومو غونډې عصري تعلیم ته هم وده ورکړي. همدا اوس مجاهدین عملا په نظامي او نشراتي برخو کې له پرمختللیو وسایلو استفاده کوي او ساینسي۔ پرمختګ د مسلمانانو د پیشرفت لوی عامل بولي، مګر له دې ټولو حقائقو سره سره ځیني خلک د دښمن په تبلیغاتو غولیدلي او مجاهدین عقب ګرایان بولي.

څلورم: دښمن د خپلې پراخې میډیا په توسط دا خبره خورا ډېره تبلیغوي، چې د امریکا په ضد جنګیدونکي مجاهدین یوازې د ګاونډیو هیوادونو په تیره د پاکستان او ایران د ګټو لپاره مبارزه کوي او د دوی په باور مجاهدین د دغو هیوادونو اجیران دي.





دا تبلیغاتي ډنډوره خورا خندوونکې او له معقولیت څخه عاري ده. امریکایي کفري ځواکونو زموږ په هیواد یرغل کړی، په موږ جهاد فرض عین ګرځیدلی دی، مجاهدینو په ډېرو سختو شرایطو کې په تش لاس هر ډول ستونزو، کړاوونو، شهادتونو او مشکلاتو ته ځان ورکړی او د کفر په خلاف یې یوازې د دیني مسؤلیت په اساس جهاد پیل کړی دی، مګر دښمن وایي چې مجاهدین دغه تکالیف د ګاونډیو ملکونو لپاره تیروي.

آیا کوم انساني عقل به دا ومني، چې څوک دې د کوم پردي ملک د ګټو په خاطر دومره سخته او ستونزمنه مبارزه وکړي. هجرتونه، شهادتونه، زندانونه او طاقت فرسا مشقات دې قبول کړي، دا خورا خندوونکی منطق دی، که د دیني فرضیت او مسؤلیت خبره نه وي، هیڅوک دومره سترې کوونکي مقاومت ته اوږه نه شي ورکولای.

که چیرې په دې مبارزه کې د دنیوي مادي ګټو خبره مطرح وای، نو مادیات او پیسې خو د هر چا په نسبت له امریکا سره ډېرې دي، پاکستان او ایران خو د دریمې نړۍ غریب ملکونه دي، چې خپل اوسیدونکي نه شي مړولای او امریکا بیا نړیوال سوپر پاور دی چې له ټولو ملکونو سره مرستې کوي. که چیرې خبره د مادیاتو وای، نو مجاهدینو باید د امریکا غلامي کړې وای، مګر دا چې مجاهدین په تش لاس او وږې ګېډه د امریکا په ضد جنګیږي، معلومه خبره ده چې دلته یوازې د الهي رضا خبره ترمنځ ده، مجاهدین یوازې الله تعالی ته ځان مسؤل بولي، د الله تعالی په فرمان د دین له دښمنانو سره جهاد کوي.

هغه مجاهدین چې د امریکا او شوروي غونډې فرعوني زبرځواکونو ته یې سرټیټ نه کړ، مرګ، زندان او شهادت یې قبول کړ خو د شرق او غرب غلامي یې

قبوله نه کړه، د هغوی په اړه هیڅکله دا گومان نه شي کیدلای چې د کوم گاونډي ملک د غلامۍ رسنۍ دې غاړې ته واچوي.

هغه ناخبره خلک چې د مجاهدینو په اړه د دښمن د داسې تبلیغاتو ښکار شوي دي باید سترگې خلاصې کړي، په رڼو سترگو وگوري، چې آیا د دښمن دغه راډیویي ادعاوې واقعیت لري او که هسې پوچ تبلیغات دي. که دوی په دا ډول موضوعاتو کې د حقیقت لټه وکړي او له پیش قضاوتونو پرته اوضاع تحلیل کړي، موږ باوري یو چې حقیقت ته به ورسیږي او د مجاهدینو په اړه به یې ډېر سوالونه په خپله ځواب شي.

عام افغانان او نړیوال باید د غرب مطبوعاتي تبلیغات پرته له پلټنې او روښانتیا ونه مني، دوی چې د هرې خبرې په اړه د غربي مطبوعاتو تبلیغات اوري، لومړی باید د همغې پیښې په اړه پلټنه وکړي رښتیا او دروغ یې ځان ته معلوم کړي او له هغه وروسته ورباندې قضاوت وکړي.

انسان ته چې الله تعالی عقل او د تحلیل قوه ورکړې، مقصد یې دا دی چې باید حق او باطل، رښتیا او دروغ، ملامت او سلامت سره تفکیک کړای شي. زموږ غربي دښمنان چې د خپلو دروغو د خپرولو لپاره یې په نړیواله، منطقوي او هیوادنۍ سطحه بې شمیره رسنۍ جوړې کړې دي، هڅه کوي مشهود حقائق مسخ کړي، له رښتیاوو دروغ او له دروغو رښتیا جوړ کړي او په دې ډول خپلو تبلیغاتي اهدافو ته ورسیږي.

په دغسې فضا کې د هر عاقل او هوښیار شخص مسؤلیت دا دی، چې په گمراهۍ، بدبینۍ او شکوکو کې له وقوع څخه ځان وژغوري او حقائق په روښانه سترگو ځانته معلوم کړي.





# شیطاني رسنۍ و پیژنئ

۱۴/ مۍ/۲۰۱۴

الله تعالی فرمایي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ – الحجرات ٦ آیت

ترجمه: اې مؤمنانو! که یو فاسق سړی څه خبر درته راوړي نو ښه پلټنه وکړئ، هسې نه چې کوم قوم ته په ناپوهۍ سره څه ضرر ورسوئ چې بیا به په خپلو کړو پښیمانه شئ.

مسلمانانو وروڼو!

زموږ او ستاسو په خلاف د غرب د پیل شوي جنگ هدف یو، خو ابزار، محاذونه او طریقې یې خورا ډېري دي، د مسلمانانو په خلاف د دې جنگ یو ډگر د میډیا او رسنیو ډگر دی، غربیانو د مسلمانانو د مغزشویۍ لپاره په پراخه کچه چاپي، تصویري، آنلاین او غږیزې رسنۍ جوړې کړې دي، چې د مسلمانانو په خپلو ژبو ورته شپه ورځ اسلام ضد تبلیغات کوي.

په مبارزه او جهاد کې د بریا یو لوی راز (دشمن شناسي) ده، ترڅو چې څوک دښمن ونه پیژني، له مکرونو، دسیسو، سنگرونو، ابزارو او فریبونو یې خبرنه شي، امکان نه لري چې له تعرض او ضرر څخه یې په امان پاته او یا ورسره متقابل مناسب چلند وکړي.

نن سبا د مسلمانانو لپاره لکه څومره چې د دښمن د نظامي، کلتوري، اقتصادي او فکري یرغلونو پیژندل او ورسره مقابله کول ضرور دي، همدومره د

دښمن د تبلیغاتي او میډیایي جال پیژندل هم د هر مسلمان ستر مکلفیت دی، تر څو د دښمن له شیطاني تبلیغاتو څخه په امان پاته شي او د دښمن د تبلیغاتي یرغل په وړاندې د روښانه فکر په وسله سمبال واوسي.

نن سبا چې موږ کومې راډیوګانې اورو، چاپي مطبوعات ګورو یا نورې رسنۍ تعقیبوو، له زیاتره رسنیو څخه چې کوم خبر واورو، بې له دې چې تحلیل یې کړو، منو یې. په داسې حال کې چه دغه رسنۍ به زموږ له دښمنانو سره تړاو لري او د اسلام په ضد به د منظمو تبلیغاتو وظیفه ورسره سپارل شوي وي. نو بناء که موږ دغه رسنۍ ونه پیژنو، د هغو اهداف، تمویلونکي او تړاو رامعلوم نه وي، نو ډېر امکان دی چې د دښمن د شیطاني تبلیغاتو په دام کې ایسار شو او دښمن مو په لاعلمۍ کې ماغزه راومینځي.

په دې لیکنه کې کوښښ کوو ځیني هغه رسنۍ تاسو ته معرفي کړو، چې زموږ په خلکو کې ډېر شهرت لري، خلک ورته د بې طرفه او صادقو رسنیو په نظر ګوري، په داسې حال کې چې دغه رسنۍ د اسلام له دښمنانو سره تعلق لري او هغوی یوازې د اسلامي امت په ضد د تبلیغاتي جنګ او د مسلمانانو د تیرایستلو په خاطر جوړې کړې دي.

## د امریکا شیطاني رسنۍ (VOA)

د امریکا د متحده ایالاتو حکومت د اسلامي امت په ضد د جګړې په لاره کې تر ټولو ډېرې صوتي، تصویري او نورې رسنۍ ایجاد کړې دي، له دې جملې د امریکا تر ټولو ستره راډیویي اداره د **VOA** په نامه خبري اداره ده، چې په فارسي کې صدای امریکا او په پښتو کې ورته د امریکا غږ وایي.





دغه راډیوي اداره د دوهمې نړیوالې جګړې په مهال لومړی ځل جوړه شوه، په ۱۹۴۵ میلادی کې دا راډیو د امریکا د بهرنیو چارو وزارت ته انتقال شوه، او په ۱۹۵۳ کې د **USIA** په نامه د امریکا د اطلاع رسانۍ د اژانس ملحقه وبلل شوه. دې رادیو کابو نیمه پیړۍ د همدې ادارې تر نظارت لاندې کارکاوه، په ۱۹۹۵ میلادی کې چې د درستو امریکایي تبلیغاتي ادارو د انسجام لپاره د **BBG** په نامه واحده اداره رامنځ ته شوه امریکا غږ رادیو یې هم یوه برخه وګرځیده، همدا اوس دا رادیو چې خپرونې یې د**BBG** سازمان له خوا په ډېر دقت رهبري کیږي مرکز ي دفتر یې په واشنګټن کې دی او د نړۍ په نورو ډېرو هیوادو کې هم ګڼې نمایندګۍ، راډیویي ستیشنونه او خبرنګاران لري.

د صدای امریکا په نامه امریکایي راډیویي اداره له څو لسیزو راهیسې د افغانستان لپاره په پښتو او دري راډیویي خپرونې لري او په وروستیو کلونو کې یې د افغانستان لپاره لنډې تیلویزوني خپرونې هم پیل کړې دي، صدای امریکا د امریکا د حکومت نړیواله رسمي راډیو ده، چې ۲۴ ساعته د نړۍ په بیلابیلو ژبو خپرونې لري، دوی په خپرونو کې یوه سرمقاله لري چې د امریکا د حکومت رسمي پالیسي څرګندوي او له هغه پرته داسې سیاسي، خبري، ادبي او ذوقي پروګرامونه لري چې د امریکایي مقاماتو په مخامخ قومنده یې اجنډا او څرنګوالی ټاکل کیږي، دوی کوښښ کوي په خپلو خپرونو کې د ځان درنه او د مسلمانانو سپکه بیان کړي، سره له دې چې ځانونه ظاهرا بې طرفه او رښتیني بولي، مګر د صدای امریکا په نوم خبري اداره په نړیواله کچه له سترو دروغجنو او شریرو رسنیو څخه شمیرل کیږي، چې مسلمانان یې باید په خبرو او غلطو تبلیغاتو باور ونه کړي.

## آزادي راډیو که د بې بندوباري راډیو

امریکایان په صدای امریکا سربیره د اروپا د چک جمهوریت په مرکز پراګ کې د **RFE/RL** په نامه یوه ستره تبلیغاتي اداره لري، دغه شیطاني تبلیغاتي اداره

چې په نړۍ د امريکايي ميډيايي راج چلولو او امريکايي فکري جنګ د کاميابه کولو لپاره جوړه شوې ده، د ۲۱ هيوادونو لپاره په ۲۸ ژبو خپرونې لري.

دغه راډيو ته ځکه د امريکا جنګي راډيو ويلی شو، چې هميشه ترينه د جنګي وسيلې په حيث استفاده کيږي، په کوم هيواد چې امريکا نظامي يرغل پيلوي ورسره دا خبري اداره د هماغه هيواد په ژبه تبليغاتي جنګ هم پيلوي. کله چې امريکا په افغانستان بريد وکړ، ورسره سمدستي همدې ادارې د افغانستان لپاره په پښتو او دري ژبه د آزادي راډيو په نامه خپرونې پيل کړې، وروسته کله چې امريکايانو په عراق حمله وکړه، همدې ادارې د عراق لپاره د (عراق الحر) په نامه ځانګړې راډيويي خپرونه پيل کړه.

آزادي راډيويي خپرونه چې د امريکايي کانګرس سره تړاو لري، د امريکا له سترو شيطاني رسنيو څخه ده، چې د مسلمانانو په خلاف په پراخه فکري جګړه کې لاس لري، د چک جمهوريت په پراګ کې د دې شيطانۍ رسنۍ لپاره پراخ تاسيسات جوړ شوي دي، امريکايان د ډالرو په مقابل کې د نړۍ له مختلفو سيمو څخه خبريالان او نطاقان له خپلو کورنيو سره خپل دې تبليغاتي مرکز ته نقلوي، ترڅو ورباندې له همدې ځايه د اسلامي اولسونو په خلاف جګړه وکړي، امريکايانو له افغانستان څخه هم ګڼ شمير پښتو او دري ژبي خبريالان او ليکوالان له خپلو کورنيو سره پراګ ته يووړل چې اوس شپه ورځ د خپل مسلمان اولس په وړاندې غلط تبليغات کوي او د امريکايانو په فرمايش تبليغاتي جګړه پرمخ وړي.

آزادي راډيو چې په افغانستان کې هره ورځ ۱۲ ساعته خپرونې لري، په خلکو کې يې ډېر شهرت موندلی او ناخبره خلک ورته د بې طرفه راډيو په سترګه ګوري، په داسې حال کې چې دا د امريکايانو يوه جنګي راډيو ده چې يوازې د يوه لنډمهاله ماموريت يعني د افغانستان د جګړې د پاللو لپاره رامنځته شوې ده او يوازينۍ





موخه يې د مسلمانانو تيرايستل، تخريبول، اسلام وروسته پاتې ښودل، خلک بې لاره کول او د کفر په ګټه تبليغات کول دي.

د آزادي راډيو له نوم څخه ښکاري چې دا د امريکايانو د نړيوال فکري اعتقاد ليبراليزم د تبليغ لپاره جوړه شوې ده، آزادي دوه معناوې لري چې يوه يې حريت يا استقلال او دوهمه يې هم فردي آزادي / ليبراليزم يعنې له ټولو ديني، ملي او وجداني قيودو څخه ځان خلاصول او د حيواناتو غوندې بې بندوباره ژوند کول دي. امريکايان او نور غربيان د آزادۍ په دوهمه معنی عقيده لري او د يومخيزې بې بندوبارۍ يا ليبراليزم لپاره يې ستره مبارزه شروع کړې ده، دوی دغه راډيو هم په همدې اساس په آزادي راډيو نومولې چې په انګليسي کې ورته ليبرټي راډيو وايي، دوی غواړي د دې راډيو په تبليغاتو سره خپل منحوس کلتور (ليبراليزم) زموږ په هيوادوالو ومني، له همدې امله د دې راډيو له لارې پرلپسې د اسلامي عفت، درنښت، او حجاب په ضد تبليغات کوي او په ډاګه وايي چې آزادي راډيو د ديني تعصب په خلاف مبارزه کوي، د ديني تعصب په خلاف مبارزه دا معنی چې دوی هيڅ دين په رسميت نه پيژني او کوښښ کوي چې خلک له ديني قيودو آزاد او د حيواناتو غوندې يومخيز آزاد ژوند ته سوق کړي.

آزادي راډيو د مجاهدينو او اسلامي حرکتونو په خلاف هم سخت پوچ تبليغات کوي، د دې راډيو کارکوونکي متعصب او سيکولر کسان دي، چې يوازې په ژبه افغانان، نور د عاداتو او اخلاقو په لحاظ په بشپړ ډول امريکايان دي. له کفر سره د دوی اخلاص له دې معلوميږي چې له خپلو کورنيو سره د امريکايانو په تبليغاتي مرکز کې اوسي او خپل ټول ژوند يې د امريکايي کفر خدمت ته وقف کړی دی، مسلمانان بايد آزادي راډيو د امريکا د يوې جنګي راډيو په حيث وپيژني او هيڅکله يې د تبليغاتو تر اثر لاندې رانشي.

آزادي راډیو په فارسي ژبه د فردا راډیو په نوم دایران لپاره خپرونې، دآزادي په نوم د تاجکستان لپاره، او د مشال راډیو په نوم د پښتونخوا د قبایلي سیمو لپاره هم خپرونې لري، چې د ټولو عمده هدف د اسلام تخریب او د امریکایي بې دینې فکر لپاره تبلیغات دي.

### BBC دانگلستان لویه تبلیغاتي اداره

**BBC** د بریتانوي امپراطورۍ د مهال یوه لویه او نړیواله خبري اداره ده، چې پخوا یې یوازې راډیویي خپرونې درلودې مگر اوس تیلویزوني او آنلاین خپرونې هم لري. بي بي سي چې مرکزي دفتر یې په لندن کې دی له ۱۹۲۲ میلادي کال راهیسې د انگلستان د حکومت د رسمي تبلیغاتو د خپرونکې په حیث په نړیواله کچه پراخ فعالیت لري، دا اداره د انگلستان د ملکې لخوا د ټاکل کیدونکي پلاوي لخوا کنترولیږي او بودیجه یې ځکه د انگلستان د بهرنیو چارو د وزارت لخوا ورکول کیږي، چې دغې اداري ته د انگلیس د بهرنۍ تګلارې په تطبیق کې د یوه مهم مرکز په حیث کتل کیږي.

بي بي سي په ۳۳ نړیوالو ژبو راډیویي خپرونې لري، په همدومره ژبو انټرنیټي پاڼې او په ګڼو ژبو تیلویزوني خپرونې هم لري، بي بي سي چې د نورو غربي رسنیو په نسبت تریوه حده د خپل متبوع حکومت له اغیزو خپلواکه ده، له لویه سره د انگلستان د رسمي تبلیغاتي پالیسۍ د پرمخ وړلو لپاره جوړه شوې رسنیزه اداره ده.

دا راډیو هم یوه له هغو رسنیو ته چې خصوصا د اسلامي فکر په خلاف خپله تبلیغاتي جګړه په ډېر مهارت سره پرمخ وړي، ظاهرا ځان بې طرفه بولي خو په حقیقت کې د غربي سیکولر نظریاتو لپاره شپه ورځ تبلیغات کوي.





په افغانستان د امریکایانو له یرغل وروسته دې راډیو نه یوازې د افغانستان لپاره راډیویي خپرونې زیاتې کړي دي، بلکې په پښتو او فارسي ژبو یې تیلویزوني خپرونې هم پیل کړي دي. بي بي سي کوښښ کوي افغان ځوان نسل (برین واش) کړي، د اسلامي فکر په ځای لیبرال غربي تصورات ورداخل کړي، د همدې لپاره د بې حجابۍ، جنسي اختلاط، ډمتوب او د بې لارۍ نورو موضوعاتو ته خورا ډېره لمن وهي او په مکرر ډول یې په په تصویري او غږیزې راپورونو کې نشروي ترڅو زموږ اولس ورسره عادي کړي.

دې راډیو په دې وروستیو کې په کندز کې د اشراف المدارس په نامه د نجونو د یوې مدرسې په خلاف خورا له کینې او حسده ډک راپور جوړ کړی و، چې نه یوازې د مدرسې بلکې د اسلام او اسلامي تعلیماتو ځرګند سپکاوی یې هم په کې کړی و.

بي بي سي راډیو د مجاهدینو په خلاف هم خورا له کرکې ډک راپورونه خپروي، دې رسنۍ ته باید د انگلیس د یوې شیطاني رسنۍ په نظر وکتل شي او په تبلیغاتو یې باور ونه شي.

### نورې شیطاني رسنۍ

له یادو شویو مشهورو غربي رسنیو سوا د نړۍ او په افغانستان په کچه نورې هم خورا ډېرې صوتي، تصویري، چاپي او آنلاین رسنۍ شته چې غربیانو زموږ د مغزشوېۍ لپاره جوړې کړي دي.

د انټرنیوز په نامه یوه غربي مؤسسه په افغانستان کې په لسګونو ایف راډیوګانې، مجلې، ورځپاڼې او انټرنیټ پاڼې تمویلوي ترڅو د اسلامي فکر په خلاف تبلیغات وکړي. همدا اوس چې په پلازمینه کابل او نورو لویو ښارونو او د هیواد په

مختلفو ولاياتو کې گڼې ايف راډيوگانې، چاپي او تيلويزوني رسنۍ گورو، اکثره يې افغاني او اسلامي ريښه نه لري، بلکې تر غربي شيطاني ادارو پورې ملحقې دي، د هغوی لخواتمويليږي، د هغوی لخوا استخدام شوي او د هغوی له پروگرام سره سم تبليغاتي جگړه پرمخ وړي.

همدا اوس غربيانو په افغانستان کې ۸۱ تيلويزونونه او ۱۷۰ راډيوگانې د دې لپاره گمارلي دي چې د دوی په گټه تبليغات وکړي، په دې رسنيو کې ظاهرا زموږ خپل خلک ناست دي، زموږ په ژبو خپرونې کوي. مگر پيسې، پروگرام او سوژه ورته د غربي شيطاني ادارو لخوا ورکول کيږي.

له دې جملې د طلوع، اريانا، يک او نورو غونډې تيلويزوني چينلونه هغه اداري دي چې د غرب د سترو تبليغاتي بنسټونو سره پيبلي دي او د هغوی لپاره د فکري جنگ ورسپارل شوې دنده پرمخ وړي.

په يادو شويو محلي رسنيو سربيره د جرمني، فرانسې او گڼو نورو هيوادونو په شمول نور غربي هيوادونو هم نړيوالې راډيوگانې لري، او شپه ورځ لگيا دي د جهاد، شريعت، اسلامي نظام، اسلامي تعليم، اسلامي فکر او اسلامي تمدن په خلاف تبليغات کوي.

## مهمه خبره

د کفري رسنيو تبليغات د يو ستر او خطرناک توپان حيثيت لري، چې که ورسره په سمه توگه چلند او مقابله ونه کړو زموږ لپاره خطرناکې پايلې درلودلی شي. د دښمن د دې شيطاني تبليغاتو په مقابل کې د مبارزې ښه لاره داده، چې د دغو شيطاني رسنيو ماهيت وپيژنو، دوی ته بايد د اسلام ضد او دښمنو رسنيو په سترگه وگورو او هيڅ خبره يې په پټو سترگو ونه منو. که دغه رسنۍ د مجاهدينو





په ضد تبليغات کوي يا کوم بل اسلامي ارزښت تربريد لاندې نيسي، بايد ويې نه منو، بلکې د د دښمن د مکارانه شيطاني دروغو په نظر ورته وگورو.

متاسفانه دمسلمانانو د ضعف او کافرو دښمنانو د نړيوالې برلاسۍ له امله وضعيت داسې جوړ شوی چې مسلمانان نشي کولای په متقابلو بالمثله تبليغاتو سره د کفارو تبليغات خنثی کړي، ځکه واقعي مسلمانان دې ته نه پريښودل کيږي چې په نړيواله کچه لويې خبرې اداري جوړې کړي. له همدې امله اوس په نړيواله کچه د دښمنانو يوطرفه تبليغات روان دي، د دښمن د دغو تبليغاتو يوازينۍ مقصد د مسلمانانو گمراهي، تيرايستل او د غربي فکر په رنگ رنگول دي، که غواړو د دښمن دغه شيطاني هيله نامراده کړو، بايد د تبليغاتو له اثرپذيري يې ځان وساتو، که مو د دښمن د تبليغاتو له اثرپذيري ځان وساته نو معنی يې داده چې د دښمن ټوله تبليغاتي پروسه مو له ناکامۍ سره مخامخ کړه.

که د افغانستان په سطحه وواېو نن سبا د اسلامي امارت د مجاهدينو په خلاف د دښمن بيلابيل مطبوعات په يوه غږ خورا زهرجن تبليغات کوي، کله وايي مجاهدين د پاکستان او نورو هيوادونو د گټو لپاره جنگيږي، کله وايي مجاهدين عام خلک وژني، مکاتب، کلينکونه او سرکونه ورانوي او کله وايي چې مجاهدين د يوه قوم سره تړاو لري او له نورو اقوامو سره تعصب لري.

مسلمان اولس بايد د خپل ايماني فراست په مقتضا د دښمن دغه ټول تبليغات ناديده او ناشنيده وبولي. د دې په ځای چې د دښمن په تبليغاتي شيطاني دام کې واقع شي او مجاهدين د دښمن له سترگو ووينې، بايد په خپله سترگې وغړوي، د مجاهدينو او اسلامي امارت په اړه په خپله پلټنه وکړي، اهداف، لوائح او کړنې يې وگوري، چې څوک دي، د کوم ځای دي، د څه لپاره جنگيږي او څه غواړي؟؟؟؟

که دوی د دښمن د تبليغاتو له اثرپذيری، پيش قضاوتونو، تعصبونو او غـرض انديشۍ پرته يوازې د انصاف له عينکو مجاهـدين، د هغـوی تګـلارې او فعاليتونـه وګوري، نو وبه ويني چې مجاهدين واقعا د دې اسلامي وطن تر ټولـو وفـادار زامـن دي، يوازينۍ ارمان يې د الله تعالی په ځمکه د الهي نظـام برپـا کـول دي، اسـلامي اصولو ته په کلکه ژمن دي او ټوله هڅه يې داده چې خپل اولس هـم پـه دنيـا کـې د اسلامي نظام په نعمت ونازوي او هم يې د آخرت د سميدلو غم وخوري.

په داسې حال کې چې د مجاهدينو ماهيت او حالت په خپلو سترګو وګورئ نو ټولې تبليغاتي پردې به مو له سترګو لرې شي، د هرڅه په بـاره کـې بـه مـو سـترګې روښانه او فکرسالم شي، چې بيابه د دښمن د شيطاني رسـنيو غرضـونه او مرضـونه ډېر ښه تشخيصولای شئ.

لوړو حقائقو ته په پام سره ويلی شو، چې د دښمن شيطاني رسنۍ او د هغـوی خبريـالان د هغـو فاسـقو خـبر راوړونکـو مثـال لـري چـې اللـه تعـالی يـې د سـورة الحجرات په شپږم آيت کې د خبر د پلټلو او په پټو سترګو د نه منلو امر کړی دی. د قرانکريم د حکـم پـه اسـاس دا د هـر مسـلمان دينـي مسؤليت دی چـې د دغـو شيطاني رسنيو او فاسقو خبريالانو خبرونه او تبليغـات پـه پټـو سـترګو ونـه منـي، ترڅو چې د لمر غوندې ورته واضحه شوي نه وي او په کره دلائلو ورته کوم حقيقـت نه وي معلوم شوی بايد له منلو يې پرهيز وکړي، ځکه الله تعالی فرمايي:

يَا أَيُّهَـا الَّـذِينَ آمَنُـوا إِنْ جَـاءَكُمْ فَاسِـقٌ بِنَبَـإٍ فَتَبَيَّنُـوا أَنْ تُصِـيبُوا قَوْمًـا بِجَهَالَـةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ – الحجرات ٦ آيت

ترجمه: اې مؤمنانو! که يو فاسـق سـړی څـه خـبر درتـه راوړي نـو ښـه پلټنـه وکړئ، هسې نه چې کوم قوم ته په ناپوهۍ سره څه ضرر ورسوئ چې بيا به په خپلو کړو پښيمانه شئ. (صدق الله العظيم)





## د تبليغاتي جنګ نوې څپه

۴/ فبروري/۲۰۱۱

دا څو ورځې د دښـمن د عمـومي اړيکـو او معلومـات ورکولـو لـه ادارو څخـه مطبوعاتو ته بيخي نوي، ډراماتيک او سره ورته خبرونـه سرايـت کـوي. څـو ورځـې وړاندې د کندز امنيه قومندان اعلام کړه، چې دغه ولايت يـې پـه بشـپړه توګـه لـه مجاهدينو آزاد کړی دی، او په درستو ولسواليو کې يې خپلې سلګونه مليشـې ځـای په ځای کړې دي. په دې سربيره له تيـرو څـو ورځـو راهيسـې پـه ورځنـۍ شـکل د آيساف له مطبوعاتي دفتره د هيواد په مختلفو سـيمو کـې د مجاهـدينو د نيولـو او وژلو متحدالمال ابلاغيې نشريږي.

همدا نن که مطبوعاتي سرټکي وګورئ، د دښـمن د بيلابيلـو مقامـاتو لـه خـوا خورا هيښونکې او خنداورې ادعاګانې مطبوعاتو ته ابلاغ شوي دي.

ــ جنرال پيټرايس د رولينګ سـټون مجلـې تـه ويـلي، چـې د مليشـو جوړولـو ستراتيژی يې په برياليتوب روانه ده، د افغانستان په ډېرو سيمو کې لاسته راوړنـې لري او په راتلونکې کې د طالبانو شکست تضمينولای شي.

ــ دناټو يوه بل مشر ډګرمن مايکل لـوس هـم د پيټـرايس پـه چـم خوشـبيني ښکاره کړې، د ده په فکر د کابل د ادارې د وسلوالو ځواکونو روزنه ښـه پـرمخ ځـې اوګڼ سرتيري يې جګړې ته تيار کړي دي.

ــ په همدې ورځ د ناټو يوه بل جنرال ادم سـميت هـم خپـل د مـافي الضـمير اظهار کړی دی، نوموړي بيا د خپل باور او اټکل لـه مخـې ويـلي چـې مجاهـدين د پيسو له کمي سره مخامخ دي.

ــ د کابل د اداري استخباراتي ویاند لطف الله مشعل خو چې لـه څـه مـودې راهیسې له خبریالانو سره د مخامخیدو له دریڅه غورځول شوی و، له کومې ورځـې چې په دې نوې وظیفه ټاکل شوی هره ورځ خبریالان ور دعوتـوي او د خپلـو لاسـته راوړنو په اړه ورته داستانونه او کیسې بیانوي، نوموړي د تیرو ورځو په شان نن هـم دوه ستري دعوې کړي دي، لـه یـوې خـوایې د کابـل پـه جومـاتونو کـې فـدایان او بارودي واسکټونه نیولي او له بلې خوا یې پـه همـدې ورځ د کابـل د تیـرې اونـۍ د استشهادي برید عاملین هم لاس په لستوڼي ګیر کړي دي.

امریکایان او کورني اجیران یې دا ادعاګانې او د بریالیتوب لاپې داسې مهـال کوي، چې افغانان ظاهرا د افغانستان په پوځي او امنیتي وضعه کې کـوم د پـام وړ تغیر او تبدل نه ویني، د هیواد په لراوبر کې هاغـه د چا خـبره هماغـه اسـمان دی هماغه ځمکه، نه د دښمن له خوا کوم فوق العاده عملیات ترسترګو شوي، او نه هم هیوادوالو د دوی کومې لاسته راوړنې لیدلي دي، ژمی چـې طبعـا د دواړو طرفونـو لپاره سخت موسم دی، د مجاهدینو غونډي یـې د امریکایـانو ګشـت او ګـذار هـم ټکنی کړی دی، د جګړو میدانونه ساړه شـوي دي، پـه پلازمینـه کابـل کـې د تیـرو میاشتو په نسبت اوس د مجاهـدینوعملیات زیـات شـوي دي، بیـا بیـا پـه دښـمن چاودنې او استشهادي بریدونه کیږي او دشمن ته تلفـات اوړي. مګـر لـه دې ټولـو واقعیتونو سره دښمن بیا هم وچ تبلیغ ته کار ویلی اوپه هماهنګه توګه خپل خـواږه خوبونه او خیالات مطبوعاتو ته عرضه کوي.

زموږ خلک یو متل کوي وایي: چې په آخور دې سترشي د غـاښ کتلـو تـه یـې اړتیا نشته. زما په فکر له پیټرایس نـه نیـولې تـر لطـف اللـه مشـعل پـورې د لـوړو مطبوعاتي باټو ویشتونکو له افغان اولـس سره خـورا ډېـره مـوده تیـره شـوه، افغـان اولس دوی په تیره نهه کلنه موده کې له هـره اړخـه ښـه وتلـل او وپیژنـدل، د دوی





بیابیا لاپې، ستراتیژۍ، مختلفـې وعـدې، ضرب الاجلونـه، ادعـاوې او د بریـالیتوب اټکلونه یې داسې وازمایل چې ښایي د بیا ازمویلو لپاره یې چندانې اشتهاء ونه لري.

لطف الله مشعل، مایکل لوس، پیټرایس او ادم سمیت چې په تیرو نهو کلونـو کې د افغانستان تقدیر بدل نه کړ او نه یې وضعیت ته په خپله ګټه څرخ ورکړ، ایـا دا د یوې ورځې ادعاګانې به یې افغان ولس او نړیوال ورسره ومني، چې په جـاودیي توګه به یې داسې وضعیت بدل او لاسته راوړنې خپلې کړي وي... د عامـه بـاور لـه مخې خو، کلا وحاشا...

زموږ په باور دا د دښمن له خوا د کلاسیک تبلیغاتي جنګ هغه نـوې څپـه ده، چې نوې څیرې یې له نوو ادعاګانو سره په مخ بیایي ترڅـو افغانـان او نړیـوال پـرې تیربـاسي، خـوبې نتیجـې بـه ځکـه وي چـې اوس درسـت افغـان اولـس او نړیـوال پوهیږي، چې په افغانستان کې د وضعیت ابتکـار د مجاهـدینو پـه لاس کـې دی او دښمن ته یوازې همدا مطبوعاتي سرګرمۍ ورپاته دي ترڅو خپـل ټپـي او شـړیدلی دریځ پرې ټکور کړي.

# آنلاین دولتي تروریزم

۱/ اگست /۲۰۱۱

تروریزم د لغت له مخې ډار اچولو تـه ویـل کیـږي، دا اصـطلاح لـومړی هغـه مهال وکارول شوه، کله چې د ۱۸ - ۱۹ پیړیو په بهیر کې اروپاااو نور غـربي اولسـونو له تاریخي خوبه راویښ شول، صنعتي دور یې پیل کـړ او پـه نړیوالـه سـطحه یـې د مستعمره جوړولو طرحې هم په کار واچولې. دا مهـال غربیـان د بیلابیلـو ځمکـو او زیرمو د قبضه کولو په سر سره په سیالي شول، دې سیالۍ د دوی ترمنځ اختلاف ته لاره هواره کړه، او دا اختلاف د یوه بل په وړاندې په فزیکـي غبرگـون واوښـت، سره لـه دې چـې وروسـته دوی د نړیوالـو او منطقـوي جگـړو پـه مهـال پـه ښـکاره سره وجنگیدل، خو لومړی یې د یو بل په کورنیو چارو کې پټې لاسوهنې کولې، د یوه بل گټې او تاسیسات یـې لـه منځـه وړل او زیانونـه یـې ورتـه اړول، چـې دا عمـل دوی تروریزم بللی و.

تروریزم که هرڅو یوه غربي پدیده ده خو په دې وروسـتیو کـې غـربي کفـري طاقتونو د مسلمانو اولسونو د اېل کولـو لپـاره د یـوې بهـانې کـار تـرې واخیسـت. عجیبه داده، هغه غربي طاقتونه چې د تروریزم بنسټگران او په تاریخي لحاظ مهم لوبغاړي بلل کیږي اوس هغه مسلمان اولسونه د تروریزم په نامه تهدیدوي چې تـر اوسه د تروریزم په معنی نه پوهیږي، حقیقت دا دی اصلي تروریستان هغه مغـربي طاقتونه دي چې له کلونو راهیسې په نړۍ د خپلې سلطې لپـاره د ډار اچولـو هڅـې کوي، دوی چې پخوا په محدوده کچه تروریستي اعمال سرتـه رسـول، او د یـوه بـل غوښې یې شکولې، اوس همدغو کفن کښانو تر خپل منځ اتحاد کړی دی او غـواړي





د خپل زده کړي فن (تروریزم) په توسط د نـړۍ نـور نـاخبره اولسـونو وځـبیښـي او حقوق یې پایمال کړي.

څرنگه چې اوس دغو استثمارگرو قوتونو یاد عمل په لوړ ه او رسمي کچه پیـل کړی دی، نو ځکه ورته (دولتي تروریزم) ویل کیږي.

په تیرو څو لسیزو کې د نړۍ بیلابیل اولسونه او هیوادونه د غربیانو د دولتي تروریزم ښکار شوي دي، چې له دې جملې یو هم زموږ گران هیواد افغانسـتان دی. غربیانو له تیرو څو کلونو راهیسې د بیلابیلو حربو په توسط هڅه کړې زمـوږ مـؤمن اولس وویروي ترڅو خپلـه واکمنـي پـرې قبولـه کـړي، دښـمن د ډاراچولـو اونـاروا تجاوزاتو دا سلسله نه یوازې په تبلیغاتي او جنگي برخه کې جاري سـاتلې، بلکـې لـه تیرو څو کلونو راهیسې دښمن هڅه کړې، چې خپل دا ناوړه عمل د انټرنیټ پراخې دنیا ته هم وغځوي او په دې برخې کې هم د خپلې دیکتاتورۍ د برپا کولو لپاره یـو څه ترسره کړي.

همدا اوس په نړیواله کچـه د افغـان اولـس د روانـې مبـارزې او جهـاد غـږ د انټرنیټ له لارې د اسلامي امارت د ویب پاڼې له خوا خپریږي او د دنیاوالو غوږونو ته رسیږي، دغه راز د اسلامي امـارت وینـدویان دگرځنـده ټیلفونونـو او ایمیـل لـه لارې ترکورنۍ او نړیوالې میډیا پورې خپل اواز رسوي.

خو غربي نړیوال تروریستان چې په عامه ژوند کې یې په هیڅا خپلـواک عمـل او اړیکې پیرزو نه دي په منظمه توگه هڅه کوي، چې د افغان مجاهـدینو د نشرـاتو برخه هم سانسور کړي.

په همداسې یوه اقدام کې د روان ۲۰۱۱ میلادي کال د جـولای پـه شـلمه نیټـه غربي کفري استخباراتي ادارو د یوه منظم پروگـرام لـه مخـې د اسـلامي امـارت د رسمي ویب پاڼې alemara۱. com په پښتو، عربي او انگلیسي برخو کې داسې یـوه

دروغجنه اعلاميه خپره کړه چې په هغه کې د اسلامي امارت د مشر- اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد د مړيني اعلان خپور شوی و، دوی نه يوازې دا اعلاميه د نټ له لارې خپره کړه بلکې د اسلامي امارت د ويندويانو له تيلفوني شميرو او ايميل ادرسونو څخه يې هم نړيوالو رسنيو ته وليږله.

سره له دې چې دا پېښه ډېر زر د اسلامي امارت د فرهنگي کميسيون د کارکوونکو او ويندويانو له خوا کنترول شوه او نړيوالو رسنيو ته ډاډ ورکړل شو چې دا يو جعلي او بزدلانه عمل دی چې د دښمن د استخباراتي حلقو لخوا سرته رسيدلی دی، امير المؤمنين لله الحمد ژوندی او کوم مشکل ورته نه دی پيښ شوی، خو دې پيښې وښوده چې دښمن بې له شکه اوس په منظم ډول انټرنيټي تروريزم ته ملاتړلې او په رسمي کچه دا جنايات رهبري کوي.

له دې ناوړې پيښې نه وروسته د اسلامي امارت د فرهنگي کميسون له خوا په خپره شوې اعلاميه کې ويل شوي دي، چې د دښمن لخوا ترسره شوی دا عمل د شرم وړ او بزدلانه دی او دا ډېر ناوړه حرکت دی چې دښمن په رسمي کچه د نړيوالو انټرنيټي او تيلفوني شبکو حريم ماتوي، او داسې غلطه استفاده تري کوي.

که واقعيت ته وگورو رښتيا هم د امريکايي استخباراتو له خوا ترسره شوی دا کار ډېر سپک او پست عمل دی، انټرنيټي غلا يا د پاڼو هک کول په نړيواله کچه يو بد جنايت بلل کيږي، يو خبره بايد روښانه کړو دا چې د اسلامي امارت رسمي ويب پاڼه د دښمن لخوا هک کيږي دا د الاماره ويب پاڼې امنيتي کمزوري نه شوبللای، تردې پخوا داسې بيا بيا پيښ شوي دي، چې د نړۍ گڼ شمير معتبرې ويب پاڼې د بيلابيلو اغراضو لپاره هک شوي وي، د بيلگې په توگه څه موده وړاندې د Fox News او News International غوندې معتبرې ويب پاڼې د نامعلومو کسانو لخوا هک شوې او ناوړه مطالب پرې نشر شول. دغه راز په ټويټر کې د بارک





اوباما شخصي اکاونټ هم يو ځل هک شو، او مداخله په کې وشوه. خو څرنگه چې دا عمل د انټرنيټ په نړۍ کې تر ټولو ناوړه جنايت بلل کيږي، نو ځکه د دا ډول کسانو په وړاندې عکس العمل هم هميشه خورا سخت وي، لکه د باراک اوباما د ويب پاڼې هکر چې له پيژندلو سمدستي وروسته ونيول شو او زندان ته واچول شو.

عجيبه تصادف دا دی لکه پخوا به چې ويل کيدل چې که يوکس يوبل تن مړ کړی نو قاتل بلل کيږي او که څوک سلامت اولس ترتيغ تير کړي هغه قهرمان بلل کيږي، نن سبا هم باراک اوباما يو انټرنيټي هکر په دې وجه راټينگوي چې ولې يې د ده په شخصي ويب پاڼه کې مداخله کړې ده، خو پخپله د بارک اوباما تر مشرۍ لاندې امريکايي حکومت د نړۍ په بيلابيلو برخو کې شپه ورځ د خپلو رقيبانو ويب پاڼې هک کوي، او په دولتي کچه دا عمل مخ ته بيايي.

ترکومه ځايه چې د اسلامي امارت په ويب پاڼه او د ويندويانو په ايميل ادرسونو او تيلفوني شميرو کې د دښمن د ناروا مداخلې په اړه پلټنه شوې ده، د افغانستان د روشن او افغان بيسيم شبکو په دې اړه د اسلامي امارت فرهنگي کميسيون ته په وضاحت کې ويلي دي، چې دا ډول په دومره پراخه او هراړخيزه کچه مداخله د افرادو يا ټيټ پوړو هکرانو له خوا نه شي ترسره کيدلای، دوی ويلي چې د دا ډول هراړخيز يرغل امکانات حتي د سيمې هيوادونو او قدرتونه هم نه لري، بلکې دايوازې امريکايي استخباراتي ادارې دي، چې داسې تخنيک په واک کې لري، چې هم له پرديو ايميل ادرسونو څخه ايميلونه وليږلی شي او هم له پرديو ټيلفوني شميرو څخه له بل چا سره په تماس کې شي.

په ټوله کې که د دښمن د دې عمل نتايجو ته راشو زموږ په باوردې عمل په ځای د دې چې دښمن ته گټه ورسوي، د دښمن څيره يې نوره هم رسوا کړه، او د

بیان د آزادۍ او خوندیتوب په اړه یې د دوی شعارونه او تبلیغات دروغجن ثابت کړل.

له بلې خوا دې عمل په عملي میدان کې د دښمن بې وسي هم روښانه کړه، دا چې دښمن په دروغو د عالیقدر امیرالمؤمنین د وفات خبرونه نشروي، دې وښودله چې دوی د عمل په ډګر کې پاته راغلي دي او عالیقدرامیرالمؤمنین لکه څنګه چې په ساتونکي څښتن تعالی اتکاء درلوده الله تعالی د دښمن له شومو او ناوړو عزائمو څخه خوندي ساتلی دی.

موږ باور لرو لکه څنګه چې دښمن د عامه ژوند په ډګر کې د دولتي تروریزم په توسط خپلو اهدافو ته نه دی رسیدلی، او نه یې زموږ د روان جهاد په وړاندې کوم خنډونه ایجاد کړي دي، په آنلاین نړۍ کې هم دوی نه شي کولای د داسې تروریستي اعمالو په توسط خپله بایللې جګړه وګټي.

دوی له څو کلونو راهیسې په بیابیا هڅې کوي د انټرنیټ په نړۍ کې د اسلامي امارت د نشریاتو مخه ونیسي، دوی له مختلفو تاکیتکونو نه په استفاده د اسلامي امارت ویب پاڼې ته ویروسونه ورداخلوي، یا پاڼه له منځه وړي او یا د انټرنیټي خدماتو په نړیوالو آزادو کمپنیو فشار واردوي، چې اسلامي امارت ته د نشریاتو حق ورنکړي، خو په تیرو لسوکلونو کې نه دي توانیدلي، په دې برخه کې خپل هدف ته ورسیږي، لکه څنګه چې د جګړې په برخه کې دوی له سختې مایوسۍ سره مخامخ شوي دي، بیلابیلې ستراتیژۍ یې ناکامه شوي دي او مجاهدینو د دوي د هرې ستراتیژۍ په مقابل کې نوي او حیرانوونکي تاکتیکونه کارولي دي، له تیرو څو کلونو راهیسې د انټرنیټ په نړۍ کې د دښمن د آنلاین تروریزم او اشغال په وړاندې هم کټ مټ همداسې جهاد او مقاومت روان دی.





د اسلامي امارت د فرهنګی کمیسیون تر څارنې لاندې د انټرنیټي څانګې همکاران په تیرو څو کلونو کې د یوې سرشارې مبارزې او بیلابیلو تاکتیکونو نه په استفاده توانیدلي دي، په انټرنیټي برخې کې د دښمن یرغلونه له شکست سره مخامخ کړي او د دښمن شومې هیلې نامراده کړي.

د اسلامي امارت انټرنیټي تخنیک کاران دا د لوی الله تعالی یو څانګړې نصرت بولي چې په ډېرو ابتدایي تاکتیکونو سره توانیدلي دي، د دې وخت د فرعون ناوړه هیلې بې نتیجه کړي او خپل نشریات د دښمن له خطر څخه وساتي.

دا چې دښمن اوس داسې غلچکي بریدونه کوي، او بې اساسه ویره خپروونکي اعلامیې نشروي، معلومیږي چې د جګړې د ډګر غوندې په دې برخه کې هم نور دښمن مایوسه شوی دی، نو ځکه داسې شرمیدلي اعمال ترسره کوي.

موږ یقین لرو چې الله تعالی د حق ملګری دی، دښمن که هرڅو د نننۍ تخنیکي دنیا امپراطور بلل کیږي، خو د الله تعالی د ښکاره نصرت په توسط مجاهدین توانیدلی شي د دښمن په وړاندې په هره برخه کې بریالۍ مبارزه په مخ بوزي

شاعر وايي:

ای دل ملول مباش که الله اکبر است
دشمن اگر قوي ست نگبهان قویتر است

## اووم فصل ـــ اشغال راوړي بدمرغۍ او جنګي جنايات







## د اوباما په ستراتيژۍ کې د سپيانو رول

١٦\جولای\٢٠٠٩

د امريکا نوي ولسمشر (بارک اوباما) څو مياشتې وړاندې د افغانستان لپاره د خپلې نوي تګلارې د اعلانولوپه ترڅ کې ويلي و، چې افغانستان ته به د خپلې طرحې د برياليتوب يقيني کولو لپاره دوه ډوله کاري ځواکونه وليږي. يوه ډله به يوويشت زره سمندري سرتيري وي چې په څو جوپو کې به دې هيواد ته ځي او هلته به په مخامخ جګړوکې برخه اخلي او بله ډله به هغه ملکي کارګران اومشاورين وي چې ملکي کارونه او پروګرامونه به تنظيموي اود فوځيانولخوا په نيول شويوسيموکې به د ملکي حکومت مراندې ټينګوي.

خو وروستي انکشافات او په کليوالوسيموکې د نويو ځواکونو شوي عمليات ښيي چې اوباما يو دريم نااعلان شوى ځواک هم افغانستان ته را زيات کړى چې تراوسه يې مطبوعات نه دي ترې خبرکړي. په دې وروستيوکې د لوګر، پکتيا، پکتيکا، غزني، روزګان او د هيوادپه نورو بيلابيلوسيموکې د امريکايي ځواکونو د تازه عملياتو او چاپو قربانيان وايي چې امريکايي سرتيري اوس د عملياتوپه مهال له ځانونوسره د خروړو سپيو ګلې هم ګرځوي چې له دوى سره په ټولو کړنو او تلاشيوکې اوږه په اوږه برخه اخلي.

سره له دې چې د خروړو سپو په واسطه د خلکو ويرول، داړل اوتعذيبول پخوا هم د عراق ا و ګوانتاناموپه زندانونو دغه راز د هيواد په نورو بيلابيلوسيموکې ليدل شوى وو، خو د امريکايي ځواکونو تر څنګ د سپيانوپراخ شتون لومړى ځل هغه مهال وليدل شوچې کله تيرکال د جوزا د مياشتې په ٢٢مه د پکتيکاولايت د

متاخان ولسوالۍ د ابراهیم کاریز په کلي امریکایانو چاپه واچوله. په دې چاپـه کـې چې ۳۵ تنه ملکي وګړي پکې شهیدان شول ډېرى کلیوال د امریکایانو لخوا کورونـو ته د ورپرېښودل شویو سپیانولخوا داړل شوي وو.

له دې پېښې وروسته د خوست ولایت په بیلابیلوسیمو او د لـوګر د څـرخ پـه ولسوالۍ کې داسې پېښې شول چې امریکایـانو د کـور ټـول نارینـه وژلي وي او پـه ښځو او ماشومانوپسې یې سپي خوشي کـړي وي. دا پېښـې چـې پخواخـال خـال او نادرې برېښـېدې، پـه دې وروسـتیوکې چـې د اوبامـا د سـتراتیژۍ لـه مخـې نـوي ځواکونه افغانسـتان تـه رارسـېدلي او پـه عملیـاتو یـې پیـل کـړی، بیخـي زور یـې اخیستی او نوي راوستل شوي سپي په منظمه توګـه لـه پوځیـانوسره پـه عملیـاتواو تلاشیوکې برخه اخلي.

له دې جملې به هغه عملیات یاد کـړو چـې پـه دې وروسـتیوکې د پکتیکـا او غزني و لایت په ځینو ولسوالیو کې د دښمن لخواپیل شوي دي. د پکتیکـا د کتـواز د مربوطو ولسوالیو دغه راز د غزني د ګیرو، اندړو او ګـیلان د ولسـوالیوخلک چـې پـه وروسـتیوکې د امریکـايي مظالموقربانیـان ول، ټـول همـدا وایـي چـې دا ځـل امریکایانو په سپیانو داړلي اوځورولي. ډېرځله یې د دوی د شهید شوي وګـړي سـپیو ته غورځولي چې هغوغوښې تـري شکولې دي. پـه دې مـوده کـې لـومړۍ پیښـه د پکتیکاد خیرکوټ ولسوالۍ د سیګانې په کلي کې پیښه شوه د دې سیمې لوی عالم او روحاني شخصیت مولوي سراج اخندزاده چې څه موده وړاندې یې امریکایانو پـه کور یرغل وروور، دغه دیني عالم یې لومړی په شهادت ورساوه او بیا یې د سـپیانو داړلوته پرېښود. د سیمې خلک وایي چې د مولوي صاحب شهید بدن سپیانو داسې داړلی و چې د کتلونه و، نو ځکه یې د شپې خاورو ته وسپاره.





له دې دوه ورځې وروسته د همدې عملیاتو پـه لـړ کـې امریکایـانو د غـزني د ګیلان ولسوالي ته مخه کړه، هلته یې هم د جهانګیر په سیمه کې د ګیلان د ډنـډ د کلي اوسیدونکی (۷۰ کلن سپین ږیری عبدالرحیم اکا) له نیولو وروسته تر مرګـوني حده په سپیانو وداړه. د دې پیښې په سبا د پکتیکا د ډیله په سیمه کـې امریکایـانو د یوه کور څلور تنه ښځې او ماشومان شهیدان کړل او بیا یې په سپیو وخـوړل. دوه ورځې وروسته چې امریکایانو د غزني ولایت د ګیرو په ولسوالۍ کې عملیـات پیـل کړي وو هلته یې د نظام کاریز په کلي کې هـم تـر لسـو زیـات کسـان پـه شـهادت ورسول، دغه راز یې یوه ډله کلیوال ونیول لاسونه اوسترګې یې وروتړلې او بیا یـې د سپیو خوړلو او داړلو ته پرېښودل.

په دې کمه موده کې د امریکایي تازه نفسو پوځیانو لخوا په سپیانو د ځورولـو د دومره ډېرو پیښوثبتیدل په څرګند ډول ښیي چې د افغانسـتان د اشـغال د دوام لپاره د اوباماپه نوي ستراتیژي کې د سپیانولپاره هم یو د پام وړ نقش او رول تعین شوی دی. دا چې د سپیانو دا ځواک به وکولای شي تر څو اوباما تـه پـه افغانسـتان کې د فتحې او بریالیتوب هار ور په غاړه کړي؟ دې ته به وروسته راشوخو لومړی د دې ځواک د استخدام په پایلو او لاملونو غږېږو.

سـپی یـو ډېـر نجـس حیـوان دی. کـه تاسـووګورئ د نـړۍ پـه ډېـرو کموکلتورونوکې به د سپي غوښې نـه انسـانان اسـتفاده کـوي. همـدا امریکایـان او لویدیځوال که وګورو د خنځیر، چې د ځمکې د مخ ترټولو نجس حیوان دی، غوښـه یې خوري، خو د سپي نه خوري. څه موده وړاندې چې په پیکینـک کـې د اولمپیـک سیالۍ وې نړیوالو د چین پـه حکومـت غـږ وکـړ چـې هلتـه د ورتلونکـو نړیوالوپـه احترام دې د چین په هوټلونو کې څه موده د سپي غوښې نه پخوي.

خوکه راشو د افغانانواو مسلمانانو کلتورته دلته بيا سپی د بـل هـر کلتـور پـه نسبت ډيرنجس شميرل کيږي. ځکه که له يوې خوا په ديني لارښونوکې هغـه کـور د خدای له رحمته لرې بلل شوی چې بې ضرورته سپی په کې وي، له بلې خواپه عام رواج کې چا ته د سپي خطاب کول يوه پوچه ښکنځا بلل کيږي. د سپيو خـوراک تـه د يو شي غورځول يا يې د سپو د خوراک کول د يو شي د انتهائي تحقير لپاره کارول کيږي. ښايي د اوباما افغان اواسلام دښمنه مشاورينو دغه کلتوري حساسيت درک کړی وي، نو ځکه يې اوس د مظلوموافغانانو د لاتحقيـر او تعـذيب لپـاره د سـپيانو ډلګۍ را استولې دي. دوی بيا هم غواړي چـې د زور، جـبر او دهشـت خپرولـو لـه لارې په افغان مجاهداولس خپله سيکولرستي داعيه ومني، خو دا ليدلی خوب يـې اوبووړی بريښي. دوی دا کولای شي چې زمونږ شهيدان پـه سـپيانو وداړي خـو لـه دې کاره چې کوم مطلوب دی هغه په هيڅ توجيـه هـم نشيـ ترلاسـه کـولای. ځکـه افغانان څه د نړۍ د نورو مستعمره سيمو د خلکو په شان له حادثو ناخبره قـوم نـه دی چې دوی به يې په دا ډول فشار واردولوسره د غلامۍ ځنځـير تـه آمـاده کـړي. افغان تر دې لوی لوی تاړاکونه تر سراړولي خو په پای کې يې دښمن ته ثابته کـړې چې د دوی ظلمونه، تعذيب او جبر يي ايماني پرتم نشي محوه کولی.

په خپله امريکايي پوځيان نن سباپه نړ ی کې تر خـروړو سـپيو خطرنـاک بلـل کيږي. چې کومې خوا ته يې مخه شي بـدمرغې ليـږدوي، کـلي ورانـوي، کوچنيـان وژني او ناورينونه زيږوي. نو اوباما چې په خپلو اويا زره انسي وحشيانودا جګړه ونه ګټله نو په سپيانو به يې څه وګټي.

مګر بر خلاف به د دا ډول کړنو پايلې دومره ژورې اوخطرناکې وي چې بيا بـه يې د ګوانتانامو د وحشت غونډې ټوله امريکا هم په زغم و نـه رسـيږي. دوی هلتـه هم دا ډول کړنو ته مخه کړې وه مګر اوس بيرته پـرې د خـاورو اړولـو او پټولـو پـه





هڅه کې دي. له دا ډول ناوړه اعمالو څخه اوس افغان اولس دا تـاثر اخيسـتی چـې امريکايي پوځ ته د هغو وحشيانوپه سترګه ګوري چې هـيڅ د انسـانيت پـه ژبـه نـه پوهيږ ی او نه بايد د انسانيت او بشردوستۍ تمه ترې وشي، نو ځکـه يـې يـوازينې لاره دا ده چې بايد د وحشې ځناورو او مضرو حشراتو غونډې يې له ضرر وړانـدې د مرګ لاره وسنجول شي.

همدا اوس په افغانستان کې د يوه امريکايي سرتيري کلنی لګښت پـه اوسـط ډول يو مليون ډالردی. مونږ د پينتګان چارواکو او د اوباما د ستراتيژۍ پلي کونکو ته په لنډ دول وايو چې په دې مجهز پوځ مو ونشوای کړای چې دا جګړه د بـري تـر منزلـه ورسـوئ، پـه سـپيانو خـو يـې هيڅکلـه نشـئ رسـولی. البتـه دا بوږنـوونکي وحشتونه کولای شي ستاسواصلي څيره نړيوالو ته وروپيژني.

# ایډز یرغل راوړې تحفه

۳/ډسمبر/۲۰۱۴

د۲۰۰۰ م کال وروستۍ میاشت وه، هغه مهال چې د هیوادپه پاک اسمان د بهرني یرغل او دموکراسۍ توري وربځې نه وې راخپرې شوې، هغه وخت په نړۍ خصوصاپه غرب کې دHIV یا ایډز د وبا خبره ډیره ګرمه وه، د روغتیا د نړیوال سازمان راپور ویلي و، چې ایډز چې تراوسه یې څلویښت میلیونه وګړي وژلي همدا اوس په اوسط ډول په کال کې دوه میلیونه وګړي د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د ژوندله خوږو محروموي. نړیوالې روغتیایې ادارې د خپلې کړې سروې له مخې دا هم ویلي و چې د ګردې نړۍ په سطحه افغانستان یوازینی هیواد دی چې په دې وېروس د ککړتیا پېښه نده پکې موندل شوې.

دا د افغانستان لپاره یو ستر ویاړ و، چې د داسې بدنام مرض څخه پاک او ساتلی پاته و، د هغه مهال د هیواد ورځپاڼې دا سرلیک مې اوس هم په یاد دی چې لیکلي یې و: له ایډز پاک افغانستان د اسلامي د اخلاقي فضائلو ستر روغتیایي حکمت.

مګر له هغه وخته دا دی څوارلس کاله تیریږي په دې موده کې هیواد تر بهرني اشغال لاندې راغی، په هیوادکې د اشغال او دموکراسۍ تر سیوري لاندې فحاشي او لغړتوب پیل شو، د همدې فحاش کلتور نتیجه ده چې سږ کال د دسمبر په لومړۍ د ایډز د ورځې په مناسبت د پژواک اژانس د یوه خبر سرلیک دی چې: په ننګرهار کې د ایډز ۷۴ پیښې ثبت شوي دي.

تاسو موازنه وکړئ، د اسلامي امارت په مهال په ګرد افغانستان کې د ایډز یوه پېښه نه وه، مګر اوس یوازې په یوه کوچني ولایت ننګرهار کې ۷۴ ته رسیدلي دي.





د دسمبر لومړۍ ورځ د ایډز له مرض سره مبارزې ته ځانګړې شوې ده، سږ کال په همدې ورځ چې د نوي حکومت د روغتیا وزارت کوم راپور خپور کړی خورا بوږنوونکی او شرمناک دی. روغتیا وزارت وایي په تیر کال کې په افغانستان کې د ایډز د خپراوي سرعت لس فیصده زیات شوی دی، د روغتیا وزارت د ارقامو اواحصایو له مخې ۱۳ کاله وړاندې د طالبانو د حکومت په مهال په افغانستان کې د ایډز هیڅ پېښه نه وه ثبت شوې، د بهرنیو ځواکونو او غرب زده ګانو له راتګ سره افغانستان ته ایډز راغی او سرایت یې پیل شو، تر ۲۰۰۹ م کال پورې په درست افغانستان کې ۳۰۰ کسان په دې ویروس ککړ شول، خو له دې وروسته د ایډز د سرایت کچه نوره هم زیاته شوه، تردې چې د سږکال د شمیرو له مخې ۱۶۹۴ تنه هیوادوال په دې مردار ویروس اخته او خپل مرګ ته شیبې ته شماري.

د روغتیا وزارت د اظهاراتو له مخې دا یوازې هغه کسان دي چې رسما په ایډز د مبتلا مریضانو په حیث پیژندل شوي او د روغتیا له وزارت سره ثبت دي، څرنګه چې په هیوادکې ایډز ته د یوه شرمناک مرض په سترګه کتل کیږي، داسې ګمان کیږي چې د دې څو برابره مریضان به داسې وي چې تراوسه یې خپل مرض پټ ساتلی او دشرم له وجې یې له روغتیا وزارت څخه مرسته نه ده طلب کړې، په همدې بنیاد د روغتیا وزارت اټکل کوي چې شاید په هیواد کې په ایډز د مبتلا مریضانو شمیر تر څلورنیم زرو زیات وي.

افغانستان چې روغتیایي اسانتیاوې په کې په نشت حساب دي، د حفظ الصحې امکانات یې ډیر ابتدایي دي، تر یو میلیون زیات معتادین لري چې له دې جملې شل فیصده معتادین یې د تزریق یا ستن لګولو له لارې مخدره مواد مصرفوي په داسې ډول چې لسګونه کسان خپل وینه یو تر بله تبادله کوي، ترڅو په نشه دککړې وینې په توسط بل کس ته نشه انتقال شي، په داسې چاپیریال کې د ایډز د شیوع لپاره امکانات خورا زیات دي او دا د راتلونکي نسل لپاره یو بوږنوونکی خبر بلل کیدای شي.

د څېړنو له مخې ثابته شوې چې ايډز د (ايبولا) غونډې يو استعماري مرض دی، چې استعمار يې قصدا په ځينو هيوادونو کې خپروي، افغانستان ته هم دا مرض له بهرنيو يرغلگرو او غرب زده گانو سره راغلی چې د تلفاتو او شرم ټول بار به يې هم د دوی په غاړه وي.

همدا اوس چې په هيواد کې د بهرنيانو لخوا له يوې خوا فحاشۍ او بې بندوبارۍ ته لمن وهل کيږي او ورسره د ايډز د خپريدو کچه په بوږنوونکي ډول مخ پورته روانه ده، داسې ښکاري لکه استعمارگر چې د خپل دې راوړي مرض په توسط غواړي افغانانو ته سزا ورکړي.

دا چې په ايډز د اخته کيدو پيښې په يوه لسيزه کې له صفر څخه ترزرگونو رسيږي، بايد په روغتيايي برخه کې د خطرزنگ په نظر ورته وکتل شي، که د اشغالگرو او د دوی د فاحشو اذنابو په شتون کې د ايډز سرايت دوام پيدا کوي کيدای شي په راتلونکو کلونوکې دا مرض په يوه وژونکي وبا واوړي چې بيا به يې کنټرول ممکن نه وي.

زموږ هيوادوال خپل وروسته پاتې والي او ابتدايي امکاناتو ته په پام سره په هيڅ ډول نه شي کولای په صحي او وقايوي هڅو سره د ايډز دسرايت مخه ونيسي، په هيواد او درانه اولس کې د ايډز د مخنيوي يوازينۍ لاره دا کيدای شي، چې د دې بدمرغه مرض بيخ او جړ غوڅ شي، د ايډز جړ بې دينه بهرنيان او د دوی زناکار گوډاگيان دي. دا مرض له دوی سره راغلی او که دوی پسې واخلو نو مرض به يې هم ورسره لاړ شي، که بهرني فاحش اشغالگر په دې هيواد کې پاته وي ضرور به په شعوري او غيرشعوري توگه د ايډز سرايت ته وده ورکوي او په پای کې به دا مرض د افريقايي هيوادونو غونډې په وبا بدلوي، په هغه صورت کې بيا نو بايد دا ومنو چې راتلونکې نسلونه به مو د ايډز له لاسه د مرگ غيږې ته ځي.





# افغان ښځې او د غرب لومې

۱۲\ ډسمبر/۲۰۱۱

په دې وروستيو کې به مو له بي بي سي راډيو د هغې افغان پيغلې غملړلی داستان اوريدلی وي، چې د خپل يوه خپلوان لخوا د جبرزنا ښکار شوې ده او اوس د زندان شپې تيروي، دا راپور چې اوس هم د بي بي سي پښتو ويب پاڼې په اول مخ پروت دی، خورا بوږنوونکی دی. شل کلنه گلناز چې د دې په وينا له جبري زنا وروسته حامله شوې، زنداني شوې او اوس د کرزي په فرمان بښل شوې ده، حيرانه ده، چې له زندانه ووزي او کنه؟ نوموړې وايي سره له دې چې بې گناه ده خو خپلوانو يې ورته گواښ کړی چې د پت او ناموس په نامه به يې ووژني.

گلناز د خپل غربو نيولي نکل په پای کې يوه داسې خبره هم کړې چې د دې له اسلامي او افغاني همت او په نوموړې د دې تور دوران د اصلي راوستونکو (غربي يرغلگرو او غربگرايانو) له شومو اغراضو څخه پرده پورته کوي.

گلناز وايي: زه غواړم هغه څوک چې زما په عزت يې جبري تيری کړی دی، بايد اعدام شي (ځکه د دې په وينا محصن دی او څو اولادونه لري) دغه راز زما لپاره د باعزته ژوند زمينه برابره شي او سرپرست راته پيدا شي، مگر (خارجيان) راته وايي راځه خارج ته لاړه شه، تېر شه له دلته ژونده، ځکه ستا مدعيان زامن او ډېر کسان لري وبه دې وژني. مگر زه ورته وايم چې هرڅه پيښيږي زه ورته اماده يم زه خارج مارج ته نه ځم موږ پښتانه يواو...)

دا چې په افغانستان کې دېره خارجيانو څنگه ترگلنازې (چې په يوشخصي- جنجال کې مبتلا ده) ځان رسولی او نوموړې يې د خارج تگ ته تشويق کړې ده،

هغه څه دي چې په افغانستان کې پيل شوی د غربيانو او غرب گرايانو لـه يـو سـتر اسلام ضد او افغان ضد پروگرام څخه نقاب پورته کوي.

حقيقـت دا دی چــې پــه اســلامي هيوادونــو د لويــديځوالو يرغــل يــوازې ستراتيژيکي او اقتصادي موخې نلرې، بلکې د گڼـو اهـدافو لـه جملـې يـې يـو مهـم هدف ديني او کلتوري دی، لويديځوال د استعماري جگړو له وخته په دې فکر کـې دي، ترڅو خپل سيکولر فرهنگ اسلامي ټولنو ته انتقال کـړي او پـه دې توگـه دغـه اولسونه د خپل کلتوري يرغل تر پوښښ لاندې هم راولي.

د لويديز کلتور يوه مهمه مميزه د ښځو آزادي او بې حجابي ده، چې دوی يـې د (ښځو د حقوقو) تر زرين شعار لاندې تعقيبوي. ۱۹۵ او ۲۰ مو پيړيو په مهال چـې په افريقـا، منځنـي ختـيځ او جنـوبي آسـيا کـې گـڼ مسـلمان اولسـونه د لويـديزو استعمارگرو تر مستقيم يا غير مستقيم اشغال لاندې وو، لويديځوالو متواتره هڅـه درلوده، ترڅو تر اشغال لاندې ټولنو ته خپل بې دينه کلتـور تزريـق کـړي او پـه دې توگه خپل کلتوري اشغال يقيني کاندي.

په دې برخه کې د لويديځوالو د هڅو يوه مهمه برخه مسلمانو ښځوته د تبرج، بې حجابي او آزادۍ احساس ورکول و چې هغه مهال يې ورته د (فيمنيسم) اصطلاح کاروله.

لويديځوالو د خپل دې پروگرام د عملي کولو لپاره لومړی پـه مسـلمانو ټولنـو کې ځانگړي لويـديځ ډولـه ښـځينه ښـوونځي جـوړکړل او وروسـته يـې لـه همـدې ښوونځيو څخه بااستعداده مسلمانې نجونې د خپلو هيوادونو ځانگړو پوهنتونونو ته د زدکړو لپاره و استولې، د زده کـړو د دې دورې پـه مهـال يـې د نـاخبره مسـلمانو ميرمنو ذهنونه په بشپړه توگه ورته ومينځـل او پـه سـوچه غـربي کلتـور او گروهـه





سمبالې يې بيرته خپلو هيوادونو ته د وايسترنايزيشـن (غـربي کولـو) د همـه جانبـه پروگرام د عملي کولو په پار راوليږلې.

دغه په غرب کې تربيه شوې ښځې چې له غربي کلتوري او استخباراتي کړيـو سره پېيلې وې او د هغو له خـوا تمويلېـدې، پـه مسـلمانو ټولنـو کـې يـې د ښـځو د حقوقو، بشري حقوقو، دمـوکراسي، ترقـي او ترداسـې نـورو عنوانـو لانـدې بيلابيـل فعاليتونه شروع کړل، دغه راز يې په نشراتي برخه کې گڼې مجلې او اخبارونـه هـم را وايستل.

د غربيانو د دې پروگرام په نتيجه کې په مسلمانو ټولنو کې د ښـځو د آزادۍ د تحريکونـو پـه نامـه، نـوي او لـه ديـن سره اړخ نـه لگـوونکي گـڼ خوځښـتونه راوپنځيدل. د مراکش د ښځو تنظيم چې د فـاطمې مرنيسيـ (د پـاريس د سـوربن پوهنتون فارغ التحصيلې) لخوا تاسيس شـو، د ترکيـې د ښـځو غورځنـگ د دويگـو آسنا په مشرۍ، د سوريې او لبنان (المجمع النسائي العربي) د ايران (سـازمان زنـان ايران) د مهناز افخمي په هڅو، د تونس د ديموکراتو ښځو ټولنه، د عراق د ښـځو تحرير ټولنه، په مصرـ کـې د ښـځو د آزادۍ او فيمنيسـم تحريـک او داسـې نـورې خورې ورې ډلې چې د (د ختيځ د ښځو کنگره) ترنامه لاندې د يوه لږ پيژندل شـوي اتحاد لخوا اداره کيدلې، دلويديځوالو د يوه منظم پروگرام ژوندي مثالونه دي چـې غوښتل يې مسلمانې ښځې لـه خپـل مسير څخـه بـې لارې او پـه نړيوالـه عريـانې ورگډې کړي.

له دې هڅو سره هم مهال لويديځوالو له بيلابيلو دسيسو او فريبونو څخـه پـه استفاده هڅه پيل کړه، ترڅو دغه نوي راټوکيدلي خوځښتونه او سترماتې ښـځې پـه نړيوالو کچه مطرح کړي او د مسلمانانو د نوي نسل لپاره يې د تقليد وړ کاندي، په دې لړ کې بيلابيلو غربي ادارو د ښـځو د آزادۍ د فعـالينو لپـاره تشـويقي جـايزې

وضعه کړې، د هغوی لپاره يې غولوونکي او غيرواقعي القاب وکارول ترڅو يې په دې لاره کې نور فعاليت ته تشويق کړي.

د اسلامي نړۍ په کچه دا ښځينه غرب ګرايانه خوځښتونه که څه هم په ځينو هيوادونو کې له ماتې سره مخ شوي او د مسلمانو اولسونو لخوا رد شوي دي، خو په ډېرو نورو مسلمانو ټولنو کې يې خورا زړه بوږنوونکې پايلې درلودلې دي، چې د بشپړو ټولنو د بې سترۍ او بې لارۍ سبب ګرځېدلي دي.

د بيلګې په ډول په ټونس اسلامي هيواد کې اوس ښځې دا حق لري چې خپل ميړه ته طلا ق ورکړي، چې دا له اسلامي اساساتو څخه ښکاره بغاوت دی. په مصر کې هم دې ته ورته قوانين نافذ دي، په ترکيه کې بيا هيڅ ښځه حق نه لري چې تعليمي يا حکومتي اداروته له حجاب سره داخله شي.

په افغانستان کې له دې سره سره چې د ښځو د آزادۍ په نامه د ټولنيز انحراف وارداتي هڅې په بيا بيا له ناکامۍ سره مخ شوي دي، او ولس يې په وړاندې سخت غبرګون ښودلی، خو د دې هيواد له پرون څخه ناخبره ننني متصديانو (لويديځو يرغلګرو) منظمې هڅې پيل کړي دي، ترڅو افغان ښځې هم د نړيوال انحراف په اتڼ ورګډې کړي.

دوی دواک ته رسيدو سره سم په لومړي اقدام کې د ښځو په نامه يو وزارت جوړ کړ، چې له دې څخه د افغان ښځو له مسئلې سره د دوی دلچسپې په ښه توګه واضحه شوه، ورپسې د ښځو د ټولنو، ورکشاپونو، مجلو، اخبارونو او راديوګانو دوران پيل شو، چې لا هم دغه جريان په درز روان دی. په دې مابين کې د ويدا صمدزۍ، حماسه کوهستاني، ملالۍ جويا او ځينو نور غونډې د يو شمير غرب وهليو تورسرو بې ځايه مطرح کول، تشهيرول او په ډاليو او القابو نازول هم د هغه





پروګرام برخې وې، ترڅو د افغانستان مؤمنې تورسرې پرې تير باسي او د دوی تقليد ته يې تشويق کړي.

د غربي او نورو سيکولر هيوادونو تعليمي ادارو، غونډو او کانفرانسونو ته د افغان تور سرو په ليږلو او د غولوونکو جوائزو او القابو په ورکولو سربيره اوس غربيانو هڅه پيل کړې، ترڅو يو شمير هغه افغان ميرمنې چې په يو نه يوډول په افغان ټولنه کې داغداره شوې او درديدلې وي، لويديځو هيوادونو ته جلب کړي، ځکه دغه ډول ميرمنې چې د ورپيښو ستونزو له وجې له دې ټولنې زړه توري شوې وي، لويديځوال يې په ډېره اسانۍ د افغان مسلمانې ټولنې په ضد استعمالولای شي.

په دې لړ کې لويديځوالو څه موده وړاندې د عايشې په نامه يوه افغانه ميرمن چې خپلې خسرګنۍ ترينه پوزه او غوږونه پريکړي وو، امريکاته بوتله او بيا يې څو ځله په مطبوعاتو کې د خپلو سياسي او کلتوري اهدافو د تحقق لپاره د يوې سوژې په دود کار ترې واخيست. اوس دا دی د ګلناز په نامه افغانه ميرمن وايي چې خارجيانو ترينه غوښتي دي، چې بايد خارج ته ورسره لاړه شي.

ګلناز چې تراوسه کم عمره ده غرضي خارجيان ورته هيله من دي، چې لويديځو هيوادونو ته د بيولو، او د څو کلنې تربيې نه وروسته يې د دې وړ کولای شي، چې په افغانستان کې د ښځو د حقوقو د غربي داعيې لپاره ترې کار واخلي.

افغان ميرمنې چې تراوسه له نړيوال شيطاني او عرياني تهذيب څخه تريوه حده خوندي پاته دي، بايد د اسلامي لارښوونو په رڼا کې خپل مقام او منزلت وپيژني، اسلام چې دوی ته کوم حقوق ورکړي دي، هغه دوی په هيڅ کلتور کې هم نه شي موندلای، نو بناء بايد په خپله راسخه عقيده محکمې او په خپله پرده کې خوندي پاته شي، د لويديځوالو فريبونه او شيطاني لومې دې وپيژني او په هيڅ قيمت دې اجازه نه ورکوي چې غرب يې د خپلو مصالحو لپاره استعمال کړي.

## په سرلوړي اولس د سرټيټو د واکمنۍ يوه ورځ

د کندهار ولايت د سپين بولدک ولسوالۍ مربوط د هډې غره په لمن کې څو خړه کي کلي آباد دي. د دې کليوخلک هم د نورو افغانانو غوندې دېرش کلنو جګړو تر وروستي حده ځپلي دي. فقر، بې روزګاري، لوږه او د ټولو لومړنيو اړتياوو نشتوالی هغه ستونزې دي، چې د نورو افغانانو غوندې د دې کليو خلک هم ورسره په لوی زړه او فولادي حوصلو ډغرې وهي. خو له بده مرغه د تاريخي کندهار په دې هوډياليو زامنواوس هغه ترخې ورځې او ناترسه شپې هم راغلې چې د دوی د زغم کاسه يې نږدې لبرېزه کړې ده.

رښتيا هم، هغه اولس چې د تاريخ په بيلابيلو پړاوونو کې د اور او وينو له ډول ډول تاړاکونو ژوندی او سرلوړی راووت، دا ځل د ننګ او پت له يوه خونړي آزمون سره دوڅار ښکاري. هغه څنګه؟ راشئ د بې پته زورورو او تش لاسو پتمنو د دې نامتوازنې اوله زغم پورته جګړې يوه صحنه دربانديې ووينم. بويه که د ويدو خوبولي ضميرونه يو څه وتخنوي.

د ۲۰۰۹ ميلادي کال د اپرېل د مياشتې د ۲۲ مې ورځې خبره ده. د جمعې مبارکه ورځ غرمه مهال و، د بولدک شين آسمان تورو وربځو پټ کړی و، د هډې غره د لمنې په دې کلي کې دا د خوښۍ ورځ وه، ځکه چې شپبه وړاندې کوم کليوال د سهيلي پښتونخوا له کوټې څخه واده راوړی و او د ورا له پرتمينې بدرګې سره يې ډولۍ کوزه کړې وه.





خو کليوال لا د واده په خوند نه وو پوه شوي، چې په کلي د امريکايانو د قوې د راتګ اوازه ګډه شوه. ۱۵ ټانګونه چې ۸ موټرسايکلان ورسره شا او مخته ځغاستل، بې واره په کلي راګډ شول. د کلي ځوانان، ماشومان او سپين روبي چې د څه وخت لپاره د واده خوښۍ د ژوند له ستوماني بې پرواکړي وو، يو ځل بيا د ترهې او دهشت ګبښې ونيول او هر يوه په زړه کې همدا پوښتل چې (اوس به څه کېږي؟ خدايه ...) د امريکايانو يوه ترجمان په لوډسپيکر کې په کليوالوچيغې کړې چې د کلي مخ ته دې د ټانګونو خوا ته راشي.

کليوال هم بې له ځنډه د دوی شاوخوا ته ورټول شول. امريکايانو له ځينو سپين ږيرو پوښتنې پيل کړې، چې د عوامو په چم له ځمکې اواسمانه ګډ ول. تاسو دلته ولې اوسېږئ؟ تاسو خوراک څنګه پيداکوئ؟ تاسوښاروته ولې نه ځئ؟ دا مونږ ته په لارو کې بمونه څوک پټوي او مونږ ته يې ولې په لاس نه راکوئ؟؟ دا او داسې نورې پوښتنې يې تر ځنډه کولې چې کليوالوپه لنډو ورځوابولې او ورته يې وويل چې مونږ د بمونو ښخونکي نه پېژنو. په پای کې يې دوه کارتنونه خبرې کړل او د کوچنيانو د لوبو سامانونه پلاستيکي پمپونه او تبليغاتيCD ګانې يې په خلکوتقسيم کړل چې په ټول کلي د تقسيم شويو سامانونو قيمت به ايله يو دوه زره افغانيوته رسيده.

وروسته راغلي خارجيان ټانګونو ته وختل د کلي لمرخاته خواته يې حرکت وکړ او دلته له يوې وړې غونډۍ سره ودرېدل. خو څه شېبه لانه وه وتلې چې بېرته په بېړه د کلي په خوا راستانه شول، دا ځل يې خدايزده څه په زړه کې ور ګرځيدلي و، رويه يې بيخي بدله وه، له لرې څخه يې په کليوالو په لوډسپيکر کې چيغې وهلې چې حرکت ونکړئ! تاسې تر محاصره لاندې ياست. په لوډسپيکر کې يې د طالبانو د يوه محلي ډلګۍ مشر قاري خير الله نوم هم ياداوه، چې د هر چا کره وي دوی

ته دې په لاس ورکړي، کنه کلی به سخت بمبار کړي او که د چا کره گير شي نو ټول کوروالا به د کيوبااو باگرام کړي.

ترجمان غږ کړ چې د کلي ټول نارينه دې د ټانگونو خوا ته راشي او ښځې دې نږدې مامتې (باغچې) ته راووځي. دلته ناورين دا و چې واده ته د وطني دود له مخې له لر او بر کليوڅخه ډېرې ښځې راغلې وې، چې د امريکايي ترجمان د امر له مخې بايد ټولې له کورو څخه راوتلې وای.

په دې شېبه کې د امريکايانو لهجه لا تونده شوه، د ټانگانو د شلکاوو ميلونه يې کلي ته سم کړل او د اخطار په شکل يې کليوالو ته گواښ وکړ، چې ډېر ژر دې ټول نارينه او زنانه کورونه پرېږدي او راو دې وځي. دوی په لوډسپيکر کې د قاري خيرالله نوم هم اخيست، چې ته نه شې خلاصيدلی! ته زمونږ تر ښارنې لاندې يې، که ټک دې وکړ ټول کلی به بمبارکړو. د کلي نارينه او ښځې ټول زړه نازړه له کورونو څخه راوتل او هماغه ځای ته تلل چې ترجمان ورته ښوولی و، تر دې چې د نوې را واده شوې ناوې په شمول د کلي او واده ته راغلي ټولې ښځې له کورو راووتلې.

دا يوه ډېره زړه دردوونکې صحنه وه چې د مغرور خو تش لاسي مؤمن اولس زلميانو د خپلو پتمنو تورسرو د سرو او تورو شالونو جوپې ليدلې چې له وېرې او حيا څخه په نيولو قدمو هماغې مامتې ته روانې وې. د غريو نيولو ځوانانو ډکو سترگو د حال په ژبه همدا ويل چې:

بې ننگه نه يمه مجبور يم اشنا
دا چې کوځوکې مې اغيارگرځي

د ټانگونو په محاصره کې له گير شويو کليوالو څخه بداخلاقه امريکايي سرتېرو او ترجمانانو پوښتنې او پلټنې پيل کړې، په دې وخت کې يې د وزير په





نامه يوکس چې د همدې کلي اوسيدونکی و، ونيو او له امريکايانو سره راغليو جاسوسانو وويل چې همدا د دوی مطلوب سړی يعنې قاري خيرالله دی. نيول شوی کس يې له ترلو وروسته بې درکه وواهه، د M١٦ ټوپکو په تېرو ميلانو يې په ملا، لاسونو او پښو تر هغو واهه، چې له حرکته وغورځيد. کليوالو ورته وويل چې دا وزير نوميږي، موږ يې پېژنو، د همدې کلي دی. خو دوی يوه هم نه منله آخر يې له هر يوه کليوال څخه جلاجلا د نيول شوي تن په اړه پوښتنې وکړې، ټولو ورته يو شان بيان وکړ. خو بيا هم د دوی شک نه خوت هماغه وزير نامي ته يې لوډسپيکر خولې ته ونيو چې هغه په کې ووايي: زه قاري خيرالله يم، زما ملگرو ټک ونکړئ، ټول تسليم شئ او راولاړشئ! له دې څخه معلومېده چې امريکايان په رښتيا سخت وېرېدل چې گوندې د طالبانو تر بريد لاندې به راشي.

بيا چې کله د نارينه وو څخه پوښتنې پای ته ورسېدې، نوامريکايانو د ترجمانانو په خوله وويل چې کيدای شي په ښځوکې د دوی مخالفين پټ وي ځکه موږ ته راپور راغلی وه چې طالبان همدا اوس په دې کلي کې وو نو ځکه موږ اړ يوچې د زنانه وو تلاشي هم واخلو دلته سپين ږيرو ډېر عذر وکړ چې اول خو تلاشي ته ضرورت نه شته بيا که يې تاسې ضرور بولئ يو داسې ترتيب به جوړکړو چې هم د بې ستري مخنيوی وشي اوهم ستاسو شک لرې شي. خو گوته په ماشه مغرورو کافرانو دا ډول غوښتنې چېرې اورېدې، په ډېره بې باکانه توگه يې د ټولوکليوالوپه وړاندې د ښځو تلاشي پيل کړه...

زه په الله سوگند کوم چې همدا اوس زما قلم د دې صحنې د ليکلو تاب نه لري خو د ځينو ناخبرو د خبرولو او د حقوق بشر (!) د مدعيانو د جناياتو د بربنډولو په مقصد نه غواړم چې دا پېښه هم د هغو زرگونو ورځنيو ناکردو په شان يوازې د اولس په زړه او خاطر د تلپاتې بوج او پټ زخم په شان پاته شي.

لنډه دا چې امریکایي عسکرو په خپله د ترجمانانو په ملتیا د ښځو تلاشي پیل کړه د ښځو شالونه یې ترې پورته کړل او د دموکراسۍ، پرمختګ او بیا ودانۍ شعاربازانو زما د اولس پتمنې خویندې میندې تر شنه اسمان لاندې سرتورې کړې. د دریو ترجمانانو له جملې څخه یو چې ډېر پست انسان ښکارېده ښځو ته یې ځینې داسې خبرې هم کولې چې ژبه ترې پناه غواړي. یوسپین ږیری چې له ډېره دوکه یې زړه خولې ته راغلی و همدې ترجمان ته یې وویل: نامرده تا باید دغه کافران زمونږ په رواج پوه کړي وای خو ته له دوی څخه ډېر بې غیرته یې.

په دې ډول تر ځنډه تالاشي روانه وه، چې بیا ښه ځنډ وروسته نور بایفوران او رینجر موټر راغلل چې د پولیسوپه ګډون نور مخپټې خلک پکې ول هغوی چې نیول شوی سړی ولید نو ویې ویل چې دا د طالبانومطلوب مشرنه دی نوبیا یې هغه خوشی کړ. خو د کلي سړي او ښځې له غرمې بیا ترتیاره ماخستنه همدلته د دوی په محاصره کې ولاړ وو، چې هره شېبه یې د زهرود غړپ غوندې ورباندې تېرېده. په دې وخت کې ښه شېبه باران هم وورېد، چې خلک یې لا ډېرپه تکلیف کړل. ماښام امریکایان په کورو ورننوتل د ځینوکورو دروازې او کړکۍ یې ماتې کړې، هنداري یې د ټوپکوپه میلانو راتویې کړې او په ځینو کوټوکې یې ګرنېټان پټاؤ کړل. په څو کورو کې وښواود سون بوټو ته اورونه ورواچول.

د شپې نږدې یوه بجه وه چې امریکایانویو له ارغنداوه او دوه نور له نږدې کلیو راغلي میلمانه لاسترلي ټانګونو ته واچول او د کندهار په خواپه داسې حال کې وخوځېدل چې تر شا یې د کلي ښځې او نر، ځوانان او سپین ږیري له ډکو زړونو او د انتقام له اورني احساس سره پرېښودل... .

هرڅه چې تېر شي هغه هېر شي

څنګه به هېر شي تالا شوي عفتونه





## یو بل برنس او یو بل شاشجاع

۱۲/ مې/۲۰۱۳

پرون یو بل برنس کابل ته راغلی، دا هغه پخوانی پرنګی (الکساندر برنس) نه دی، چې په انګریزانو د افغانستان د لومړني خرڅلاو اصلي دلال بلل کیږي، هغه برنس چې لومړی د یو جاسوس په حیث له هنده تر بخارا په مختلفو سیمو وګرځید، خو وروسته په ۱۸۳۹ م کال کې د بریتانیایي یرغلګر پوځ سره یوځای د شاشجاع په ملتیا کابل ته راغی او دلته یې ظاهرا د سفیر خو عملا د واکمن په حیث په دنده پیل وکړ.

د مؤرخانو په باور برنس په افغانستان د انګریزي لښکر د برید او په دې هیواد کې د برتانوي ښکیلاک د اوږدمهالې بوختیا اصلي طراح او عامل بلل کیږي، چې په همدې لار کې یې نه یوازې ځان بلکې خپل اهل و عیال هم له لاس ورکړل. نوموړي د ۱۹ مې پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې د شاشجاع په مشرۍ له افغاني غدارانو سره د افغانستان په خپلواکۍ معامله ترسره کړه او په دې سوداګري کې یې د انګریزي ښکیلاک په استازیتوب برخه درلوده، د پرنګي برنس کیسه هغه وخت ختمه شوه کله چې په ۱۸۴۱ م کال د نومبر په دوهمه نوموړی د کابل په خرابات کې د عبد الله خان اڅکزي او امین الله لوګري لخوا ووژل شو.

الکساندر برنس چې انګریزان یې (دختیځ په اسمان کې د لویدیځ ستوری) بولي، د عربي لارنس غوندې د بریتانیا په استعماري تاریخ کې ځانګړی مقام لري او د نوموړي د جاسوسي، استعماري او استثماري خدماتو له امله ورته پرنګیان په خورا احترام قائل دي. دغه پرنګی جاسوس چې په ډېرو اولسونو کې یې شیطاني

چالونه بریالي شوي وو، په افغانستان کې له خورا عبرتناک شکست سره مخ شو، چې نه یوازې په خپله په کې له منځه لاړ بلکې د زرگونو انگریزي سرتیرو ترڅنگ یې افغاني لاسپوڅي لکه شاشجاع او نور هم په عبرتناک ډول ترتیغ تېر شول.

د الکساندر برنس او شاشجاع تر عبرتناک مرگ وروسته داسې اټکل نه کیده، چې بیا به په دې غدار وژونکي ښار (کابل) کې کوم بهرنی او کورنی د دې هیواد د خرڅلاو په معامله سره جرگه شي، مگر داسې ښکاري لکه لویدیز یرغلگر او لاسپوڅي یې چې په سترگو کې د شرم او حیاء په نامه څه نه لري، ځکه دا دی یو ځل بیا وینو چې د کابل د انگریز وژونکو سیمو (بالاحصار، چنداول خرابات او بې بي مهرو) ترمنځ په (ارگ) کې یو بل برنس او یو بل شاشجاع د افغانستان د خرڅلاو په معامله سره ناست دي او یو ځل بیا د وزیراکبر خان، امین الله لوگري، میرمسجدي کوهستاني، عبد الله خان اڅکزي او محمدشاه بابکرخېل په خاوره د معاملې او قمار خوبونه ویني.

نوی برنس یوازې د مختاړي په بدلون (ویلیم برنس) د امریکا د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال دی چې د امریکایي یرغلگرو د دایمي حضور د طراحۍ لپاره کابل ته راغلی او نوی شاشجاع حامدکرزی دی، چې نوي برنس ته یې د کابل په ارگ کې غوړه میلمستیا تیاره کړې. د برنس جاروهونکي (نړیواله میډیا) او د شاه شجاع تنخوا خواره (کورني مطبوعات، فیسبوکیان او نور بې شرف خېل) د دې لپاره چې د نوي برنس او نوي شاشجاع ترمنځ له بدمرغه معاملې څخه عامه توجه په بله کړي، خورا نویو اونادودو تبلیغاتو ته یې زور ورکړی. دوی د دې معاملې د پټولو لپاره لا له وړاندې د هیواد په ختیځ (گوشته) کې په هغو پوستو څو ډزې کړي دي، چې د همدې شاشجاع کرزي د حکومت په مهال د برنس لخوا یوه بل برنسي رنجیت سنگ ته ورسپارل شوي دي، خو اوس د دې لپاره چې د گوشتې غوندې ټول افغانستان په حیاء او پرده کې برنس ته ورقباله کړي، د خپلو جار





چیانو (مطبوعاتو) له لارې د گوشتې موضوع گرمه ساتي، تر څو تردې بوسو لاندې په امریکا د هیواد د خرڅلاو اوبه پټې تیرې کړي.

که برنس او شاشجاع د سرلوړي افغانستان د خرڅلاو په معامله ناست دي، نو د وزیر اکبر، عبد الله خان، محمدشاه خان، میرمسجدي او امین الله لوگري لمسیان هم کرار نه دي ناست، بلکې د شاشجاع او برنس دواړو ترغوږونو یې ورتیره کړې، چې که له دې شیطاني معاملې لاس وانخلي، انجام به یې کټ مټ د لومړني برنس (الکساندر) او شجاع الملک په شان وي.

نوی شاشجاع او پلویان یې د دې په ځای چې اولس ته خپل کردار اوپیل کړي معامله سپینه کړي، یوازې دښځو په شان پیغورونو او تهمتونوته یې کار ویلی. دوی د وزیراکبر خان او میرمسجدي خان په لارویانو او د آزادۍ په مبارزینو تور پورې کوي، چې د آی ایس آی په اشاره کار کوي، خو پروسږن معلومات وایي، چې نوی شاشجاع / حامدکرزي تر پاچاهي وړاندې پنځلس کاله د آی ایس آی تنخوا خوړلې، چې د کویټې په ازبک بازار کې به د ده دیوه همنامي (ډگروال شجاع خانزاده) لخوا هره میاشت د ده سپین ږیري پلار ته سپارل کیدله (دعوت ویب پاڼه)

د برنس او شاشجاع د لوبې له امله د افغانستان په پنځه زره کلن وجود باندې یو ځل بیا سخته چنه بازي پیل شوې ده، یوه خوا چې پوره یوولس کاله یې ډالر هضم کړي، د لومړني برنس او شجاع الملک په ارواگانو یې قسم خوړلی، چې دا وطن به د وړاندې اداء شوي قیمت (شپاړس میلیارده ډالرو) په عوض کې دوهم برنس ته ورسپاري، د دې لپاره چې د افغان وطن د شپږنیم لکه مربع کیلومتري وجود سودا په سمه توگه ترسره شي، دوی د وجود د خرڅلاو لپاره د خپل پلورلي غوږ (گوشتې) دگټلو غوغا شروع کړې، ترڅو د غوږ د بولۍ په شور کې د تن سودا په قاچاقي ډول تیره کړي.

خو بله خوا د لومړني برنس او شاشجاع د قاتلانو امين الله خان لوگري او وزيراکبر خان لمسيان دي، چې خداى په قرآن يې قسم خوړلى چې نه به څوک ترې د مور وطن (تن) خرڅ کړي او نه هم غوړ (گوشته)

وروستي معلومات وايي چې ويليم برنس لا هم په ارگ کې دى او کرزى خان ورسره دم په دم لاسليکونه کوي، داسې ښکاري چې د پلورل شوي غوړ (گوشتې) غوغا د برنس د عالمگيرې ميډيا له برکته د يوشمير خلکو ذهنونه مغشوش کړي دي، نو ځکه يې د پنجشنبې په ورځ د شاشجاع کرزي په هغو خبرو د پخوا غونډې عکس العمل ونه ښود چې ويل يې برنس خپلو ته به ۹ دانې پخې قرارگاوې ورکړم.

وخت کم او مقابله سخته ده، معلومه نه ده چې تقدير څه ليکلي، خو که تاريخ ترازو وگڼو، برى د نائب امين الله د ملگرو دى او لرې نه دي چې د برنس له ترپکو وروسته د بالاحصار په شاوخوا کې شاشجاع هم د غازيانو تر تورو لاندې وروستۍ ناره پورته کړي، چې (نـ نـ نــــکنيد، ســ ســ ســرکار بې گناه است)





## بيا ويجاړول، د نيم افغانستان يوه بله ستونزه

۲۰۱۸/ فبروري/۱۴

د روان کال د فبرورۍ د مياشتې په ۹ مه نيټه د بي بي سي په گډون يو شمير رسنيو خبر ورکړ چې د امريکا له ملاتړه برخمن افغان ځواکونه د هيواد شمال تخار ولايت کې د درقد هغه ښارگوټي ته ورسيدل چې له دې وړاندې د طالبانو په واک کې و. خو رسنيو دا ونه ويل چې وروسته هلته څه پيښ شول؟

د افغانستان په شمال ختيځ تخار ولايت کې د ينگي قلعه، خواجه بهاوالدين او درقد ولسوالۍ له يو بل سره پيوسته پرتې دي. د دې ولسواليو خلکو څه موده وړاندې د يوه مشترک اقدام له مخې فيصله وکړه چې د شور عرب په سيمه کې د درې واړو ولسواليو گډ بازار جوړ کړي. دا له بيکارۍ او اقتصادي ستونزو سره د مخ افغان اولس لخوا د خپل ډول نوى اقتصادي تشبث و چې له مخې به يې د دريو ولسواليو خلک د يوه گډ مارکيټ او کارځاى مالکان گرځيدل او شايد په محلي کچه يې اوزگارو ځوانانو ته کار پيدا او د اقتصادي انکشاف څرخ ته حرکت ورکړى واى.

په کومه دښته کې چې د دغه ښارگوټي نقشه وايستل شوه د شور عرب سيمه ورته وايي. دا سيمه د درقد ولسوالۍ مربوط ده خو د ينگي قلعه او خواجه بهاء الدين ولسواليو اوسيدونکي هم ورته مساوي لاسرسى لري. د شور عرب ښارگوټي له بنسټ ايښودلو وروسته ډېره زر وده وکړه. د څو مياشتو په جريان کې په کې له زرو زيات دوکانونه په پاخه ډول جوړ او پرانيستل شول، د گڼو نورو مارکيټونو کار

هم په چټکۍ روان و، د مسجد، ښوونځي، کلینک، لوبغالي او نورو عامه تاسیساتو لپاره هم ځمکې تعین شوې او د ځینو د جوړولو کار پیل شوی و. په وروستیو کې ښار ګڼه ګوڼه پیدا کړې وه او ورځ په ورځ د پراختیا او غوړېدو په حال کې و.

خو د تخار ولایت له نورو ښارونو سره د دې ښارګوټي توپیر په دې کې و چې دغه سیمه د طالبانو په واک کې وه، حکومتي قواوې چې د دې ښارګوټي د نیولو لپاره یې عملیات پیل کړي وو طالبانو ورسره ځکه مقاومت ونکړ چې د خلکو شتمنیو ته د زیان اوښتو او د بازار د تخریب ویره وه. طالبان له دې سیمې په شا شول، اما کله چې حکومتي عسکر د شور عرب ښارګوټي ته ورسیدل، سم د واره یې د ښار په نړولو پیل وکړ. حکومتي ځواکونو له ځان سره ګڼ شمیر اسکواتورونو راوستي وو چې په وسیله یې د شور عرب د ښارګوټي د زر شاوخوا دوکانونه، مارکیټونه، مسجد، روغتون او نور عام تأسیسات په منظم ډول تخریب او یو ودان ښارګوټی په نړېدلې کنډواله بدل شو.

د شور عرب د ښارګوټي سیستماتیک او عمدي تخریب د دا ډول پیښو لومړنۍ نه ده، بلکې د افغانستان ټولې هغه سیمې چې د طالبانو تر واک لاندې دي عامه تاسیسات لکه بازارونه، ښوونځي، مدرسې او حتی روغتونونه یې د امریکایي او داخلي ځواکونو لخوا د عمدي تخریب له ګواښ سره مخامخ دي.

## څومره سیمه د منظم تخریب له ګواښ سره مخ ده؟

طالبان چې له تیرو ۲۳ کلونو راهیسې د افغانستان په سیاسي صحنه کې فعال دي او په افغانستان د امریکا له برید وروسته یې د تیرو ۱۷ کلونو په جریان کې د کابل د حکومت په وړاندې د یوه موازي نظام په حیث مقاومت کړی همدا اوس د افغانستان له نیمایي زیاتې سیمې تر واک لاندې لري.





د تېرې جنورۍ میاشتې په دیرشمه نیټه په افغانستان کې د بي بي سي دفتر په خپله خپره کړې سروې کې وویل چې د افغانستان په اویا فیصده اراضي طالبان ښکاره فعالیت لري.

بي بي سي وویل چې د دغې سروې معلومات یې د افغانستان په ټولو ۳۹۹ ولسوالیو کې له ۱۲۰۰ څخه زیاتو سرچینو نه ترلاسه کړي چې وروسته یې د هرې پیښې پوښتنه له ۲ تر ٦ سرچینو سره شریکه کړې چې د ټولو له لوري تائید شوې.

د بي بي سي د سروې په پایلو کې راغلي چې ۱۵۰۰۰۰۰ پنځلس ملیونه خلک په داسې سیمو کې پراته دي چې د طالبانو تر ولکې لاندې دي او یا طالبان پکې په ښکاره ګرځي او بریدونه ترسره کوي. راپور لیکلي چې طالبان په ګڼو ولسوالیو له مکمل تسلط تر څنګ په ۲٦۳ ولسوالیو کې چې د افغانستان ٦٦ سلنه خاوره تشکیلوي فعال او څرګند حضور لري.

د افغانستان دغه تر نیمایي زیاته جغرافیه چې د دې هیواد نیمایي نفوس (۱۵ میلیونه خلک) په کې اوسي زیاتره کلیوالي او اطرافي سیمې دي. په دې سیمو کې ګڼ شمیر ښارګوټي هم شته چې واک یې د طالبانو په لاس کې دی او عام خلک په کې ورځنۍ کاروبار او تجارتي راکړه ورکړه ترسره کوي. خو په دې وروستیو کې امریکایانو او د هغوی ملګرو داخلي عسکرو د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې د ښارګوټو او د نورو عام المنفعه تأسیساتو د منظم تخریب عملیه پیل کړې چې د تخار د شور عرب ښارګوټي تخریب یې یوه تازه بیلګه وه.

## نړول شوي بازارونه

د امریکایانو او کابل حکومت لخوا د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې (چې د افغانستان تر نیمایي زیاته اراضي تشکیلوي) د بازارونو تخریب په دې وروستیو کې

زور اخيستی. په هلمند کې د سنګين بازار چې سل کاله پخوا ودان شوی و او په تيره يوه نيمه لسيزه کې يې ډېر انکشاف کړی و، کله چې په تير پسرلي کې ترې داخلي ځواکونه او د هغوی امريکايي ملاتړي وتل، نو له وتلو سمدستي وروسته يې د سنګين ټول ښار په منظم ډول بمبار او داسې تخريب کړ چې د دې ښار په زرګونو دوکانونه، مارکيټونه، مساجد، حکومتي ودانۍ او نور تاسيسات يې له خاورو سره برابر کړل. د سنګين بازار د منظم او قصدي تخريب په پايله کې د سنګين د قومندانۍ هغه تاريخي ودانۍ هم له منځه لاړه چې په افغانستان کې د نيمې پيړۍ پخوا شاهي نظام د وخت ميراث و او تاريخي اهميت يې درلود. امريکايانو په دې بمبار سره په سنګين بازار کې ټول هغه ديوالونه بيرته ونړول چې په تيرو څو کلونو کې يې دلته د ولايتي بيارغونې د پروګرام له مخې جوړ کړي وو. له سنګين څخه د شاتګ په تعقيب د دې ښار په مکمل تخريب سره امريکايانو افغان اولس ته پيغام ورکړ چې زموږ بيا رغونه او انکشافي کارونه په دې شرط مشروط دي چې دلته به واکمني هم زموږ وي او که په کومه ورځ موږ له افغانستان څخه وځو، نو دا مو حق دی چې خپل انکشافي کارونه او جوړ کړي تعميرات هم بيرته په لوی لاس تخريب کړو.

د سنګين د بازار له تخريب وروسته امريکايي او داخلي عسکرو په تيرو څو مياشتو کې په هلمند کې څو نور بازارونه هم ړنګ کړل. په موسی کلا ولسوالۍ کې ښايسته بازار ته داخلي او امريکايي کوماندويان د هوا له لارې ورغلل او په شپه شپه کې يې په بمونو لوټه لوټه کړ، په ګرمسير ولسوالۍ کې دوشنبه بازار هم په ورته ډول ونړول شو. د هلمندپه جنوب ديشو ولسوالۍ کې رباط بازار د امريکايي بي دوه پنځوس طيارو لخوا بمبار او ټول دوکانونه يې تخريب شول. ياد شوي ښارګوټي چې د اولس لخوا جوړ شوي او د سلګونو ميليونو ډالرو په بيه تجارتي اموال په کې پراته و له ټول هست او بود سره له منځه يووړل شو. د دې نړول شويو



د قلم له سنګره
اشغال راوړې برمرغۍ او جنګي جنايات

ښارګوټو يوازينی جرم دا بلل شوی چې دا په هغه نيم افغانستان کې واقع و چې د طالبانو تر واک لاندې دی.

## تخريب شوي روغتونونه

د طالبانو تر واک لاندې نيم افغانستان کې يوازې بازارونه په تخريب نه دي محکوم، بلکې کلينکونه او روغتيايي مراکز هم د امريکايانو لخوا د اشد مجازات (تخريب) وړ بلل کيږي.

د وردګو ولايت د سيدا اباد ولسوالۍ د تنګي دره له تيرو لسو کلونو راهيسې د طالبانو تر واک لاندې ده، د دې سيمې خلک غريب بزګران دي. د سره صليب موسسې د دې سيمې د خلکو لپاره کلينک جوړ کړ تر څو خلکو ته لومړنۍ مرستې، واکسينونه او طبي خدمات عرضه کړي. خو يوه شپه امريکايي او افغان کوماندويانو ناڅاپه په دې کلينک چاپه ووهله، د کلينک طبي سامانونه يې څه تخريب او څه چور کړل او د روغتون وداني يې په بمونو والوځوله. د وردګو ولايت په جلګه ولسوالۍ کې تير پسرلی په ورته ډول يو بل کلينک هم ځکه ونړول شو چې د طالبانو تر واک لاندې سيمې عامو خلکو ته يې طبي خدمات رسول.

د پکتيکا ولايت ګيان ولسوالي يوه له هغو غرنيو سيمو څخه ده چې واک يې د طالبانو په لاس کې دی. يوې خيريه مؤسسې په دې سيمه کې د اولسي خلکو لپاره روغتون جوړ کړ، خو امريکايي او داخلي عسکرو په سيمه کې د عملياتوپه مهال د سيميز بازار دوه ساتونکي ووژل او کلينک يې په بمونو والوځاوه.

بادغيس ولايت د افغانستان يوه له هغو سيمو ده چې خلک يې تر نورو ډېر غريبانه ژوند لري. د دې سيمې خلک حتی لومړنيو طبي خدماتو ته هم لاسرسی نه لري. يوې خيريه مؤسسې د بادغيس، د غورماچ ولسوالۍ د تيز ناوې په سيمه

کې د عامو خلکو د علاج لپاره روغتون جوړ کړی و چې د امريکايي الوتکو لخوا د نامعلومو دلائلو په اساس بمبار، يو ساتونکی يې قتل او کلينک په بشپړ ډول له منځه یووړل شو.

## هلته چې له ښوونځيو پوستې جوړې دي

د افغانستان د نيمايي نفوس (هغه چې د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې ژوند کوي) بله ستونزه دا ده چې کله حکومتي عسکر په دې سيمو کې عمليات وکړي او کومه سيمه نيسي، نو د سيمې ښوونځي، مدرسې او تعليمي اداري په پوستو بدلوي. د کندهار ښار په ګاونډ کې د پنجوايي، ژړۍ او ارغنداب ولسوالۍ چې پخوا د طالبانو تر واک لاندې وې، کله چې دا سيمې امريکايي ځواکونو ونيولې، نو خپل محلي پوليس (اربکيان) يې په هغو ښوونځيو کې ځای په ځای کړل چې پخواپه کې د سيمې ماشومانو درس وايه.

په دې ولسواليو کې تر ۳۰ زيات ښوونځي په امنيتي پوستو بدل شوي دي. د حکومت د امنيتي ادارو مشران دليل وايي چې دوی په دې سيمو کې د نويو پوستو او پوځي تاسيساتو لپاره لازمه بوديجه نه لري نو ځکه له ښوونځيو کار اخلي. دغه راز څرنګه چې د اکثره ښوونځيو ودانۍ پخې جوړ شوې او د سپکو وسلو د مرميوپه وړاندې مقاومت لري حکومتي عسکر د خامه ودانيو په نسبت د ښوونځيو پخو ودانيو ته ترجيح ورکوي. خو د دې کار منفي نتيجه دا ده چې له امله يې په لسګونو زره ماشومان له خپل اساسي حق (زده کړو) څخه بې برخې پاته کيږي. دا چې همدا اوس د هيواد په جنګي سيمو کې د بي سوادۍ کچه زياته ده يو علت يې همدا بلل کيږي چې د ماشومانو ښوونځي حکومتي عسکرو او مليشو اشغال کړي دي.





## وروستۍ خبره

د داخلي قواوو او د هغوی د امريکايي ملاتړو لخوا په منظم ډول د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې د بازارونو او کلينکونو نړول او د ښوونځيو په وړاندې نامسؤلانه چلند د دې ښکاره نښې دي چې امريکايان او د کابل حکومت چارواکي د افغانستان د هغه نيمايي اولس حقوقو ته کومه اعتناء نه لري او نه هم د هغوی لپاره د ژوند، رفاه او اقتصادي انکشاف هغه حقوق په رسميت پيژني چې دوی ورباندې په خپلواعلاميو او تبليغاتو کې ټينګار کوي.

بازار، کلينک او ښوونځی که هر ځای او د هر چا تر واک لاندې ساحه کې وي، د اولس مال دی او د عام المنفعه تاسيساتو له جملې بلل کيږي. د دا ډول تاسيساتو نړول په حقيقت کې د اولس په مرۍ پښه ايښودل او له اولس څخه د ژوند حق اخيستل دي.

د اشغالګرو د واک له ساحې بهر د هيواد هغه نيمايي نفوس چې د نړيوالو د ميلياردونو مرستو له جملې ورته لږ انداره هم نه ده رسيدلې، اقلا دا حق خو لري چې د خپلو مټوپه زور او خولو په تويولو ځان ته دوکان او بازار جوړ کړي تر څو ځان او خپل اولاد ته يوه ګوله ډوډۍ پيدا کړي. د اولسي خلکو د بازارونو نړول او د ژوند د اساسي اسانتياو ترې اخيستل په دې علاوه چې يوه غير ديني او غير ملي کړنه ده بلکې د انسانيت په لحاظ هم نامشروغ او حتی ظالمانه عمل بلل کيږي. که د هيواد په لر اوبر کې تر بيلابيلو تورونو او عنوانونو لاندې د اولسي خلکو د دوکانونو، ښارګوټو او کلينکونو د تخريب عمليه ونه درول شي نو دا به د افغانستان د غريب اولس ستونزې نورې هم زياتې او د سترو اولسي غميزو لامل به وګرځي.

## په (آزاد بازار) کې ماشومان هم خرڅيږي

۱۴ جنوري/۲۰۱۳

څو کاله وړاندې افغانستان ته د امريکايي يرغل د پساوند په دود له دموکراسۍ سره غبرګه د آزاد بازار اصطلاح هم راغله، راډيوګانو ويل چې د دې اقتصادي نظام له برکته به افغانان د پيسو په راټولولو او ګڼلو پسې ونه رسيږي او ټول وطن به د نيويارک د وال سټريټ غوندې د پيسو ډيپو شي.

د آزاد بازار په اړه ويل کيدل چې دا د کمونيستي اقتصاد (اشتراکيت) په مقابل کې د لويديځ بديل اقتصادي موډل دی، چې د آدم سميت په نوم يې کوم چا اساس ايښی، د آزاد بازار نه ظاهرا مطلب دا و چې مارکيټ بايد په تمامه معنی د سرمايه درانو او مستهلکينو خوښې ته وسپارل شي او په بازار کې د حکومت هر ډول مداخله قانونا ممنوع اعلان شي.

د همدې فکر په اساس و چې دموکراسۍ خپلو د نوي اساسي قانون د تدوين په مهال د اساسي قانون په لسمه ماده کې وليکل چې (په دولت لازمه ده چې د آزاد بازار د نظام او اصولو په اساس د پانګونو او خصوصي تشبثاتو ملاتړ، حمايت او د امنيت تضمين وکړي) په دې توګه افغانستان رسما د آزاد بازار يا پانګوال نظام رحم کرم ته وسپارل شو.

د افغاني کمونيستانو نادودې په خپل ځای خو په افغانستان کې د اشتراکي اقتصادي نظام د شکست يوه وجه دا بلل کيږي، چې افغاني کمونيستانو د مارکس له درجه بندۍ سره سم د سوسياليزم سلسله مراحل نه وو مراعت کړي بلکې بې وخته يې کارګري انقلاب برپا کړی و. ځکه مارکس ويل چې کارګري انقلاب بايد د سرمايه دارۍ په ضد راپورته شي، خو افغاني کمونيستانو له بيړې کار واخيست او داسې مهال





چې افغانستان د فيوډاليزم په مرحله کې و او کارګرانو هيڅ شتون نه درلود، دوی سوسيال انقلاب ته خيز وهل.

لږ تر لږه په اقتصادي بخش کې د اشتراکي تجربې په شان د سرمايه دارۍ او آزاد بازار په برخه کې هم همداسې بيړنۍ او غيرمسلکي چلند ترسره شو.

د مارکس سيال او د سرمايه دارۍ معتقد ژان ژاک روسو د اشتراکيت په شان سرمايه دارۍ ته هم تکاملي مراحل ټاکلي، چې له پنځګونو مراحلو طی کولو وروسته بايد د آزاد بازار اقتصاد په کې تطبيق شي.

خو د افغانستان ديموکراسۍ خپلو په داسې مهال چې افغانستان په لومړنۍ مرحله (دوديز اقتصاد) کې قرار درلود، د څلورمليارده ډالرو په قيمت وارداتو په مقابل کې افغانستان يوازې د څلور مېليونه ډالرو معادل صادرات لرل او ملي اقتصاد يوازې په استهلاک کې خلاصه کيده، د مطلق آزاد بازار اقتصاد اعلان کړ.

په داسې حال کې چې اقتصادي وضعيت په هيڅ شکل آزاد بازار ته اماده نه و او نه يې خلکو په اړه معلومات درلودل، د اقتصادي مطلقه آزادۍ اعلان د حرفوي مالي ځبيښونکو، ميلونرانو او محتکرينو لپاره خورا په زړه پورې فرصت و، ترڅو د دربدره افغان ملت هډوکي نور هم وشپيلوي او هيواد له عامه فقر اوطبقاتي ناورين سره مخامخ کړي.

همداسې وشول، د آزاد بازار په سيوري کې د مارکيټ واک په بشپړ ډول څو بې رحمه سرمايه دارانو ته وسپارل شو، د نرخ او نرخنامې پديده د اقتصادي اخلاقو سره يوځای له منځه لاړه او د عوامو استثمار پيل شو. د توکو نرخونه ټاکل د بازاري استثمارګرو د خوښې خبره وګرځيده او په وړاندې کوم چا د اعتراض غږ نه شوای اوچتولی، ځکه داساسي قانون لسمې مادې همدغه وضعيت (آزاد بازار) په رسميت پيژندلی و.

سره له دې چې تراوسه د نړۍ په هيڅ هيواد کې سل فيصده آزاد اقتصاد شتون نه لري، بلکې د ټولو هيوادونو بازارونو نسبي (کمه يا زياته) آزادي لري، خو په

افغانستان کې بازار په مطلق ډول آزاد اعلان شواو د افغان مستهلکینو د نفعې په خاطر هیڅ استثناء هم په رسمیت نه پیژندل کیدله.

د آزاد بازار د یوولس کلن چلښت په پایله کې اولس په تیره د ښارونو عام اوسیدونکي په سختۍ وځپل شول، پانګه یوازې د لږ شمیر سرمایه دارانو په بانکي حسابونو کې راجمع شوه او اولس یو ځل بیا دپولۍ ټک ته کیناست.

د آزاد بازار د اقتصاد په پایله کې که له یوې خوا په ښارونو کې د سوالګرونو لښکرې په څپوشوې بله غاړه ځینې داسې نادودې او زړه دردونکي پیښې هم رامنځ ته شوې چې په رښتیني توګه یې د بازار آزادي په اثبات ورسوله.

د ۲۰۱۲ کال د دسمبر په ۲۷ پژواک اژانس خبر ورکړ چې د پروان په چاریکار ښار کې یوې کورنۍ خپله ماشومه لور په ۷ زره افغانۍ پلورلې ده، همدا راز دا تیره شپه د جنورۍ په ۴ مه امریکا غږ آشنا راډیو وویل چې د بلخ ولایت په مزار شریف ښار کې یوې کورنۍ خپل زوی د اقتصادي ستونزو له امله په ۳٦ زره افغانۍ پلورلی دی.

دا پیښې څرګندوي چې د عامو افغانانو مالي وضعیت په کوم حالت کې قرار لري، په داسې حال کې چې د هیواد زیاتره ماشومان د خوارځواکۍ له امله ځوریږي یا ژوند له لاسه ورکوي خو د ولسمشر د لومړي مرستیال په ګډون حاکمه طبقه د شوګر اولوړ فشار ناروغان دي او هره ورځ خپلې وازدې ویلوي، معلومیږي چې آزاد بازار یا د سرمایه دارانو نظام ترورستۍ کچې بیداد کړی.

همدا اوس په کابل کې ساړه تر هډوکو وځي، خو د لرګیو بیه تر هغو ګاونډیو سیمو لوړه ده چې له افغانستانه د سون لرګي ورته صادریږي.

که د بازار آزادي او په ټوله کې اقتصادي چلند اواخلاق په همدې حال پاته شي، لرې نه ده چې هیوادوال د خپلو اولادونو په شمول د خرڅلاو ټول توکي له لاسه ورکړي، چې بیا به وضعیت د کنترول نه وي.





## د دموکراسۍ د تاریخ تر ټولو مسخره ټاکنې

۲۲/ اپریل/۲۰۱۴ میلادي

د ۲۰۱۴ میلادي کال د اپریل په څلورمه نیټه، نړیوالو او داخلي ملګرو یې د خپل نمایشي دموکراتیک بهیر د تمثیل او د هیوادوالو د غولولو لپاره د ولسمشرۍ او ولایتي شورا ګانو ټاکنې ترسره کړې.

ټاکنې داسې مهال ترسره شوې، چې د هیواد په ۸۰فیصده خاوره حکومت سلطه نه درلوده، له ټاکنو وړاندې د مجاهدینو د تندریزو بریدونو له امله د حکومت تر واک لاندې سیمې هم په بشپړه توګه د وهم فضاء لاندې کړې وې، بهرني څارونکي له هیواده تښتیدلي وو او علاوه لا دا چې موسمي شرایط هم خورا ناوړه او د هیواد په اکثره سیمو کې د ټاکنو په ورځ واوره یا باران وریده.

په همدې حال کې چې دښمن د ټاکنو خلاف هر ډول خبر نشرولو باندې رسمي بندیز لګولی و، د ټاکنو پروسه تمثیل شوه، د دې لپاره چې تښتیدونکو یرغلګرو خپلو اولسونو ته افغان جګړه ګټلې ښکاره کړې او دلته یې د دموکراسۍ د تحکیم ثبوت ورته وړاندې کړی وي غربي رسنیو د خپلو پراخو تبلیغاتو په مټ د ټاکنو پروسه بریالۍ وښوده، مګر حقیقت سل فیصده سرچپه وو. که دا ټاکنې په یوه جمله کې تعریفوو نو باید ووایو، چې د هیواد په ۸۰ فیصده ولس میشته سیمو کې هیڅ ټاکنې ونه شوې او په پاتې شل فیصده کې چې کومې ټاکنې وشوې، له داسې رسوا درغلیو، زوربازیو او تقلب څخه ډکې وې، چې شاید ددموکراسۍ تاریخ یې سارې نه وي لیدلی، دلته به هڅه وکړو په لنډو د دې مسخره ټاکنو یو انځور

ستاسو مخې ته کيږدو چې شايد د دې پروسې په اړه په پوهاوي او روښاوي کې درسره مرسته وکړي.

## ۸۰ فيصده غيرښاري سيمې

د افغانستان په ۸۰ فيصده کليوالو يا غيرښاري سيمو باندې مجاهدين سلطه لري، په دې سيمو کې هيڅ ټاکنې ترسره نه شوې، مجاهدينو له ټاکنو وړاندې په پراخه پيمانه د اولس د تنوير لپاره کار کړی و، اولس يې په دې قانع کړی و چې ټاکنې امريکايي غولوونکي پروسه ده او په کې شرکت د دين او وطن سره لويه غداري ده. مجاهدينو په همدې موخه ليکلي پيغامونه او شبنامې هم ويشلي وې چې د انتخاباتو په ورځ ډېرې مؤثرې ثابتې شوې د هيواد د ۸۰ فيصده کليوالو سيمو اوسيدونکو له ټاکنو سره بشپړ پريکون وکړ او هيڅ رايه يې وانه چوله.

حکومت هڅه وکړه چې د هغو ولسواليو په مراکزو کې سايټونه پرانيځي چې اطراف يې د مجاهدينو په ولکه کې دي، خو په دې برخه کې يا د سايټونو په پرانيستلو ونه توانيدل او يا يې هم که پرانيستي وو هيچا په کې شرکت ونه کړ، نو ځکه چارواکو په خپل مزاج صندوقونه له رايو ډک کړل.

دغه سيمې چې ټاکنې په کې نه دي ترسره شوي د کوم معلوم ولايت يا د هيواد د کوم خاص سمت پورې تړلي سيمې نه دي، بلکې له بدخشانه نيولې بيا تر نيمروز د درست افغانستان هغه سيمې چې د مجاهدينو ورباندې سلطه ده ټاکنې په کې نه دي ترسره شوي، او خلکو يې په کلکه دغه پروسه تحريم کړې ده.

## ۱۰۸۸ جهادي بريدونه

لکه څرنګه چې تر ټاکنو مخکې ورځې د جهادي عملياتو له اړخه بيسارې وې د ټاکنو ورځ هم د جهادي عملياتو له اړخه يوه نمونه ورځ وه. په دې ورځ





مجاهدينو په ښاري او د حکومت تر ولکه لاندې سيمو کې د ټاکنو د ګډوډولو لپاره ۱۰۸۸ جهادي عمليات ترسره کړل. د دې عملياتو په لړ کې د لسګونو ولسواليو په مراکزو کې چې دښمن کوم انتخاباتي سايټونه خلاص کړي وو بيرته بند شول، په ځينو سيمو کې انتخاباتي سايټونه د مجاهدينو لخوا وسوځول شول، د مجاهدينو عمليات خورا دقيق وو او داسې طراحي شوي وو چې ولسي خلکو ته په کې هيڅ زيان ونه رسيږي، له همدې امله د حکومت د اعتراف له مخې په دې ورځ که څه هم د حکومتي عسکرو او منسوبينو مرګ ژوبله خورا زياته وه خو د ولس له منځه يوازې ۴ تنه دجګړو قرباني شول. د کورنيو چارو وزير عمر داودزي د ټاکنو نه وروسته وويل چې د دې بريدونو په ترڅ کې د دوی ۸۰ تنه عسکر ټپيان شوي او لسګونه وژل شوي دي خو مجاهدينو د دښمن دتلفاتو شميره تردې لوړه ښودله.

د دې بريدونو له امله تر ډېره د ولسواليو په مراکزو او د ښارونو په څنګلورو هغو سيمو کې چې د مجاهدينو د مرميو تر رسد لاندې وې، د ټاکنو پرانيستل شوي مراکز وتړل شول او د ټاکنو ټغر د ښارونو ترمابين پورې ورټول شو، د مجاهدينو عمليات نه يوازې د ټاکنو په مراکزو وو بلکې اطرافي سيمو ته د ټاکنيزو موادو او رای پاڼو د انتقال په کاروانونو هم ترسره کيدل، په دې لړکې په اکثره سيمو کې ټاکنيز مواد يا د پاڼو ډک صندوقونه په نيمايي لارو کې له منځه يووړل شول.

## تاريخي درغلۍ

سره له دې چې درغلۍ په ټولو سيمو کې ترسره شوې خو تر ټولو پراخې درغلۍ د ولسواليو په هغو مراکزو کې وشوې چې عامو خلکو په ټاکنو کې ګډون ونه کړ او صندوقونه چارواکو ته پاته شول، دغه راز هغه سيمې چې ځيني محلي زوروکان په کې مسلط دي هم د پراخو درغليو شاهدې وې.

د افغانستان په تر نيمايي زياتو ولاياتو کې په ټاکنيزو سايټونو کې راى پاڼې کمې شوې، د ټاکنو کميسيون وويل چې دوى هر مرکز ته ۶۰۰ راى پاڼې ليږلي چې که په يوه دقيقه کې يوه رايه ولويږي بايد تر لسو ساعتونو راى پاڼې ختمې نه شي، مګر دا چې په اکثره مراکزو کې سهار او يا هم غرمه مهال راى پاڼې خلاصې شوې علت يې داوو چې د سايټونو کارکوونکو د پروسې له پيل نه وړاندې پاڼې صندوقونو ته اچولې وې، نو ځکه چې خلک راغلل محدودې پاڼې پاته وې او ژر خلاصې شوې.

په فيسبوک باندې د انتخاباتي درغليو داسې شواهد نشر شوي چې دغه پروسه يوه خندنۍ او تقلبي پروسه ثابتوي، مثلا په يوه ويډيو کې د وردګو په نرخ کې د انتخاباتي کميسيون ځو کسانو صندوقونه کور ته وړي او په خپله يې ډکوي. د همدې ولسوالۍ په اړه يوه بله ويډيو ښيي چې د کانديد سياف لپاره ټولې پاڼې نښانه شوې او سربسته صندوقونو ته غورځول شوي دي. د کندهار په دامان کې يو د کور مشر او ځو ماشومان لګيا دي زر زر راى پاڼې نښانې کوى او بيا په مسخرو وايي چې خلک به هم وايي چې په دامان کې څومره ډېرو خلکو ګډون کړى خو خبر به نه وي چې رايي ټولې يوه کس نښاني کړي دي.

د انتخاباتو کميسيون له انتخاباتو وروسته يوازې په هرات کې يو لک رايې باطلې اعلان کړې او په فراه کې يې د ۳۶ مراکزو صندقونه قرنطين کړل. د مزار شريف په اړه ويل کيدل چې د دې ولايت والي عطامحمد نور د خپلو کسانو په توسط صندقونه د عبد الله عبد الله په ګټه ډک کړي دي. په پکتيا کې حتى د انتخاباتو له ورځې دوه ورځې وروسته هم صندوقونه ډکول روان وو، دغه راز په کندهار کې خلکو وويل چې امنيه قومندان جنرال رازق هغه صندوقونه چې له ولسواليو تش راغلي وو د انتخاباتو نه يوه ورځ وروسته د کانديد زلمي رسول په ګټه له رايو ډک کړل.



د قلم له سنګره　　اشغال راوړې برمرغۍ او جنګي جنايات

په کابل ښار کې چې زياتره ټاکنيز سايټونه په مکاتبو او ليسو کې پرانيستل شوي وو د پوهنې وزير فاروق وردګ له خپل نفوذ نه په استفاده د زلمي رسول په ګټه پراخه درغلي وکړه، د کابل په ختيځ کې د ملاتره خيل په نامه د ولسي جرګې غړي بيا د خپل نفوذ په ساحه کې د کميسيون غړي او څارونکي نه پريښودل. نوموړي څارونکي وشړل او صندوقونه يې په خپل طبيعت چې څرنګه خوښه وه ډک کړل. په کابل کې نورو زورواکانو لکه امان الله ګذر، دين محمد جرأت، حاجي ممتاز، اله ګل مجاهد، زلمي توپان او نورو هم په خپلو سيمو کې د خپلو خوښو کانديدانو په ګټه د پامور درغلۍ وکړې.

په ټوله کې بايد ووايو چې انتخابات په اکثرو سيمو کې له سره ونه شول او چيرته چې سايټونه پرانيستل شوي وو د خلکو له نشتوالي په استفاده چارواکو او زورواکانو په خپله صندوقان ډک کړل او داسې يې وښودله چې دا دى خلکو رايې اچولي دي. يوه خارجي خبريال د انتخاباتو په ورځ په خپل ټويټر باندې وليکل (هغه څه چې زه يې حيران کړم دا و، چې موږ د وردګو ولايت د چک ولسوالۍ د مرکز ټاکنيز سايټ ته ورغلو هلته هيڅ رايه ورکوونکى نه تر سترګو کيده مګر بيا هم صندوقونه له رايو ډک پراته وو)

## تر ټاکنو وروسته

کتونکي باور لري چې په هيواد کې ترسره شويو وروستيو ټاکنو څخه د امريکايانو هدف يوازې تبليغاتي او تيرايستونکی و، غربيان چې له افغانستانه تښتي حکومتونو يې اړتيا ليده تر څو خپل ولس ته وفهموي چې دوى له دې ځايه ماته خوړلي نه تښتي بلکې دلته يې دموکراسي راوستې ده، د همدې لپاره يې دې ټاکنو ته خورا پراخ او منظم مطبوعاتي انعکاس ورکړ.

له ټاکنو وړاندې امريکايانو او د کابل چارواکو د مجاهدينو په خبرونو بنديز ولګاوه، حتی د دې لپاره چې د ټاکنو په ورځ دبريدونو خبر نشر نشي او يا د ټاکنو د ناکامۍ او درغليو خبره خپره نه شي په ټول افغانستان کې يې په ټيليفوني مسيج ليږلو هم بنديز نافذ کړ، تر ټاکنو يوه ورځ وړاندې په ننګرهار کې حکومتي چارواکو يو خبريال سخت وواهه، کيمره او وسائل يې ورمات کړل او په دې توګه يې ټول خبريالان وډارول ترڅو د ټاکنو په وخت کې د چارواکو په مزاج وچليږي.

د ټاکنو په ورځ په داسې حال کې چې انتخابات په ډېرو محدودو ځايونو کې روان وو، او د خلکو ګډون د نشت برابر و حکومتي رسنيو يوازې همدا تبليغات کول چې دا انتخابات بيساري وو. په دې لړ کې يوازې د الاماره ويب پاڼه وه چې د انتخاباتو او جهادي بريدونو په اړه يې واقعيت خپراوه مګر د ورځې په نيمايي کې په دې ويب پاڼه هم هکرانو بريد وکړ او خپرونې يې يوه شيبه له خنډ سره مخ کړې چې وروسته د الاماره ويب پاڼې د ويښو تخنيک کارانو په هڅو بيرته ويب پاڼې په خپرونو پيل وکړ.

له انتخاباتو وروسته په خوست کې د آزادۍ راډيو خبريال لمرنيازی، او ننګرهار کې د ژوندون تيلويزيون خبريال زيارخان ياد د حکومتي چارواکو لخوا سخت ووهل شو چې ولې يې د درغليو راپورونه ورکړي دي.

د حکومتي زور او خبري سانسور په داسې فضاء کې د ټاکنو ورځ تيره شوه، حکومتي او غربي رسنيو له يوې مخې همدا خبره تبليغوله چې ټاکنې بيسارې وې او هيڅ ستونزه موجوده نه وه، د ټاکنو د کميسيون مشر اعلان وکړ چې په ټاکنو کې ۷ مليونه خلکو ګډون کړی وو، مګر څو ورځې وروسته يې يي چې د پنځو لکو رايو نتايج اعلان کړل ويي ويل چې دا لس فيصده نتايج دي يعني دلته يې ومنله چې پنځه مليونه خلکو ګډون کړی وو، څرنګه چې دغه پنځه لکه رايې هم تصفيه شوې





نه بلکې ګډې وډې وې داسې ويل کيږي چې په دې کې هم ترنيمايي زياتې رايې تقلبي دي چې په دې توګه د ټاکنو په ورځ د خلکو د اشتراک شمير خورا کم بلل کيدای شي.

له ټاکنو وروسته په نورو هيوادونو کې نتائج په دوو يا دريو ورځو کې اعلانيږي مګر اوس چې له ټاکنو کابو يوه مياشت تيريږي لا هم نتايج نه دي اعلان شوي، د ټاکنو کميسيون او ورسره د ټاکنيزو شکاياتو کميسيون په لويه معضله کې ښکيل شوي دي، ځکه ټاکنې له لويه سره له درغلۍ او تقلب ډکې وې په هره سيمه کې زورواکانو او چارواکو په خپله صندوقونه ډک کړي دي، اوس له دوی نه هم لاره ورکه ده چې له دې ګډوډو ټاکنو څخه څرنګه نتيجه واخلي او څوک بريالی اعلان کړي، که ټاکنې دوهم پړاو ته ځي نو بيا هم کوم تضمين نه شته چې درغلۍ او ګډوډۍ به نه وي.

څرنګه چې د ټاکنو له ترسره کولو څخه امريکايانو خپلو تبليغاتي هدف ترلاسه کړی دی، اوس نو کوښښ کوي چې له ټاکنيزو نتايجو پرته يو مشترک ائتلافي حکومت رامنځته کړي د همدې لپاره يې د مخکښو کانديدانو او ارګ ميشتو ترمنځ د جوړجاړي هڅې پيل کړې دي، غالب ګومان دا دی چې بيا به له هماغو زړو امريکايي اجيرانو څخه يو مختلط کمزوری حکومت رامنځته کړای شي، او ټاکنيزه پروسه به همداسې بې اغيزې پاته شي.

# په سرپل کې نجونې چا او ولې مسمومې کړې وې؟

٦/ جولای/٢٠١٢

دا بيان راته نن د سرپل ولايت يوه تن اوسيدونكي وكړ، چې خداى تعالى شاهد نيسم او ټكي په ټكي يې ستاسومخ ته ږدم.

ځو ورځې وړاندې به له رسنيو خبر شوي ياستئ چې د سرپل ولايت په مركز كې درې ورځې پله پسې د ښوونځيو زده كوونكې نجونې مسمومې شوې، د جوزا په دريمه د امام يحيى د ليسې، د جوزا په څلورمه د مركز اړوند د سرخک د ليسې او د جوزا په پنځمه د ولايت مقام ته بيخې نږدې د رحمت اباد د سيمې د مكتب نجونې مسمومې شوې، چې په ځينو پيښو كې د دوى ښوونكې هم مسمومې شوې وې.

د دې پله پسې پيښو په اړه غبرگونونه خورا بيلابيل وو، د كرزي وياندانو يې پړه (د معارف په دښمنانو) واچوله او ماشيني ژورناليستانو يې په شرح كې وويل، چې معمولا دا ډول القاب د كرزي حكومت د طالبانو لپاره كاروي. طالبانو له وړاندې په يوه تفصيلي اعلاميه كې دا ډول پيښې مردودې بللې وې نو ځكه يې څه پرې اضافه نه كړل، خو د حكومت امنيتي او استخباراتي چارواكو ويل چې دې ته د ورته پيښو ځو عاملين يې نيولي دي، او د دوى پلټنې ښيي چې بې له شكه دا ډول كارونه (طالبان) كوي.

نن مې د سرپل يو تن اوسيدونكي وليد، چې د دې پيښې له ماهيت څخه يې ډېر ښه معلومات درلودل، نوموړي د پيښې علت او ماهيت داسې راپه گوته كړل.





په سرپل كې طالبان سږ كال د پخوا په نسبت ډېر قوي شوي دي، كه پخوا دوى يوازې د صياد په ولسوالي كې وو اوس يې سيداباد، سوزمه قلعه، سنگ چارک او حتى د سرپل مركز ته هم شتون پراخ كړى دى. د مركز په ختيځ كې دوه كليدي مسكوني سيمې (شيرم او نيمدان) اوس د طالبانو سيمې بلل كيږي، د ښار په شاوخوا كې ښار ته بيخي نږدې كلي لكه بغاوي، لتي، آدرنگ، بلغلي او نور و ته هم اوس طالبانو ځانونه رسولي دي، ځو ورځې وړاندې طالبانو د سرپل په محبس بريد وكړ او ځو بنديان يې آزاد كړل. په دې كې شک نشته چې د سرپل په مركز كې د طالبانو د نفوذ په پراختيا كې د خلكو همكاري دخيله ده، خلک چې له حكومتي چارواكو زړه توري شوي دي، كرار كراراوس طالبانو ته ځانونه نږدې كوي.

په سرپل كې الماني ځواكونه دي، چې د خپلو اصولو له مخې يوازې د ځان د دفاع لپاره د ډزو اجازه وركړل شوې نو ځكه د طالبانو په ضد عمليات نه كوي، امريكايان كله ناكله له باگرام څخه په طالبانو عمليات كوي، خو دوى هم نه شي توانيداى چې يوازې په هوايي عملياتو د طالبانو د پرمختيا مخه ډب كړي، د حكومت پوليس او اربكيان چې زياتره پخوانۍ مليشې دي، د خوا اړولو خواره زوړ تاريخ لري، د دوى ډېرى داسې دي، چې له حكومته مفت كارتوس اخلي او په طالبانو يې په نيمه بيه خرڅوي.

په داسې حال كې دا د ځايي چارواكو اړتيا ده، چې د طالبانو د محلي نفوذ د مخنيوي لپاره له پوځي لارو پرته په نورو لارو غور وكړي، د دې لپاره چې طالبان په سيمه كې بدنام كړي او د خلكو زړونه ترې په بله كړي، حكومت له وخته په يوه دسيسه غور كاوه. پخوا به په ځينو سيمو كې له طالبانو د خلكو د متنفر كولو لپاره ځايي چارواكو د هلكانو ښوونځي سوزول، خو اوس چې طالبانو د ټول افغانستان غوندې په ټول سرپل كې هم د ښوونځيو داحياء كار پيل كړى، حتى د كوهستان غوندې د غرنۍ ولسوالۍ په لرې پرتو او خودمختاره سيمو لكه چراس، پوگان او

کڅن دره کې يې ابتدايي ښوونځي جوړ کړي او خلکو يې تعليمي کارونه په سترګو ليدلي نو ځکه په سرپل کې د ياد هدف لپاره د ښوونځيو سوځول مؤثر نه تماميدل، بلکې حکومت په کې بيخي لغړېده، نو ځکه حکومت د نجونو ښوونځيو ته پام واړاوه او په دې اړوند يې يو داسې پروګرام طرحه کړ، چې مصرف او مالي زيان يې لږ خو مطبوعاتي انګازه يې زوروره وي، نو ځکه يې د نور افغانستان غوندې د ښوونځيو دنجونو دمسمومولو اقدام وکړ.

دا چې د سرپل په مرکز کې دا جنايت ځايي حکومتي چارواکو سرته رسولى وو، څرګند دلائل وجود لري، لومړى دا چې د دې ښوونځيو له جملې يو يې بيخي د ولايت ودانۍ ته نږدې دی، که طالبان يو ځل تردې ځايه ځان راورسوي، نو بيا به د دوی لپاره عملياتي اولويت داوي چې د ولايت په ودانۍ راکټي بريد وکړي، ځکه د نجونو ښوونځي خو په اطرافي سيمو کې خورا ډېر دي، بله دا چې دا بهير خورا سيستماتيک او پله پسې وه، يعني د جوزا په دريمه، څلورمه او پنځمه، آيا داسې حساس جنايت دومره منظم او په داسې بيغمۍ له ځايي چارواکو پرته بل څوک کولای شي؟؟ کلا و حاشا...

د سرپل ولايت د دې اوسيدونکي په ونيا دا چې په دې جنايت کې د ځايي حکومتي چارواکو د دخالت څرګند شواهد خورا ډېر او هر چا ته اصلي مجرمين د لمر غوندې روښانه شول، نو ځکه ځايي چارواکو له خپل دې جنايت څخه مطلوب نتائج هم ترلاسه نکړای شول، بلکې د سرپل خلک نور هم د ګوډاګيانو پر خلاف پاريدلي او د هغوی دسيسه ګرې څيرې يې ښې تشخيص کړې دي.





# حکومتي هاوانونه د افغان کليوالو دمرګ تر ټولو ستر عامل

۲۴/ مارچ/۲۰۱۵ ميلادي

په نړۍ کې د انسانانو د مرګ د عواملو د تشخيص په اړه هميشه څېړنې او سروې ګانې کيږي، چې د دغو سروې ګانو له مخې د نړۍ په سطحه سګريټ د انسان د مرګ تر ټولو ستر عامل پيژندل شوی چې ورپسې غوماشې او بيا خپله انسان دی چې ډېر انسانان وژني.

که د دې پلټنو تفصيل ته ورشو، نو په هره سيمه کې د مرګ عوامل نسبت بلې ته فرق کوي، مثلا په پرمختلليو هيواد کې د مرګ ستر عامل د زړه ناروغۍ، ايډز، سرطان او داسې نورې ناروغۍ دي، په دويمه نړۍ کې د مرګ له لويو عواملو يو هم ترافيکي پيښې دي او په وروسته پاتې هيوادونو کې جګړه د مرګ لوی عامل بلل کيږي.

د افغانستان په اړه ويل کيږي، چې د جګړې په نسبت په ترافيکي پيښو کې ډېر خلک وژل کيږي، خو که خبره راغونډه کړو او مخامخ د کليوالو حال واخلو نو ويلی شو چې د کليوالو افغانانو د ناڅاپي مرګونو تر ټولو ستر عامل هغه هاوانونه دي چې امريکايانو د بوازينۍ ثقيله وسلې په حيث عسکرو، پوليسو او اربکيانو ته ورکړي، خو د ويشتلو چل، جدول او خريطه يې ورته نه ده ښودلې.

نن سبا چې چيرته حکومتي پوسته شته نو يوه پايه فير ته اماده هاوان په کې نصب دی. چې چيرته حکومتي ګزمه وځي نو د رينجر په باډۍ کې يې يوه پايه هاوان او څو درځنه مرمۍ پرتې وي. بس چې په عسکرو له کومې خوا ډز وشو،

دوی هم د هاوان خوله د کلیو په خوا کړي او مرمیو ته دد شي، تر هغو د هاوان په خوله مرمۍ ورمنډي او په کلیو دغه د حافظ غونډاري ورتوغوي ترڅو مرمۍ ورخلاصې شي.

د نظامي چارو له یوه کارپوه مې اوریدلي چې په وسلو کې تر ټولو سخت او باریک تعلیم د هاوان دی، ځکه دغه وسله په مستقیم ډول نه ویشتل کیږي چې هدف ته یې سړی مخامخ برابره کړي، بلکې په مقوس ډول هدف ولي. یعني مرمۍ لومړۍ پورته شړل کیږي او بیا په هدف له پاسه راغورځي، چې د هدف ټاکل او ویشتل یې د هر چا کار نه دی، له همدې امله پخوا په جهاد کې به د هاوان مسلکي ځانګړی نوم درلود چې په بسته ولسوالۍ کې به یو یا دوه کسان وو.

خو لرې مو له مخه د ع او غ په حکومت کې هر چا چې پتلون اغوستی نو د هاوان په شمول د ټولو ثقیله او خفیفه وسلو مسلکي هم بلل کیږي، د اربکیانو او اردو په پوستو کې مسلکي نه دی معلوم بلکې هر سړی چې د هاوان د مرمۍ سر او بیخ پیژني، کولای شي چې دغه وسله استعمال کړي، چې دغه حالت د افغانستان په کلیو کې سختې غمیزې زیږولې او لا هم جریان لري.

تیره ورځ د غزني ښار ته څیرمه په قلعه قاضي کې هلته چې نه طالبان شته او نه جنګ حکومتي عسکرو د هاوان په ړانده فیر د شپږو ماشومانو ژوند واخیست او لس نور یې ټپیان کړل.

شخصا زموږ په کلي کې په تیرو څو میاشتو کې حکومتي هاوان یو ځل د یوه غریب سړي په رمه کې ولګید ۸ میږې یې ورووژلې بل ځل د یوه کلیوال د کور په انګړ کې ولګید چې ښځه او کوچني ماشومان یې مرګوني ورټپیان کړل چې څو اونۍ په کابل کې پراته وو.





آبله ورځ د سیمې یو شناخته له کلي بازار ته راغلی و پوښتنه مې ترې وکړه چې په کور کې دې څه حال دی، ویل یې د خدای فضل راباندې وشو په کور کې مې د ملي اردو هاوان ولګید دوه د پیو غواګانې یې راووژلې خو د خدای فضل و چې د کور کوم غړي ته زیان ونه رسید.

ما فکر کاوه، چې د عسکرو لخوا د ړندو هاوانونو د ویشتلو ظلم به یوازې زموږ په سیمه کې روان وي، مګر کله مې چې په یوه مجلس کې داخبره یاده کړه معلومه شوه چې هرځای حکومتي عسکر همداسې ظالمانه ګولۍ بادوي.

د غزني یوه اوسیدونکی راته وویل چې داندړو مربوط د ناني په سیمه کې طالبانو په حکومتي عسکرو ډزې وکړې، عسکرو د خپل هاوان خوله د ناني کلي ته واړوله او په یوه ورځ یې دغه ګڼ میشته سیمه ۸۵ مرمۍ وویشتله.

په دې سربیره د هیوادپه لراوبر کې همیشه داسې پیښې رامنځته کیږي، چې له دې جملې یوازې په سنګین کې د هاوان ځپلي واده او لسګونو شهیدانو خبره مطبوعاتو ته راوتلې، نورې دا ډول پیښې اکثره وخت پټې پاته کیږي.

د هاوان مرمۍ د جسم په لحاظ کوچنۍ خو د تخریب په لحاظ تر هرې مرمۍ ډیره ورانکاره ده. د هاوان مرمۍ لکه د پرسونل ضد ماینونه خاص د انسانانو د وژلو لپاره جوړه شوې، چې د لګیدو په مهال په کوچنیو پرخچو بدلیږي او په شاوخوا کې ژوندی ساری روغ نه پریږدي. د هاوان یوه مرمۍ که په یوه ګڼه مجمع ولګیږي نو تر شلو زیات انسانان وژلی شي، خو دا د الله تعالی فضل دی، چې دغه مرمۍ په ځمکه او خاوره تخریبي اثر نه لري، له همدې امله کله چې په کلیو باندې د عسکرو د هاوان بریدونه پیلیږي خلک کوټو اواطاقونو ته ننوځي، بیا که په بام هم ولګیږي بام نه سوری کوي بلکې د بام په سر انفلاق کوي.

که د افغانستان په کليو کې د ناڅاپي مرګونو احصايه واخيستل شي شايي تر ټولو ډېر کليوال د هاوان په رنـدو ګوزارونـو وژل شـوي وي، خـو دا چـې د کليوالـو وينې د (دموکراسۍ او شهروندۍ) په ترازو کـې کـوم ارزښـت او وزن نـه لـري نـو ځکه يي نه په مطبوعاتو کې خبر راځي او نه يي هم څوک له غمه خبرېږي.

که د دموکراس خيلو په قـاموس کـې د نيچـه د هـداياتو لـه مخـې کليـوال د وروسته پاتي انسانانو په حيث په مرګ محکوم نه بلل کيږي، نو بويه چې د انسـاني کرامت د ساتلو په پار لږ د دغه بيچـاره هـاوان ځپلـو غـم وخـوړل شي، بي خريطـې هاوانونه او له پوستو څخه رانده مرګوني غونډاري بايد پای ته ورسول شي، ترڅـو د بي دفاع او بي وزله کليوالو ژوند وژغورل شي.





## د اداري فساد ويروس چا دې وطن ته راووړ؟

۴/ جولای/۲۰۱۷

زما په ياد دي چې د طالبانو په نظام کې د يوې ولسوالۍ ولسـوال څـو روپـۍ رشوت خوړلی و، دا پېښه د طالبـانو پـه حکومـت کـې زمـا د ليـدلو او لـه خلکـو د اوريدلو له قراره د فساد لومړۍ او وروستۍ پېښه وه. د طالبانو حکومت چې کله د رشوت معامله کشف کړه، ولسوال يې د کابل نظامي محکمې ته وليږه او د محکمې د حکم په اساس تر هغه وخته زنداني و تر څو طالبان له کابله ووتل او بيا د ټلـوالې د واکمنۍ په وخت زندانيان له محابسو آزاد شول.

هغه وخت رشوت او رشوتخوري يو داسې عيب بلل کيـده چـې خپلـه رشـوت خور څه بلکې د هغه قريبان او حتی کليوال به يې په دې پيغور شرميدل. رشـوت د غلا او زنا په شان يو د شرم او مجازات وړ جرم ګڼل کيده چې حکومتي چارواکو ته دې که د زمري زړه هم ورکړای وای جرأت يې نه شوای کولای.

مګر د طالبانو له حکومت وروسته رشوت او اداري فساد پـه افغانسـتان کـې دومره وده وکړه چې اوس خو په نړيواله کچـه د ګـوډاګي حکومـت د نـوم مـرادف ګڼل کيږي او چيرته چې زموږ پر هيواد د حاکم ګوډاګي حکومـت ذکـر کيـږي نـو فساد ورسره خامخا يادېږي.

د طالبانو د حکومت له سقوط يوه لسيزه وروسته پـه ۲۰۱۲ مـيلادي کـال کې پژواک خبري اژانس د نړيوالو څارونکو په استناد وليکل چې په همدې يوه کال کې په افغانستان کې څه کم څلور مليارده ډالره پيسې د رشوت په حيث تبادلـه شـوې او په اداري فساد کې کاريدلي دي. له دې علاوه د افغانستان حکومت څو ځلـه پـه

نړیواله کچه د لومړني مفسد حکومت شرم آور لقب ترلاسه کړ. پوښتنه داده چې په افغانستان کې دا پدیده له کومه شوه او ولې داسې زر دومره لوړ حد ته ورسیده؟؟

که افغانان له ځایه فسادګر او رشوتخواره وای خو په تیرو حکومتونو کې هم باید د فساد ښکاره علائم لیدل شوي وای. مګر په تیرو حکومتونو کې د افغانستان پولیس، اداري مسؤلین او قاضیان د سیمې د ټولو هیوادونو په نسبت له اداري فساد نه پاک او رشوت یې ستر پیغور باله.

که د فساد پدیدې ته او بیا یې دومره ژر خپریدو ته ژور نظر وکړو نو ښکاره معلومیږي چې اداري فساد افغانستان ته له خارجي اشغالګرو سره یوځای را ننووت. څرنګه چې کفر په هر لحاظ بدي او قباحت دی او له ځان سره ټول مفاسد لیږدوي افغانستان ته د امریکایي کافرانو له راتګ سره ټولې هغه بدمرغه پدیدې راغلې چې پخوا زموږ وطن ترې تر ډېره حده محفوظ و.

له کافرانو سره یوځای اداري فساد، بې ستري، اختلاط، اعتیاد، د ځمکو غصب، د ملي شتمنو اختلاس، په ملي پروسو کې تقلب، په ماشومانو جنسي تیري، بورنوونکي مظالم، فحشاء او نور ډول ډول قبائح یوځای راغلل. د امریکایي کافرانو له راتګ نه مخکې په افغانستان کې جرائم او بې بندوباري وه مګر دومره نه چې په فساد کې په نړیواله کچه لومړی مقام خپل کړو او یا د ځمکو د غصب او بیت المال د شتمنیو په اختلاس کې نړیوال شهرت ته ورسیږو.

امریکایي کافرانو زموږ هیواد او اولس ته تر ټولو ستره ضربه دا ورکړه چې دلته یې اجتماعي قراردادونه او ټولنیز اخلاقي سیستم ونړاوه، د اداري فساد، غصب او نورو جرایمو د ترویج لپاره یې داسې کار وکړ چې اوس په عامه نظر کې دې جرایمو ته څوک جرم هم نه وایي او نه پرې شرمیږي.





مګر د یرغلګرو له دې ټول ظلم او تجاوز سره سره نن سبا همدغه مفسد یرغلګر په پوره سپین سترګۍ را ولاړیږي او افغانانو ته د فساد او اختلاس له امله پیغور ورکوي، د امریکا د متحده ایالاتو سفیر همدا نن ویلي چې فساد په افغانستان کې د سرطان دانه ده، مګر ښاغلي سفیر دا نه دي ویلي چې د سرطان دغې دانې ویروس چا دې هیواد ته راووړ او چا ملیاریز فساد ته زمینه سازي وکړه.

هغه څوک چې په افغانستان کې اداري فساد د یوه پیغورآمیزه شرم او ملي ستونزې په حیث پیژني په دې باید سر خلاص کړي چې تر څو خارجي اشغالګر په دې هیواد کې وي له دې ستونزې خلاصون نشته. ځکه اشغالګر په لوی لاس غواړي د ارزښتونو او اخلاقو په ناچله کولو او د بې بندوبارۍ په ترویج سره زموږ ټولنه او سیستمونه کمزوري کړي او بیا پر موږ باندې اوږدمهاله باداری ته زمینه برابره کړي.

# د کلمة التوحيد پر حريم د يرغلگرو گستاخانه بريد

۱۰/ سبتمبر/۲۰۱۷

خبر شوي به یاست چې څو ورځې وړانـدې يرغلگـرو امريکايـانو د پـروان پـه ولايت کې داسې تبليغاتي پاڼې لـه الوتکـو وپاشـلې چـې پـه هغـو کـې يـې د کلمـة التوحيد (لا اله الا الله محمد رسول الله) څرگند سپکاوی کړی و. پـه دې تبليغـاتي پاڼو کې خبيثو يرغلگرو د خپلـو خبيثـو ترجمانـانو او گوډاگيـانو پـه توسـط داسـې انځور خپور کړی و چې په هغه کې يې کلمة التوحيد د سپي په بدن بانـدې ليکلـې وه. العياذ بالله.

دا موضوع که څه هم په مطبوعاتو کې عادي تيره شوه او د امريکايـانو د يـوه عادي جنايت په نظر ورته وکتل شول. اما په حقيقت کې دا کومه عادي موضوع نـه وه. دا جنايت ښايي په تيرو ۱٦ کلونو کې د يرغلگـرو تـر ټولـو درونـد جنايـت وي. يرغلگرو کله هم په دومره سپين سترگۍ او وقاحت د مسلمانانو تر ټولـو مقـدس او لوړ ارزښت ته توهين نه و اړولی او نه يې خپله اسلام دښمني او کفر دومره ډاگيـز کړی و. خو د تأسف ځای دا دی چـې څـومره دغـه جنايـت سـنگين او غلـيظ و پـه وړاندې يې د مسلمانانو عکس العمل دومره جدي نه و.

د کلمې طيبې عظمت

که د کلمة التوحيـد عظميـت تـه وگـورو نـو د پـروان لـه دردوونکـي فـاجعې وروسته خو بايد چې اسمانونه رانړيـدلي وای، پـه غرونـو زلزلـې گـډې شـوې وای،





سمندرونه په جوش او څپو راغلي وای او له حق څخه د منحرفو انسانانو د بدمرغـه اعمالو سزا يې ورکړې وای.

مگر دا د رب المتعال (جل جلاله) ځانگړی رحم دی او د هغـه حلـيم ذات پـه بردباری ښکاره دلالت کوي چې له دومـره سـتر جـرم او جنايـت سره سره لا هـم د انسانانو پر سر آسمان ولاړ او ځمکه يـې تـر پښـو لانـدې مسـتقره ده. لا هـم د اللـه تعالی د عذاب ملائکو د گناهگار او منحرف انسـانيت لـه تعـذيب او تنبيـه څخـه لاس نيولی او د الله تعالی د حساب او عذاب موعد ته انتظار باسي.

راځئ دلته د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د احـاديثو پـه رڼـا کـې د کلمـې طيبې (لا اله الا الله) عظمت وځيړو تر څو پوه شو چې دا له څو کلماتو جـوړه جملـه په حقيقت کې د څومره ستر شان او عظمت څښتنه ده.

عن ابي سعيد الخدری رضی الله عنه عن رسول الله صلی الله عليه وسلم: قال موسی يا رب علمنی شيئاً أذکرک وأدعوک به، قال يا موسی: قل لا إله إلاَّ الله، قـال: کل عبادک يقولون هذا، قال: يـا موسـی لـو أنَّ السـموات السـبع وعـامرهن غيـری، والأرضين السبع فی کفه ولا إلـه إلاَّ اللـه فـی کفـه، مالـت بهـنَّ لا إلـه إلاَّ اللـه. رواه النسائی و الحاکم و ابن حبان

ابوسعيد خدري رضی الله عنه له رسول الله صلی الله عليـه وسـلم نـه روايـت کوي چې موسی عليه السلام وفرمايل: اې ربه ماته داسې څه راوښيه چـې پـه هغـه سره ستا ذکر کوم او تا رابولم. الله تعالی ځواب ورکړ چې اې موسی! دا وايه (لا اله الا الله) موسی عليه السلام ووېل چې دا خو ستا ټول بندگان وايي. الله تعالی ځواب ورکړ چې که چيرې ۷ واړه اسمانونه او هغه څه چې پـه آسـمانونو کـې دي او ۷ واړه ځمکې له الله تعالی پرته له ټولو موجوداتو سره، دا ټول که د تلې په يوه خوا کې وي او (لا اله الا الله) کلمه په بله خوا کې نو دا کلمه به وربانديې درنه وخيږي.

په بل حديث شريف کې حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: يصاح برجل من أمتی علی رؤوس الخلائق يوم القيامه فينشر له تسعه وتسعون سجلاً، کل سجل منها مد البصر، ثم يقال أتنكر من هذا شيئاً، فيقول لا يا رب، فيقال: ألک عذر أو حسنه، فيهاب الرجل فيقول لا، فيقال: بلی إنَّ لک عندنا حسنات، وإنَّه لا ظلم عليک، فيخرج له بطاقه فيها أشهد أن لا إله إلاَّ الله، وأشهد أنَّ محمداً عبده ورسوله، فيقول يا رب ما هذه البطاقه مع هذه السجلات، فيقال: أنَّک لا تظلم، فتوضع السجلات فی كفه والبطاقه فی كفه فطاشت السجلات وثقلت البطاقه)). الترمذی، والحاکم وغيرهما

د قيامت په ورځ به زما د امت په يوه کس باندې د خلکو په وړاندې اواز کيږي او د هغه د اعمالو ۹۹ دوسيې به وغوړول شي او هره دوسيه به د سترګو تر ځاره پراخه وي. بيا به ورته وويل شي چې آيا له دې څخه انکار کوې؟ دغه انسان به ووايي چې نه، زما ربه! ورته به وويل شي چې چې آيا کوم عذر يا نيکي لرې؟ نودا کس به وويريږي او وايې به، نه يې لرم. ورته وبه ويل شي چې داسې نه ده، له موږ سره ستا نيکۍ شته او په تا به ظلم نه کيږي. بيا به يې د اعمالو له منځه يو کارت (کوچنۍ صفحه) را وايستل شي چې دا کلمه بهورباندې ليکلي وي (أشهد أن لا إله إلاَّ الله، وأشهد أنَّ محمداً عبده ورسوله) دغه بنده به وايي چې اې زما ربه د دې کوچني کارت له دومره ډېرو دوسيو يا عملنامو سر څه مناسبت دی؟ ورته وبه ويل شي چې په تا به ظلم نه کيږي. بيا به دا ټولې د اعمالو دوسيې د تلې په يوه خوا کې واچول شي او هغه کوچنی کارت په بله خوا کې تر دې چې هغه ټولې دوسيې به سپکې وخيږي او پله به يې پورته شي او د کلمې کارت به ورباندې دروند شي.





دغسې په نورو ډېرو احاديثو کې رسول الله صلی الله عليه وسلم د کلمه طيبې عظمت او فضيلت بيان کړی دی چې له مجموع اقوالو څخه دا څرګنديږي چې په هستۍ کې د الله تعالی له ذات اقدس څخه وروسته تر ټولو عظيم او سنګين حقيقت همدا کلمه ده. له دې څخه اټکل کولای شو چې زموږ دښمنانو څومره ستر جنايت کړی او د څومره عظيم او سنګين حقيقت د توهين هڅه يې کړې.

## آيا کلمه التوحيد يوازې د طالبانو ده؟

په پروان ولايت کې د امريکايانو لخوا د کلمة التوحيد د سپکاوي په موضوع کې تر ټولو عجيبه خبره دا وه چې د نورو امريکايي جناياتو په شان د دې موضوع په اړه هم په رسمي کچه يوازې طالبانو غبرګون وښود او په اجتماعي رسنيو کې هغو فعالانو ورباندې سخت عکس العمل وښود او د انتقام اخيستلو ګواښونه يې وکړل چې په افغانستان کې په روان جهاد باور لري او په يوه شکل د افغانستان له اسلامي امارت سره تړاو لري.

کله چې د موضوع په اړه د نورو اړخونو په چوپتيا اعتراضونه وشول نو بيا څو ورځې وروسته ځينو نورو اشخاصو او ډلو هم د موضوع په اړه لنډ اظهارات وکړل او د امريکايانو دا عمل يې وغانده. خو د کابل په تخت ناست د امريکايي يرغلګرو په معاش چليدونکی رژيم او د يرغلګرو نور حليفان، ډلې او اشخاص لکه د شورای نظار چارواکي چې ځانونه د جهاد ټيکداران هم بولي، دغه راز عبد رب الرسول سياف چې يو وخت يې ځان د توحيد ستر داعي باله او اوس هم ځان تر ټولو واقعي مسلمان بولي. همدا راز ګلبدين حکمتيار چې ديانت او حق پالنه يوازې په ځان او خپل تنظيم کې منحصره بولي. دوی يوه هم د امريکايانو د دې کريه جنايت په اړه

د خولې چوله کولو جرئت ونه کړای شو او نه يې هم دې عظيم او نه بښونکي جرم ته د جرم په نظر وکتل.

دغو له اسلام او کلمة التوحيد سره جفا کوونکو ته به وواپو چې دې د خاموشۍ سياست خو مو څرګنده کړه چې هسې مو نوم د طالب او يا په اصطلاح ترهګر اچولی په حقيقت کې مو جنګ مخامخ له اسلام او کلمې سره پيل کړی. ځکه په دغسې مواردو کې چوپتيا د رضا او يا هم بې پروايۍ نښه بلل کيږي او څوک چې د دغسې حساسو مسائلو په اړه بې پروا او بې دريځه پاته کيږي نو د ايمان د زيان له خطر سره مخامخ کيدلای شي.

سياف، حکمتيار، عطانور، قانوني، عبد الله، ګل اغا، اسمعيل خان او نورو ته به وواپو چې له تاسو خو هغه کرزی هم ښه شو چې تاسو به سګشوی او د امريکا لخوا تربيه شوی ايجنټ باله. د هغه هم لږ تر لږه په دې موضوع کې زغم پای ته ورسيد او د امريکايانو دا عمل يې وغانده. هغه که څه هم ۱۴ کاله د امريکايانو په ټوک ګوزاره کوله خو دې ځيره خورۍ دومره بې احساسه نکړ چې د دغسې حساسو جناياتو په اړه هم د خاموشۍ او مړتيی دريځ خپل کړي.

تاسو ته مو هم مشوره دا ده چې يو مخ هم د نامردۍ او منافقت جامې مه اغوندئ. لکه څنګه چې دعوه لرئ په دغسې موضوعاتو کې خپل ايمان او اسلام بايد ثابت کړئ او کنه اولس ته به مو باطني نفاق د لمر غوندې ظاهر او په ثبوت ورسيږي.

## د پای خبره

د يرغلګرو له خوا په پروان کې پاشل شويو تبليغاتي پاڼو يو بله خبره هم راڅرګنده کړه او که واضح وواپو په افغانستان د غربي يرغل او روانې جګړې له





ماهيت څخه يې پرده پورته کړه. په دې تبليغاتي پاڼو کې داسې انځور جوړ شوی چې يو زمری چې اشغالګرو ورباندې ځان ته اشاره کړې په يوه بل حيوان پسې چې پر بدن يې کلمه طيبه ليکلې ده منډې وهي او په هغه د حملې کولو کوښښ کوي.

دا بدمرغه انځور له ټولې بدمرغۍ سره سره دا واقعيت هم روښانه کوي چې اشغالګرو امريکايانو که څه هم شعارونه يې د بيا ودانولو او بشري حقوقو را اخيستي مګر اصلي هدف يې د اسلام او مسلمانانو تهديدول او هغوی د حملې هدف ګرځول دي.

اوس به شايد ټولو ته روښانه شوي وي چې په روان مبارزه کې څوک د اسلام او مسلمانانو استازيتوب کوي او کوم اړخ پر اسلام او کلمه طيبه د يرغل په جنايت ککړ دي. هغه کسان چې لا هم د روان جهاد په حقانيت او فرضيت کې شکمن دي د يرغلګرو دا اعتراف ورته کافي دی چې د جګړې د ماهيت په اړه ټول شکوک يې له منځه لاړ شي.

## اتم فصل ـــ خاطرې او تأثرات

- ❖ بار غم عشق
- ❖ زور به يې وګټي که زاری!؟
- ❖ د عالمانه جرأت منار ونړېد
- ❖ د کابل جان منظره
- ❖ ډيپلوم لرونکي غله
- ❖ شبی که شبيخون صليبی ها با خود داشت
- ❖ نازم بچشم خود که جمال تو ديده است
- ❖ مرحوم سيد محمد حقاني ولې ټولو ته محبوب و؟
- ❖ زه دوهم تن وم چې راووتلم
- ❖ د أحـــرار چيـغې
- ❖ اربکيه لاس دې مات شه!
- ❖ شهيد خالد حسن، هاغه د واورينو درو مسافر





## بار غم عشق

**غواړم مطالعه وکړم، خپل ټول حواس راقابو کړم، د کتاب البيوع هدايې تورو کرښو ته ځير شم تر يو څه ځايه وکړای شم په مطلب يې ځان پوه کړم، خو وروسته له ځانه ناخبره د ويښې يوه درانه خوب له ځانه سره وړی يم، دخيال په دنيا کې مې ځانته يو ښايسته او بې خاره جهان ودان کړی وي، چې يوازې زه او او څو تنه راپاته د ځنګ ملګري په کې هوس کوو. کله بيا د تلليو يارانو خوږلنو خاطرو بې سده کړی يم، چې ناڅاپه راپه هوښ شم، شاوخوا د سترګو له کونجو وڅارم، چې د چا خو راپام نه دی، بيرته مې په غوړيدلي کتاب سترګې ولګي، په دې وخت کې نو هغه مسرۍ ښه راپورې لګيږي چې:**

**طالبه خدای که به ملاشې...**

**خو ما د شرمندګۍ په ځای ځان ته د خوابدۍ احساس په مخه کړي، دا مهم او په اصطلاح (موقوف عليه) کتابونه ګوره او دا تر زرو قيمتي شيبې ګوره چې په سوچونو او انديښنو يې تيروو.**

**تېره ورځ چې يوه ملګري د خواږه وطن ترخه حالات د تيلفون په ليکه راته انځورول په آخر کې يې زياته کړه چې داسې حال دی او: ته آرام کوه خوبونه د مخملو په بستر کې... غربو راته ودريد او ورته کړه مې داسې هم نه ده بلکې هغه متل دی وايي: ناسته يم له تاسره زړه مې په کندو کې دی.. موږ هم د موقوف عليه (وړې دورې) کتابونه را اخيستي او ډډې مو اچولي وي، ظاهرا ښه آسوده او مفخم ناست يو، خو ستومانه خيال مو هماغلته وي چيرې مو چې د ځنګ خواږه ملګري،**

ځوریدلي هیوادوال، ماشومان، پتنمې خویندې او ورونه هره شپه د چاپواو بمبار له محشر سره مخ کیدونکي وي.

پیرمحمدکاروان څو کاله وړاندې په یوه شعر کې دلیل راوړی و چې د افغانانو د شهادت برج اسمان ته رسیدلی دی نوري خښتې پرې نه راځي نو ځکه باید پرې اضافي ظلم او تجاوز ونه شي، خو موږ وینو چې دغه اسمانڅک لا هم نورې هسکېدا ته نه ایلیدونکي تابیا لري.

په تیرو څو ورځو کې مو په څلورو پیښو کې اوه اته ملگري شهیدان شول، هارون، مطیع الله، شمس الله، اکرم، بلال، مستقیم، یاسین او... یو دوه نور ژوندي نادرکه دي، د نیک محمد او گل اکا شایسته زامن یې ور ځوانیمرگ کړل او نور ډېر کلیوال سپین ږیري او زلمي یې لاسترلي چورلکو ته واچول، خو لا هم د کافر زور نه دی کم شوی، قوي اټکل شته چې لا ډېرې ځوانۍ به ترباروتو ځار شي.

کله دا سوچ راولویږي چې دا نوره نړۍ ولې له خوښۍ او افغانان له خواشینۍ مري؟ دا هغه سوالیه ده چې د ډېری افغانانو د ذهن په تخته په یوه ډیزاین نقش ده خو د ځواب په برخه کې یې اندونه سره ویشلي دي.

ځیني سترگې پټې کړي او بالکلیه حکم وکړي، چې افغانان بدبخته دي!! (نعوذبالله) ځیني نور چې د خبرو مآل یې پورتني نظر ته راځي، په دې برخه کې لږ په هوښ غږیږي، دوی وایي: افغانان بدبخته نه دي ځانونه یې په خپله بدبخته کړي دي، ځکه دوی وایي (افغانانو تل د ملایانو په ژرنده اوبلي، د جدت پسندی، عصریت او عقل پالنې په ځای یې د بنسټ پالنې، ارتجاع او عقب گرایي لمن نیولې ده د طبعي، مادي محسوسو حقائقو په ځای د دوی په گومان په اوهامو پسې تللي دي او په بده ورځ یې د وسلې او وسیلې په ځای توکل محض کافي شافي بللی، دوی وایي افغانان له همدې امله همیشه د چیغې په سر کې تللي، د نړۍ هر جابر او





تجاوزگر ته لومړی دوی ورلاندې وتي، قرباني دوی ورکړې خو د ظلم او استبداد کمپله له ټولې نړۍ ټوله شوې ده.

د دغه ډول صاحبنظرانو یو خصوصیت دا دی، چې د خپلو زهرجنو نظریاتو شیره د کوکنارو تر گلانو لا په شایسته الفاظو کې پیچلی شي چې ظاهرا د سړي زړه وړي خو په حقیقت کې په معنوي او عقیدوي لحاظ وربانديې باور د سړي بیخ او بنیاد باسي.

دغه ډله خلک چې زیاتره یې ځانونه (روشنفکران) بولي، وایي چې په انسان کې د پریکړې درې محلونه دي، گیډه، زړه او دماغ. دوی وایي د گیډې پریکړې له لویه سره غلطې وي ځکه په تن پرستۍ بنا وي، په زړه او دماغ کې دوی یوازې دانساني دماغ خپلواکه پریکړه واجب العمل بولي، ځکه دوی وایي له زړه نه کله ناکله اجتهادي غلطي کیږي چې د دې لپاره دوی په هوش دجوش د غلبې اصطلاح کاروي، خو دوی دې ته نه گوري چې زړه د ایمان محل او د انساني بدل پاچا دی.

لنډه دا چې دغه د دویمې کټه گورۍ خلک هم د پخوانیو حکیمانو په څېر یوازې په انساني دماغ او عقل اعتماد لري او د نقل په مقابل کې د عقل او قیاس پریکړې په ځای ورته برېښي، د دې سادگانو نظر که دقیق مطالعه کړو نورایه یې تر ډېره د شیطان له هغه رایې سره مشابه ده چې د (أسجد) الهي امر او نقل په ځای یې خپل دماغ او عقل د پریکړې لپاره کافي وباله، عقلي قیاس یې جوړ کړ چې چې (آدم له خاورې پیدا دی، او زه له اور څخه، اور له خاورې څخه غوره دی نو زه هم ترآدم غوره یم، نو سجده نه کوم) له همدې ځایه مولانا رومي صاحب وایي چې لومړی څوک چې عقل یې په نقل مقدم وباله ابلیس علیه اللعنت و چې همدا یې د ابدي هلاکت سبب شو.

راځم د افغانانو د نیک بختي او بدبختي په اړه دریمې رأیې ته، دریمه ډله وایي چې افغانان بدبخته نه بلکې د ځمکې په مخ تر ټولو نیک بخته اولس دی، معنی دا چې دغه نیک محمد اکا او ګل اکا نیک بخته وو، چې ظلمي زامن یې په وینو کې لت پت شول، ماشومان یې وچغیدل، د تورسرو کوکې یې پورته شوې او د کورسرې یې په توره شپه په تورو چورلکو کې ترې یووړل شول.

سره له دې چې د ځینو لپاره به پورتنۍ مفکوره د خندا وړ وي، خو که سړی لږ هم په زړه کې د ایمان ځلا ولري نو همدغه دریمه او وروستۍ رأیه به ورته مفتی به ښکاره شي.

ځوریدلي افغانان تر ټولو نړیوالو نیک بخته دي، په افغانانو متعال خدای (جل جلاله) هغه نعمتونه لورولي چې په نورو نړیوالو یې د هغو تصور هم نه دی پیرزو کړی. قوي ایمان، جهاد، شهادت، هجرت، د خدای تعالی په لار کې ځور، ستوماني، زندان او نور کړاوونه هغه څه دي، چې متعال ښتن یې په دنیا کې یوازې خپلو هغو نازولو مؤمنوبندګانو ته ورنصیب کوي چې په آخرت کې پرې د سترو او تلپاته انعاماتو تابیا لري.

الله تعالی زکریا علیه السلام د ارې خولې ته سیخ کړ، ایوب علیه السلام یې په اوږد مهالي رنځ اخته کړ، یونس علیه السلام یې د ماهي د خیټې بندیوان کړ او خپل نازولی حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم یې د مکې او طائف د اوباشانو د ډبرو دسنګسار کړ. دا په دې نه چې خدای نخواسته دوی د دې وړ وو، بلکې دا د الهي ازموینې د تکمیل تقاضا وه، دا لایتناهي کائنات خو الله تعالی هسې خوشې نه دي پیدا کړي بلکې د خلق وجه یې هغه ستره الهي ازموینه ده چې له مخلوق خصوصا انسانانو به اخیستل کیږي.





دا آزموینه بیا د اسانۍ او سختۍ بیلابیل مراتب لري، که څوک په اسانه امتحان کې ناکام شي نو سخت ته یې ضرورت نه پیښیږي نو ځکه الله تعالی په هغو چې له ایمان راوړلو یې سرغړولی وي، روژه هم نه ده فرض کړې، او که څوک د دې جاري آزموینې په بیلابیلو پړاوونو کې دکامیابۍ بخت ولري، نو خامخا به د لاسختو کړاوونو او پړاوونو سره مخ کیږي، تردې چې د ایمان او همت نهایي ګراف یې معلوم شي. له همدې امله موږ وینو چې د الله تعالی د دربار تر ټولو مقربین هغه څوک دي چې په دنیا کې یې د الهي امتحان تر ټولو سختې صحنې او ستونزې لیدلې وي او په بریالیتوب ترې وتلي وي دلته ده چې وایي (ان عظم الجزاء مع عظم البلاء)

زموږ یوه شهید ملګري به ویل چې جنت ته خو څه پوخ سرک نه دی تللی، داخبره که ظاهرا ساده ده خو ډېره لوی رمز په کې پروت دی. هیڅوک دې دا ګومان نه کوي چې خدای تعالی هسې پیدا کړی او همداسې یې وبښي، الله تعالی فرمایي (آیا تاسو ګومان کوئ چې همداسې به جنت ته داخل شئ او الله تعالی به په تاسو کې مجاهدین او صابرین نه وي معلوم کړي. ۱۴۲ ال عمران) مطلب دا چې داسې ګومان مو بې ځایه دی. بل ځای د سورة عنکبوت په یوولسم آیت کې الله تعالی له څو تاکیداتو سره فرمایي (الله تعالی قسم کوي چې خامخا به په دې امت کې مؤمنان او منافقان معلوموي)

نبي کریم صلی الله علیه وسلم په بیا بیا امت ته همدا آزموینه ورپه زړه کوي او دکامیابۍ راز ورښیي چې وایي: الدنیا سجن المؤمن و جنة الکافر... حفت الجنة بالمکاره وحفت النار بالشهوات... دینا د مؤمن بندیخانه او د کافر جنت دی، جنت په ستونزو پوښل شوی او دوزخ په خوندونو.

له دې څخه معلومه شوه چې دا دنیا د یوه متعهد مسلمان لپاره د ارامۍ بستر او راحت محل نه ده، بلکې یو پردی وطن او د پردیسي کور دی چې نه شایي ډېر زړه پورې وتړي او د اقامت نیت په کې وکړي.

بله دا چې که په انساني سوچ سړی داسې فرض کړي چې ټول عمر دې په هوسایۍ او عیاشۍ کې ډوب او خوشاله وي، هیڅ رنځ او اندیښنه دې ونه لري نو کیدای شي چې په پای کې خوشالي هم ورته بې معنی او یو زمولوونکی رنځ شي. ځکه د رڼا په معنی سړی هغه وخت ښه پوهیدلی شي، چې کله یې تیارې سترگې ورتیپې کړي. او یا د شاتو خوږوالی د نورو په پرتله هغه څوک ښه احساسولی شي چې یو ځل یې د حنظلو تریخوالی څکلي وي، موږ په دې ویره نړۍ کې ډېر داسې اولسونه وینو چې د خوښۍ او عیاشۍ ټول اسباب په کې مهیا دي خو بیا یې هم وگړي له ژور خفگان څخه ځانونه په خپله وژني.

امریکا چې د نړۍ په سطحه د اقتصادي، اجتماعي او انکشافي پرمختیاوو بیلگه ده د بیلابیلو رواني ناروغیو کور بلل کیږي، چې یوازینی علت یې له چتې وتي عیاشي او عیش بازي ده.

زما باور دی چې روزانه به په افغانستان کې په مقدس کې جهاد کې دومره افغانان په شهادت نه رسیږي، څومره امریکایان چې د ایډز، لیونتوب، بلډپریشر، ځانوژنو او نورو فتنو له وجې، ژوند له لاسه ورکوي، علی هذالقیاس نوره نړۍ درواخله.

خوله دې پورتینو مسلمو حقائقو سره سره زموږ ځیني (ړوند اندي) د افغانانو د سرلوړي او متعهد ژوند په نسبت امریکایي ژوند او د سانفرانسیکو دکوڅو لچرتوب د غبطې وړ یو داسې نعمت بولي چې باید ترلاسه یې کړي، خو په مقابل





کې د دیني اقدارو د ساتنې او افغان پت پالنې په معرکه کې په پرې راغلې ستومانۍ ورته بدمرغي برېښي.

غم، درد، کړاو او رنځ هغه څه دي چې باید نه وي، ځکه دا ټول هغه څه دي چې انساني طبیعت یې فطرتا نه خوښوي، خوکله کله که همدغو درد او کړاو د یوه سپڅلي او ستر هدف لپاره وي نو بیا مهتم بالشان حیثیت غوره کوي، هغه وخت به درد او غم د زړه بوج نه بلکې، د انسان پسول او د میړونو د میړانې محک بلل کیږي، تردې چې بیا دسړیتوب او مروت تعریف هم له همدې ځایه سرچینه نیسي.

ښخ د زړه په سر چې یې اغزی نه دی
ښکاري به سړی مگر سړی نه دی

افغانان تل د هغو ارزښتونو او مقدساتو د ترلاسه کولو او ساتلو په لاره کې ځوریدلي او دربدره شوي، چې په همداسې درنو قربانیو ارزي، په ځمکه یوازې د الله تعالی واک منل، یوازې د هغه ذات (جل جلاله) بندگي مختارول، او د لله الامر تر توغ لاندې ساه اخیستل هغه څه دي، چې د همدې مقصد لپاره په انسان کې روح پوکل شوی او ژوندی شوی دی. اوکه څوک دې ته آماده کیږي چې په دې حقیقت سترگې پټې کړي او طوعا یا کرها په عقیدوي یا عملي برخه کې دمخلوق بندگي کوي نو په دې سره خو د ژوند بنیادي غایه او مقصد له لاسه ورکوي.

که خبره راټوله کړو نو د دریمې مفتی به رأیې له څرگندولو وروسته به ووایو چې اصلا دغه د لومړیو دوو رایو خلک چې په بختورو افغانانو د بدبختۍ ټاپه لگوي، په خپله د یوې لویې بدبختۍ ښکار دي، هغوی لکه څنگه چې په عقبی کې د ښه انجام تمه نه شي کولای، په دنیا کې هم تل خپل ضمیر او وجدان ته د ملامتیا پیتی په اوږه گرځوي، ځکه دوی د بازار له نرخ او تول سره د چلیدو لپاره

په ټولو حقائقو ځانونه کانه او ړانده کړي، دوی که څه ویني نو د بل په سترګو یې ویني، که د څه شي تصدیق یا تکذیب کوي هم خپل عقل او ادراک ته دوکه ورکوي او د ورځني مصلحت له مخې پرې حکم کوي. د دوی ټول ژوند په دوکه، منافقت او تذبذب کې تیریږي. خیر، دوی ته دې همدا د دوی په اند (بخت) تلپاتې وي او ویاړلي افغان اولس ته دې الله تعالی نورهم توفیق ورکړي چې د خدای (جل جلاله) حضور ته په داسې حال کې ور شي، چې په تندي یې یوازې هغه ذات (جل جلاله) ته د سجدې داغ پروت وي، چې همدا رښتینی سعادت او بخت دی هغه چې حاصلول یې درانه غمونه او دردونه له ځان سره لري.

تا مست نگردي نه کشي بار غم عشق

آرې شتر مست کشدبار گران را



د قلم له سنګره　　خاطرې او تأثرات

## زور به یې وګټي که زارۍ!؟

١٦\ فبروري/ ٢٠١٠

څو ورځې کیږي چې امریکایانو او نورو اشغالګرو د هلمند په مارجه ولسوالۍ خورا پراخ هجوم وروړی. نن جمعه مبارکه وه، د کلي د جامع مسجدامام چې کله د جمعې له فرضو سلام واړاوه، نوپه شي خوا راوګرځید او مقتدیانو ته یې هم د کیناستواشاره وکړه. دغه وخت یې نو په داسې جوش او خروش دعا پیل کړه چې ما له دې وړاندې نه وه لیدلې. د دعا د منځ ټکی د هلمند ولایت مارجه وه، چې همدا اوس په کې خارجیانو سخت عملیات پیل کړي. د کلي سپین ږیرو چې ځینو یې د دعاپه مهال د پټکیو شملې سترګوته نیولې وې، سویو او ریږدیدلیو غږونو یې په خټین جومات کې یوه غمجنه انګازه جوړه کړې وه. د ملاصاحب غږ هم شیبه په شیبه لوړیده او په پای کې خو یې له ډیرې تضرع مخ داسې تک تور واوښت چې سرې ورته کتلی نه شوای...

دا د مارجې په حق کې لومړۍ دعانه ده چې زه په کې شریک وم. له څو ورځو راهیسې همدا حال دی د عملیاتو په لومړۍ شپه زمونږ د مدرسې د مسجد ملا امام د ماخستن له فرضو وروسته په داسې وخت کې په مقتدیانو د دعاغږ وکړچې خلکو زیاتي صفونه ماتول. دلته هم د مارجې د حفاظت په پار سلګونه لپې تر ځنډه د الله تعالی حضورته پورته وې. په سباچې د درس لپاره د مدرسې دارالحدیث ته حاضرشوم، د صحیح مسلم شریف په ساعت کې استاد ته رقعه ورغله چې مارجې ته دعاوکړي. دلته هم د غوړیدلو کتابونوپه وړاندې یوه له غریوه ډکه دعاوشوه، داسې دعا چې ځینو طالب العلمانو په سرو څادرونه ور اچولي وو او د لپوپه ځای یې د حدیثوکتابونه لوړکړي او د خواست په ډول الله تعالی ته نیولي

وو. استادپه عربي الفاظو اوږده دعاوکړه چې په بیا بیا یې مارجه پـه کـې یادولـه، د مارجې لپاره د دعاګانو دا سلسله د طالب العلمانو د اونیزو انجمنونو په مهـال هـم له پامه نه وه غورځول شوې او کله چې د پنجشنبې په وروستي ساعت کې کتابونـه کت شول، بیا یوه فوق العاده دعا پیل شوه، زمونږ سپین ږیـری اسـتاد چـې تـر دې مهاله یې ما داسې ژړانه وه اوریدلې دا ځل یې نو د دعاپه مهال ښه زړه تش کړ چې ورسره یې د شاګردانوسترګې هم نمجنې شوې...

خدایه ته یهود او نصارا شرمنده کړې!

خدایه ته مو غاور سې! بل غاورنلرو...

خدایه که دا وړه ډله (مجاهدین) هم ناکامه شي نو بیا به څـوک سـتا پـه دیـن غیرت کوی ...چې په دې سره یې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغـې دعـا تـه اشاره وه چې د بدر په ورځ یې فرمایل (ربی لو انهزمت هـذه العصـابه لم تعبـد فـی الارض..)

د جهاد او اسلام خواخوږو د مارجې د جګړې په اړه دعاوو ته داسې مهـال زور ورکړی چې بله غاړه امریکایان او نور اتحادیوالان یې درګـرده د پـوځي اکمالاتـو، تـازه دمو پوځیانو، هیلي کافترو او د ماین کشـفوونکو وسـائلو خـبري کـوي او وایـي پـه مارجه کې یې ځپل وروستی تخنیک او امکانات ګمارلي تر څو طالبان وځپي.

دا ښايي لومړنی ځل نه وي چې دوه سره متحاربې ډلې خپلې وروستـۍ هڅـې په کار اچوي تر څو د جګړې په ډګر کې (دګزاومیدان پـه وخـت) خپلـه بریـایقیني کړي. معمولا د هرې جګړې په وخت سره ښـکیلې خـواوې خپـل شـته امکانـات نـه سپموي او تر وروستي حده یې دپ ه کار اچولوکوښښ کوي، چـې همـدې حقیقـت خو په نړیواله کچه ډېر ځله نورې نادودې هم لـه ځـان سره درلـودلې لکـه د سـاري





ډول چې د اتومي وسلو او بالیستیکي توغندیو تولید د شرقي او غـربي زبرځواکونـو ترمنځ د وسلو جوړولو سیالي راوپاروله.

خو د مارجې په جګړه کې خبره بیخي بل ډول ده. دا ځل د وسـلو او توغنـدیو سیالي نه ده راپاریدلې، بلکې که په یوه جمله کـې ووایـو (د زور او زارۍ) تـرمنځ د سیالۍ او راننګولو میدان ګرم شوی. یو خوا اشغالګر جنرال مک کرسـټل او کـاري ګروپ یې دی چې د خپلو تازه دمـو پوځیـانو لپـاره د پرمختللیـو وسـایلو، څرخکـو، ماین کشفونکو، د شپې دوربینونو او دقیقو استخباراتو د موندلو او رارسـولو لپـاره لاس او پښې وهي، ترڅو د مارجې په خطرناکه جګړه کې د طالبانوپـه وړانـدې تـرې کارواخیستل شي. بلې خوا ته بیاسر په لاس افغان مجاهدین دي، هغوی چې د ستر نړیوال هوایي او زمیني ځواک په وړاندې یې هوایي مدافع په زنګ وهلـو دهشـکو او ناچله زیګویکو کې خلاصه کیږي. هغه وسلې چې له هرې ضربې سره بندیږي او پـه اپاچې هلیکوفترو له کرامتي اغیز پرته هیڅ تضمین شوی اغیز نه لري.

د ناټو ستر ټانګونه چې یوازې RPG۳۲ پـرې اثـر لـري دوی پـه هغـو روسـی RPG۷باندې ورسره مقابله کوي چې میلان او مرمۍ یې ټـولې ایکسـفایر دی او پـه هرو پنځوکې درې پوچیږي. دغه راز یې نورې سپکې وسلې هم همداسـې درواخلـه، نو دې وضعې ته په پام سره یې ځکه اوس په بشپړه توګه له وسلو اوزور ازمایلوڅخه زړه سپک کړی او دعاګانو او زاریو ته یې زور ورکړی. ویل کیږي چې تردې وړاندې هم طالبـانو دا ډول سـترې جګـړې تـل د دعاګانوپـه بدرګـه او د توکـل محـض پـه زورګټلي دي ځکه له پوځي لیدلوري په افغانستان کې د ناټو او طالبـانو مخامختیـا او د قوې توازن په هیڅ ډول د توجیه وړنه ده.

زما له نظره خو د مجاهدینو دا ابتکار هغه څه دی چې پـه بشـپړه توګـه سرلـه اوسه د دوی بریایقیني کـوي. ځکـه د اسـلامي تـاریخ د سـترو فـاتحینو او صـحابه

کرامو‌په اړه مې اوریدلي چې ویل به یې: موږ په دوه ډوله وسلو جنګیږو، یو هغه ډول وسلې دي چې کله خطاشي اوکله په هدف ولګیږي او دوهم ډول هغه دي چې خطا کیدل یې نشته او خامخاهدف له منځه وړي. لومړی یې نیزې، توري اوغشي دي او دوهم ډول یې د عامو مسلمانانو مظلومانو او مخلصومجاهدینو دعاګانې دي چې د جهاد د بریا لپاره یې کوي.

همداراز د دعا، الهي درګاه ته د زاریو او خپل ضعف ښودلو په باره کې بیشمیره فضائل او فواید راځي.. په هرحال، که موضوع نوره سره راوسپړو ښایي اوږده شي، راځئ اوس د دې نامساویانه پیل شوي جګړې پایلو ته انتظار شو چې زور یې ګټي که زاری؟؟

خو دې ته موبایدپام وي چې په جګړه کې د ګټلو او بایللو معیار د هغې اوږدمهالي پایلې وي نه آني او سطحي بریا.





## د عالمانه جرأت منار ونړېد

۲۹/ جنوري/۲۰۱۴

نن مازدیګر په جومات کې په لمانځه دریدلم، اقامت پیل شوی و، ما له جیب څخه مبایل په دې نیت راویوست چې صامت یې کړم، ګورم چې مبایل ته مې رساله راغلې، خلاصه مې کړه، رساله شاعر ملګري عبدالعلي تسل رالیږلې وه، په لنډو یې لیکلي وو: ذاکري صاحب هم د دښمنانو لخوا د ماسپښین له لمانځه وروسته شهید کړل سو انا لله وانا الیه راجعون. زړه مې ټکان وخوړ، کوم ذاکري، زه خو بل ذاکري نه پیژنم، همدا عبد الله ذاکري به وي، دتاریخي کندهار د ذاکر اوسیدونکی، اورژبی خطیب مصنف، عالم او جرأتمند داعي.

ملا صاحب تکبیراولی ویلی و، خو له مانه ځان ورک و، نیت مې وتاړه، خو الله تعالی دې قبول کړي نه پوهیږم څرنګه لمونځ مې وکړ. په لمانځه کې د فکرونو او اندیښنو یو درانه توپان لاهو کړی وم. هغه ورځ راپه یاد شوه چې په لومړي ځل مې عبد الله ذاکري صاحب ولید، امریکا په افغانستان حمله کوله، طالبانو په کابل کې د عالمانو ستره غونډه رابللې وه، غونډې ته زما مشفق استاد مولوي اعظم ګل صاحب هم ورغلی و، د بیرته راتګ په مهال یو دوه نور علماء هم ورسره راغلل. په دوی کې یو تن د ښایسته او جلالي قوارې څښتن د لوړ قد خاوند عالم و، چې اوږده چپنه یې په اوږو اچولې وه. مولوي صاحب موږ ته سبا د سبق په مهال وویل: دا عبد الله ذاکري صاحب دی، د افغانستان د علماء کرامو افتخار او آبرو... دا هغه جرأتمند عالم دی، چې هیڅ سیاسي زورور ته یې سترګې نه دي ټیټې کړې، نوموړی هغه تک تنها عالم دی چې د افغانستان زورور تنظیمي مشران او لوی لوی

رهبران ترې ویریږي او ټولو یو یو ځل دده د توبیخ او عتاب عبرتناکې څپېړې خوړلې دي.

د کابل د تنظیمي جګړو په مهال یې په یوه لویه غونډه کې د وخت رئیس جمهور برهان الدین رباني له خپل ټول جاه او جلال سره داسې ډنډاس کړ، چې ښایي د پاچاهانو په تاریخ کې یې چا ساری نه وي لیدلی، نوموړی په یوازې سر کابل ته تللی و ترڅو د تنظیمي مشرانو ترمنځ سوله راولي، خو کله چې یې د مشرانو کړې ارادې ولیدې، نو په پوره جرأت یې د هغوی پردې ورڅیرې کړې او په بشپړ اخلاص یې د زورورو په وړاندې د برحقې وینا اعظم جهاد ترسره کړ.

دتنظیمي جګړو په مهال نوموړي نه یوازې د رئیس جمهور (!) سابه ورپه مالګه کړل، بلکې صدراعظم (!) حکمتیار یې هم پرېنښود، انجینیرحکمتیار چې هغه مهال یې مولوي نصرالله منصور په چهاراسیاب کې له لارې ګرځولی و، کله چې ذاکري صاحب له دې پیښې خبر شو، نو حکمتیار ته یې کرښه تیره کړه، چې که په څو ساعتونو کې منصور صاحب خوشی نه کړي، د حزب په وړاندې به د ولسي پاڅون غږ وکړي. انجینیرحکمتیار په خپله بې پروایي ډېر زورور مات کړي وو خو دا د ذاکري التیماتوم و چې نوموړی یې تنزل ته اړ کړ.

دپاچاهانو او واکمنو په مخکې حقې خبرې کول او هغوی خپلو تیروتنو متوجه کول، خورا افضل صفت بلل کیږي. دا ډول جرأت الله تعالی ډېرو کمو بندګانو ته ورکړی وي، هغوی چې یوازې له الله تعالی څخه ویریږي او دبل هیچا پروا نه ساتي. د اسلام دوهم خلیفه حضرت عمر رضی الله عنه هغه چاته د رحمت دعاء کړې ده چې ده ته خپلې خطاګانې وروښیي.

د اوریدو له قراره ذاکري صاحب د هغو محدودو علماءکرامو له جملې څخه و چې ملامحمد عمر مجاهد ته یې د خپلې واکمنۍ په مهال په پوره جرأت او بې





پروایۍ خبرې کولې او همیشه یې اشتباهاتو ته متوجه کاوه، نوموړي له ملا محمد عمر مجاهد سره خورا نږدې اړیکې درلودې او ډېر ځله یې ورسره دوه په دوه ملاقات کاوه.

سږ کال حج ته تللی وم، دحج په سفر کې دزابل اوسیدونکی قاضي عبیدالرحمن معیني راسره ملګری و. نوموړی په افغانستان کې د اسلامي نهضت له پخوانیو مبارزینو څخه دی، چې وروسته یې د انجینر حکمتیار په حزب اسلامي کې دنده ترسره کړې. په نوموړي ډېرې سړې تودې تیرې شوي دي. دثور له کودتاه وروسته نوموړی په کندهار کې د اخوانیت په جرم زنداني شوی او د روسانو د راتګ په مهال په عمومي عفوه کې راخلاص شوی.

یوه ورځ یې د ذاکري صاحب بیان راته کاوه چې ویل یې: ما ډېر خلک ولیدل مګر دومره زړور انسان لکه عبد الله ذاکري صاحب مې په ټول ژوند مې نه دی لیدلی.

**ما ویل څنګه؟**

ده ویل: زه د کندهار په زندان کې بندي وم، دکمونیستانو زندان و، چې د هر عادي عسکر لخوا وژل کیدل، اعدام او شکنجه عادي خبره وه. هرعادي کمونیست د وژلو پوره واک درلود، په زندان کې سخت وحشت و، چې هیچا غږ نه شوای پورته کولای او نه یې له کمونیستي جلادانو سره ځواب ویلای شوای. مګر یوه ورځ یې یو تن زندان ته راووست، چې زندانیانو ته یې نوې روحیه ورکړه او د محبس وضعیت یې بدل کړ. دا سړی عبد الله ذاکري و. سخت تعذیبونه یې ورکړي وو او ولچک یې لاسونو ته سرچپه وراچولي وو خو له ټول ځور سره سره یې خلقیانو ته داسې خبرې کولې، چې چا یې تصور نه شوای کولای. هغوی یې کفار او د روس غلامان بلل او په ډاګه یې د جهاد خبرې کولې، مشاجرې یې ورسره کولې او ګواښونه یې

ورته کول، کمونیستانو په ډېرو تعذیبونو کوښښ وکړ چې دده خوله وربنده کړي، مګر ونه توانیدل. که هغوی به د مرګ ګواښ ورته کاوه ده په ډاګه ورته ویل چې شهادت ته اماده یم.

پخوا چې بندیانو له ډاره لمونځونه نه شوای کولای، ذاکري صاحب په کندهار زندان کې په لومړي ځل اذان او د جماعت لمونځ شروع کړل، چې ډېر بندیان به ورپسې په جمعه ولاړ وو.

هیڅا دا تصور نه کاوه چې نوموړی به د کمونیستانو له منګولو خلاص شي خو الله تعالی په پای کې نوموړي ته د ګڼو نورو بندیانو غوندې نجات ورکړ.

دا او داسې نور بې شمیره شواهد ښیي چې ذاکري صاحب د ایماني جرأت او همت یو اسمانڅک مینار و. نوموړی هغه عالم و، چې په ډاګه یي د امریکایي یرغل په وړاندې د جهاد فتوا نشر کړه او په دې لاره کې هیڅ سیاسي ملحوظاتو، وهم او ډار ورباندې غلبه ونه کړه. هلته چې د سیاف، رباني، فضل هادي شینواري او نورو غوندې د علم دعوه داران د کفري یرغلګرو په غیږ کې ولوېدل عبد الله ذاکري د ایماني پرتم توغ رپاند وساته او خپل عالمانه جرأت یي له لاسه ورنه کړ.

نوموړی د ژوند له پیله د کفر او طاغوت د سترګو خار و. که پرون یې په کمونیستي کفارو کې زړونه چاودلي وو نن یې د غرب غلامان پرلپسې تر ګوزارونو لاندې نیولي وو، نوموړی د لساني جهاد د لومړۍ کرښې مجاهد و چې بالاخره خپل هدف شهادت ته وصل شو.

له داسې سرلوړی داعي سره یوازې د شهادت مرګ ښایېږي نو ځکه یې مبارکی ورته وایو، الله تعالی دې د ذاکري صاحب شهادت قبول کړي.





هر څوک ژوند کوي او په پای کې مري، خو ډېر لږ خلک د ژوند حق اداء کوي. د ژوند حق اداء کول دې ته وایي، چې د انسان په تندي پرته له الله تعالی بل چاته د سر لګولو داغ نه وي. ذاکري صاحب همداسې عالم و، چې د ژوند تر وروستۍ ورځې یې خپل تندی لوړ وساته، نه یي روس ته غاړه ټیټه کړه او نه هم امریکې ته. نوموړي په خپل ژوند ویلي و چې شهید کیږي او د وینو پور به یې د امریکا په غاړه وي، چې نوموړي یې په افغانستان کې له پاته کیدو سره مخالفت کړی و او په وړاندې یې د جهاد فتوی ورکړې وه.

خو موږ باور لرو چې د ذاکري صاحب او شیخ عبدالسلام صاحب غوندې د حقاني علماء کرامو وینې تویول به امریکا او غلامانو ته یي ګټه ونه کړي او نه به یې په دې هیواد کې بقاء تضمین کړي ځکه چې:

دانی که خون ناحق پروانه شمع را

چندان امان نداد که شب را سحر کند

# د کابل جان منظره

۳۰/ نومبر / ۲۰۱۲

نن د پنجشنبې مازدیګر و. د طالبۍ له وخته مې دا عـادت جـوړ شـوی، چـې مازدیګر به له همځولو ملګرو سره چیرې په منظره وتلم. مګر د زماني تحولاتو اوس داسې وخت راباندې راووست چې هغه انـډیوالان چـې د پنجشـنبې د مـازدیګر پـه منظره کې به سره ملګري وو ډېری یې د تورو خاورو میلمانـه شـوي، ځـوک د تـورو تمبو شاته پراته دي او نور یې ځوک په وطن او ځوک بې وطنه مسافر دي.

د مازدیګر له لمانځه وروسته چې معمولا به پخوا زموږ منظره له همدې وخته پیلېده، د ملګرو د نه شتون او بیلتون شیبې ډېرې راباندې وغمېدې، خپلـې تیـارې کوټې ته ننوتم، څادر مې په سر راخپور کړ او یوه شیبه پـه تېـرو خـاطرو کـې ډوب شوم. وروسته مې د پام غلطولو لپاره خپل ګرځنده تیلفون له جیبه راویوست، یـوه ملګري ته مې زنګ وواهه، خو ټیلفون یې پورتـه نـه کـړ، تنهـایي نـوره هـم راباندې وغمېده، په ټیلفون مې ګوتې وهلې او د شاعر ملګري بسمل دا بیـت هسـې الهـامي راپه زړه شو چې زما دحالت ترجماني یې په ډېر ښه انداز کوله.

لاړل د بسمل د پنجشنبې د ماســـپښین یاران
اوس به د جمعې شپه لکه شمعې په قبرو کوو

دا خوږ بیت مې څو ملګرو ته مسیج کړ او بیا د ماښام لمانځه ته د تیارۍ پـه موخه ولټېدم.





خو د ماښام له لمانځه وروسته هم د مازدیګرني حالت اغیـر رابانـدې پـروت و. ماخستن چې نیټ ته کیناستم، بې پامه مې ګوګل ارت خلاص کړ، دا مهال راپـه زړه شول چې راځه د پنجشنبې د منظرې شوق په ګوګل کې د کابل جان په منظـره خړوب کړه.

په دې ډول د یوعالم احساساتو سره د خپلې سیمې (یعني جنوب لخـوا) کابـل ښار ته ورننوتلم. د کابل ـــ ګردیـز پـه سرک همداسـې دښـار خواتـه لاړم، د چمـن حضوري له کونج سره دکارته نو په سرک راوګرځېدم ترڅو لومړی د هغـې مدرسـې پوښتنه وکړم، چې د طالبانو د واکمنۍ په مهال مې څه مهال په کې درس ویلـی و، دومره مې په زړه و چې مدرسه په شاه شهید کې اتفاق مسجد تـه نـږدې وه او مـوږ به چې له میوند جادې په بس کې راسپاره شـوو، نـو دشاشـهید پـه دوهـم سرک بـه کوزیدو. په همدې دوهم سرک راتاو شوم او مخامخ د خپلې مدرسې په خوا ورغلم. ګورم چې په مدرسه باندې لیکل شوي دي (د ملالۍ جویا د نجونو عالي لیسه) زمـا د معلوماتو له مخې دا ودانۍ پخوا هم د نجونو لیسه وه چې په کورنیو جنګونـو کـې سخته نړیدلې، سوزیدلې او ویجاړه شـوې وه، د طالبـانو پـه مهـال د خـدام القرآن تعلیمي مؤسسې لخوا له سره ترمیم شـوه او د جامعـه عثمانیـه پـه نـوم د حافظـانو مدرسه په کې جوړه شوه، خو په دې مې ډېر نیت بد شـو چـې ولـې پـه دې لیسـه د ملالۍ جویا نوم ایښـودل شـوی دی. ملالـۍ جویـا چـې زه پیـژنم د افغانسـتان پـه تنظیم بازار کې تر ټولو د بدنام او کرغیړن تنظیم (راوا) غـړې ده، چـې لویـدیځوال ترې د افغان ښځو د بې لارۍ او تبرج لپاره د تبلیغاتي نانځکې په توګه کـار اخـلي. که په شاه شهید کې چې اکثره خلک یې پکتیاوال دي د نجونو په کومـه لیسـه نـوم ایښودل کیدای، باید سم په اسلامي او افغاني ترازو تللی نـوم پـرې ایښـودل شـوای وای. په هر حال زه تراوسه هم باوري نه یم چې هغه نومونه چـې پـه (ګوګـل نقشـه)

کې د کابل ښار د ځینو سیمو لپاره لیکل شوي دي رسمي دي او که هسې د (ما وشما) لخوا لیکل شوي دي.

د مدرسې د لوحې په لیدلو له نیمې لارې بیرته راستون شوم، یوه شیبه مې د ځاځي بابا جومات ته سر ورښکاره کړ، چې زموږ ځیني کابل میشتي وطنوال په کې د مړو فاتحې اخلي، خو بیرته مخ په ښار وتوغېدم، په جاده میوند باندې ترسرچوک پورې لاړم، دلته مې یوه شیبه بریک ونیو او وروسته همداسې مخ په قبله رهي شوم ترڅو دهمزنګ چوک ته ورسېدم، دلته ښي لاسته چې دکوټه سنګي به خوا کوم سرک ځي ورباندې لیکلي و (سرک سه عقرب) هیڅ یې په سراوبر ونه پوهیدم چې دا څه معنی؟؟ فکر کوم دا نوم به د ظاهر شاهۍ له وخته او یا هم دکمونیستانو له وخته پاته وي په هرحال.. د سه عقرب په سرک چې د کوټه سنګي خواته تلم، د پوهنتون ترمخ مې ګڼه ګوڼه ونه لیده. ویل کیږي چې حکومت نه یوازې د کابل پوهنتون بلکې د دې ښار ټول پوهنتونونه تر دویم امر پورې بند کړي دي. تېر کال چې په غزني کې په طالبانو وتپل شوه چې مکاتب یې بند کړي نو ټولې دنیا غوغا جوړه کړه. مګر اوس چې حکومت پوهنتونونه بند کړي څوک غږ هم نه کوي.. قربان شوم خدارا... یک بام و دو هوا را..

له کوټه سنګي نه چې ښي لاسته د پل سوخته په سرګ وګرځې، قلعه شاده ته نارسیده، یوسرک مخ په قبله وتلی دی، چې نهایتا د کابل ـــ کندهار له سرک سره وصلیږي، په دې سرک یې لیکلي و (سرک شهید مزاري) حیران پاته شوم او له ځان سره مې وویل چې دا سرک خو بیخي د دې لپاره مناسب نه دی چې د مزاري نوم ورباندې کیښودل شي، ځکه که انسانان په توپه وولو، نو د کوټه سنګي له دیوالونو هم شرم په کار دی، چې د همدې مزاري صاحب له لاسه تر اوسه داسې سوړې سوړې، او شوګاري بوګاري ولاړ دي.





هغه دیوالونه چې د (سرک شهید مزاري) نوم پرې لیکل شوی و، ټولو یې په سینه باندې سپکې او درنې مرمۍ خوړلې وې، د چا ځیني برخې نسکورې پرتې وې، د چا سینې سورۍ وې او د چا خروکي اوښتي وو، چې داټول تلفات په همدې سیمه دمزاري صاحب دسلطنت په مهال ورته رسیدلي وو.

سخت مې طبیعت خټه شو، بیرته مې مخ په کوټه سنګي خپلې کړې او مخامخ مې د سېلو په سرک د قرغې سرک ته ځان ویوست. زه چې د بي عدالتیو له بارانه تښتیدم تر ناوې لاندې مې شپه شوه. په دې سرک چې تر قمبر څلورلارې تلم، نو نه یوازې یې سرک د همدې سیمې د ستر قاتل برهان الدین رباني په نوم کړی و، بلکې د اجتماعي علومو پخوانی انستیتیوت او بیا فاروقیه جامعه یې هم د برهان الدین رباني په نوم نومولي وو. دلته دې بې عدالتۍ سخت ودردولم، په ذهن کې راوګرځیدل چې هسې نه خطا شوی به یم، یو ځل بیا مې د پوهنتون لوحې ته وکتل، چې په دې کې مې یاغي نظر ناڅاپه د شمال په خوا لاړ او د افشارو په سپیره کلي مې سترګې ولګېدې. دلته مې نو له پښو ځمکه وتښتیده او د انسانانو په نمایندګۍ سخت خولې خولې او شرمنده شوم.

افشار د هزاره ګانو هغه کلی چې د ملي قهرمان (!) مسعود د مبارزاتي ژوند یوازینۍ مفتوحه سیمه او پوځي لاسته راوړنه بلل کیږي. امرالله صالح وایي چې آمر صاحب د روس ضد جهاد کې ٦٠ فیصده رول اداء کړی، خو ګورئ دا خبره ورسره ونه منئ. مسعود د جهاد په وخت کې د پنجشیر ولسوال وو، او له پنجشیر ولسوالۍ پرته یې بل هیڅ ځای څوک نه شي ثابتولای چې د ده کسانو دې ټک کړی وي، دی دروسانو تر وتلو وروسته دخاواک له غاښي واوښت او په اندراب کې یې مداخله شروع کړه، دغه رنګه یې د تخار مجاهدین هم د یوه بل دجنګولو په توسط ښه تضعیف کړل. ده له روسانو او پرچمیانو سره زړه یارانه درلوده، کله چې حقاني صاحب د هغه وخت کوچنی مسکو (خوست) د ١٧ ورځنیو عملیاتو په توسط په وچ

زور فتحه کړ، نو پرچمیانو د شوروي په دیکته تخار مسعود ته هسې مفت ورپریښود، ترڅو یې نظامي پرستیژ قوي شي او د تخار په فاتح شهرت ومومي. ده چاریکار او کابل هم په جنګ نه بلکې په سازش ونیول او وروسته یې هم ټول وخت په پیشرفت او فتوحاتو کې نه، بلکې په عقب نشینۍ او (ټانګ بګریز که داتسن آمد) کې تېر شو، خو یوازینۍ هغه بریا چې باید د ده په تاریخ کې په زرین خط ولیکل شي، هغه د افشارو فتحه ده.

د ۱۳۷۱ لمریز کال د دلوې په سره څېله کې برهان الدین رباني غوښتل چې د قرغې د سرک شمالي برخې په خپله کوڅه واکې کې داخله کړي نو ځکه یې مسعود او سیاف ته په افشارو او (په خپل پوهنتون کې) دحزب وحدت د مرکزي دفتر د نیولو په تکل دعملیاتو قومنده ورکړه. د دې جګړې په مهال د عبدالعلي مزاري په مشرۍ د حزب وحدت کسانو د رباني پوهنتون (!) دیوالونه سوري کړل او ځان یې د کابل لویدیځ ته ویوست. خو د افشاروپه بې چاره او بې دفاع خلکو مسعود هغه د ظلم میچنې وچلولې، چې دغه سپیره کلی به یې کله هم هیرې نه کړي.

زه چې په رباني سرک د رباني پوهنتون مخې ته ولاړ وم، د افشارو له کلي سخت وشرمیدم نو ځکه بیرته د ښار په خوا راوتښتیدم.

په ښار کې نور داسې د پامور بدلون تر نظر رانغی، یوازې همدا د سرکونو د نومونو، عکسونو او نورو تبلیغاتي کارونو په برخه کې څه کار شوی و. بل په شیرپور کې څو ډېر ښایسته کورونه جوړ شوي وو، چې ویل کیدل څلورم چت ته یې همر واګون ورختلی شي.

د کابل په دیپلوماتیکه ساحه کې په یوه چوک (چهار راهي مقاومت) نوم ایښودل شوی، خو ویل کیدل چې که چیرې دمقاومت مدعیان د چهارراهي له ملکیت څخه نه په شاکیږي نو بیا د دې په ځای (چهار راهي شر او فساد) بیخي





مناسب نوم دی. له همدې ځایه نه پوهیږم په کومه کوڅه برابر شوی وم چې د هوایي ډګر په سرک ورګډ شوم، د دې سرک په لوحه لیکل شوي وو (جاده مسعود بزرګ) دا نوم تریوه حده مناسب راته وبرېښید، ځکه له شش درکه نیولې بیا درې واړه مکروریان او هوایي ډګر هغه سیمې وې، چې مسعود په کې له خپل سیال رشید دوستم سره سختې جګړې وکړلې او داسې معلومیده چې د جګړې په دې میدان کې مسعود بر و. خو دلته یوې بله بې انصافي راپه زړه شوه، هغه دا چې که چیرې دا سیمه له دې امله د مسعود په نامه شوي وي چې د هغه د جګړې ډګر و، نو بیا خو باید د کابل بالاحصار د اسدمارخور په نوم شي ځوک چې د دوستم لخوا دسیمې مشر و. دغه راز باید د آب وبرق پخوانی ریاست د عبدل چریک په ریاست سره یاد شي ځکه هغه هلته پوسته درلوده او د کابل میدان هوایي دې د حکیم جرمن ګلم جمي په هوایي ډګر سره ونومول شي، ځکه هغه د دې ډګر قومندان و.

دغه راز پل آرتل او دهمزنګ دې د شفیع دیوانه په نامه ونومول شي، ځکه هغه هلته پوره څلورکاله له میرمنو څخه تیونه پرې کول او په سرونو یې ورته ۹ نمبره میخونه ټک وهل. که چیرې دانه کیږي نو کوټه سنګي، دهبوري او ګذرګاه خو باید ضرور د ابوذرغزنوي یا کریم خلیلي په نامه شي، ځکه د دې سیمې یودیوال یې هم بې مهربانۍ نه دی پرې ایښې. دغه راز به مناسبه وي چې میرویس میدان او د قرغې سیمه د زلمي توپان او شیرعلم په نومونو ونومول شي او جاده میوند، تپه مرنجان، شاه شهید، کارته پروان او نورې سیمې دې د فهیم، بابه جان، سیدخیلي او بسم الله خان په نومونو شي، ځکه دوی په دې سیمو کې خورا تاریخي (!) کارنامې ترسره کړي دي. که د سروبي او نغلو بندونه د زرداد په نوم شي نو هم ښه خبره ده، ځکه ده د یوې سپږې لپاره پوستین اور ته اچولی و او د رباني په خاطر یې د کابل په ټولو ښاریانو څو کاله برق قطع کړی و.

زه په همدې سوچونو کې وم چې د کابل دکوم فاتح نوم د کوم ځای لپاره مناسب دی، په همدې سوچونو کې تقریبا په ټول ښار کې وګرځیدم، خو په دې پسې مې هم تلاش و چې ودرې د افغانستان د تاریخ د مشهورو اتلانو او شخصیتونو په نومونو هم کومې سیمې نومول شوي دي او کنه. خو هیڅ سرک هم تر نظر رانغی. په پای کې چې کله له کابله دوتلو په مهال په ختیځ کې د قلعه زمان څخه تیر شوم او په یوه دوړن سرک وربرابر شوم، نو ومې لیدل چې وربانديې لیکلي دي د (احمدشاه بابا سرک) د دې عجیبه نومونې سره د کلیوالو هغه متل رایاد شو چې بې انصافه ویشونکي ته به یې ویل (غټې غټې ځان ته کړه، وړې وړې داد خان ته کړه) د کابل اوسنیو واکمنو هم غټ غټ چیل متره سرکونه ځان ته کړي دي او خپل نومونه یې پرې لیکلي دي، خو د قلعه زمان څخه د پل چرخي په لور په دوړن سرک یې داحمدشاه بابا نوم ایښی دی، دملابجلي ګر خبره هې شرمیدلیو... چې داسې حال وي نو ها د شاعر خبره (باران به څنګه وشي!!!)





# دیپلوم لرونکي غله

۱/ ډسمبر/۲۰۱۰م

دا د لا وړمې شپې کیسه ده د تیرې یکشنبې قضاماښام و، چې زموږ د سپارلۍ ۳۰۳ بس موټر له غزني څخه مخ په کندهار د کلات ښار ته ورسید، د ډرایور لکه چې هڅونه خبر وو، موټر یې یوه هوټل ته وروګرځاوه او د کلینر په خوله یې سپارلیو ته اعلان کړه چې شپه به مو همدلته وي. خو د موټر له لر سر څخه تر بره ټولو سپارلیو جنجال شروع کړ او ډرایور ته یې ویل چې شپه اوږده ده باید کندهار ته ځان ورسوو. ډرایور وویل په لاره کې غله سرک ته راخیږي هسې نه و مو شکوي، خو سپارلیو نه منله ترڅو یې ډرایور بیرته حرکت ته مجبور کړ.

زما د څنګ ملګری د پکتیکا د مرکز ښرنې اوسیدونکی یو خوشطبعه ځوان و چې نیاز خان نومېده او ټوله لاره یې ډېر خوږ مجلس کاوه. له کلاته چې ووتلو تیاره ډېره زیاته وه او یوازې زموږ موټر په سرک باندې په حرکت کې و. په دې وخت کې زه او د څنګ سیټ ملګری په مجلس او د غلا د احتمالي خطر په اړه په ټوکو ټکالو لګیا و او موټر د جلدک د خارانو سیمې ته رسیدلی و چې ناڅاپه ډرایور یو الویزانده بریک وواهه. ما چې د څنګ له هنداري سرک ته وکتل یو خړکالی مول وهلی وسله په لاس سړی مې ولید چې د موټر مخې ته لربر کیږي کلینر غږ وکړ غله دي!! په دې وخت کې ډرایور هم چې د دغو کسانو وسلې او د ډزو ګواښ حس کړی و موټر ودراوه. د موټر د مخې دروازه بېرته شوه او دوه تنه بدشکله کسان چې

ګواښونه یې بادول موټر ته راوختل ډرایور یې وګواښه چې زر د موټر لایټونه خاموش کړي ډرایور غریب مجبورا د موټر بتۍ مړې کړې او بیا یې د دوی په امر موټر له سرک څخه خامې ته کړ د غونډیو په پیڅه کې له لږ مزله وروسته ډرایور له خپلې څوکۍ څخه هم ولاړ کړای شو او یو مخ پټۍ غل موټر ته کینوست، موټر یې په کاڼو او بوټو کې په مړو اشارو روان کړی و، ترڅو یې له عامه سرک نه ښه ګوښه د یوې غونډۍ شاته ودراوه. دلته یې نو موټر ګل کړ او یوه غله په درانه غږ سپارلیو ته اعلان کړه چې (په خبره سرخلاص کئ زموږ کار له پیسو سره دی که دځان عزت غواړئ خپلې پیسې په رضا سره راوباسئ که جنجال مو وکړ بیا به ډېر تاواني سئ)

دلته نو یو غل په موټر کې ودرېد درې تنه د موتر له دروازې سره ودرېدل چې دې کسانو وسلې نه درلودې او نور کسان چې له یوه سره پیکا ماشینګنه او نورو سره کلاشینکوفونه ول، لږ لرې ګوته په ماشه ودرېدل. همدې په موټر کې کس به دوه دوه کسان ورپاڅول او هغونورو دریو تلاشي کول او وروسته یې لږ لرې پنډول. څرنګه چې خلک ډېر وو او په موټر کې تیاره وه نو د بس د شاتنیو څوکیو کسانو ته دا ښه مهلت و چې خپلې پیسې او نورقیمتي شیان د موټر په کومه برخه کې پټ او خوندي کړي. چې په دې لړ کې ما هم خپلې پیسې دوه ځایه د سیټونو ترمنځ پټې کړې. په تلاشي کې یې پیسې، مبایلونه، د زرو ګوتې، ساعتونه، ښه پټوګان او قیمتي کوټونه له خلکو اخیستل. پیسې یې دومره دقیقې پلټلې چې د خلکو جیبونه، پګړۍ او آن جرابې یې هم پسې لټولې او یوګون یادوه ګون اوسپنیزې پیسې یې هم نه پرېښودلې، د ټولو خلکو له تلاشي کولو وروسته یې په همدې ناستو کسانو باندې پیره ودروله. دوی په موټر کې تلاشي پیل کړه چې بیخي تر ډېره وخته په کې بوخت ول، بیا یې د موټر له زیرمتون څخه د خلکو بکسونه او غوټې راتویې کړې او پلټنه یې په کې پیل کړه، چې په دې یې هم ډېر ځنډ ووت. وروسته یې له همدې ناستو کسانو څخه یو یو کس بیا پاڅاوه او دوباره یې تلاشي کاوه او لږ





وړاندې یې کیناوه، چې کله دا تلاشي هم ختمه شوه چې په دې وخت کې نو شپه ښه پخه شوې وه نور یې خلکو ته اجازه ورکړه چې موټر ته وخیږي خلک موټر ته وختل او په خپلو خوندي کړو پیسو پسې یې تلاش پیل کړ چې له نیکمرغه زما په شمول د ډېرو کسانو یوه اندازه پیسې ترینه بچ شوې وې او مونډلې یې نه وې. موټرپه همدې راغه کې بیا مزل وکړ چې شیبه وروسته بیا سرک ته برابر شو او غله هم مونږ ته د تګ له اجازې سره په نامعلوم لورې الونیاشول.

موټر ته په ختلو رامعلومه شوه چې ځینې بې وزلي مسافر دې ظالمانو سخت تاواني کړي دي. د پکتیکا د خیرکوټ یو اوسیدونکی چې وېش باډرته په سودا پسې روان و، دوه لکه کلدارې یې ترې اخیسې وې، یو بل چې د غزني اوسیدونکی راته ښکاره شو، یو نیم لک کلدارې یې ترې لوټ کړې وې، د ښرنې یو اوسیدونکی چې د سروزرو ګوته، قیمتي ګړۍ او ډېرې پیسې یې ترې لوټ کړې وې تقریبا لیونتوب ته رسیدلی و، بیځایه له ځان سره ګرېده او ځان ته یې ویل چې ښه شوې همداسې ښه یې والله که یې شش پولې هم درپرې ایښې وي!! په موټرکې د ټولو مسافرو شمیر د ډرایور په قول ۷۲ تنو ته رسیده چې ټولو ډېرخه له لاسه ورکړې وو، په دې مسافرو کې ډېر د ایران د مسافرۍ لپاره تلونکي کسان او یو شمیر بې وزلي هزارګان وه چې د کرایې د بچت لپاره د څوکیو تر منځ په لارو کې ولاړ ول چې ورسره ټول شته ترې دې مخ پټو ظالمانو لوټ کړل.

داغله چې د ټولو شمیر تقریبا ۷ تنوته رسیده څو تنو یې چې خبرې کولې سیمیزه پښتو یې ویله، یو دوه نورو بیا له پښتو سره فارسي هم بې چوخسه ویله او یو دوه داسې هم وو چې بالکل نه غږیدل. دوی له خلکو سره خورا سم چلند کاوه یعني دا چې ترپایه یې کوم څوک ونه واهه حتی ښکنځل یې هم چاته ونکړل، د سپین ږیرو سره یې هم ګوزاره کوله او په موټر کې موجوده یوازینۍ زنانه خو یې

بیخي تلاشي نه کړه چې له برکته یې د ډېرو خلکو لخوا ورغورځول شوي مبایلونه اوپیسې هم بچ شوې. دوی په خپل منځ کې ډېر ناشولته ښکنځل او بدرد سره بادول خو خلکو ته یې ویل چې یوازې پیسې راوباسئ نور مو وروڼه یاست، دوی ټولو عامه کالي اغوستي وه په څادرو یې ماسکونه تړلي وه او ډېر په اطمینان او دقت یې خپل کار ترسره کاوه.

مګر دوی که خپل وربوزونه هر څومره مضبوط تړلي وو چندانې فایده یې ونکړه او هغه خبره یو ځل بیا د کاڼي کرښه وختله چې وایي مړی چې خدای شرموي په تخته یې باد پرې سي... د دوی هم د غلاپه میدان کې داسې کردار راپاته شو چې دغه ۷۲ تنه افغانان ټول پرې پوه شول چې دا کسان څوک دي، د چا دي او په اړه یې باید له چا پوښتنه وشي.

موږ شپه د شهرصفا ولسوالۍ له ودانۍ نه لږ ورتېر یوه داسې هوټل ته راوړه چې نه په کې ډوډۍ پاته وه او نه هم بسترې وې، لمونځ مو د هوټل په تیاره سالون کې په جمع ادا کړ او وروسته نو د لوټ شویو همسفرو انډیوالانو تر منځ بنډارونه پیل شول. خوب ځکه نه و چې له یخ او وسواس څخه هیڅا ته هم خوب نه ورته، له یو څه ګوزاره حال خوب وروسته چې سهار راپاڅیدو بیا هم مسافر پینډې پینډې سره ناست دي او مجلسونه ګرم دي. دا مهال ځینو خلکو لمونځونه کول او هالته ډرایور پله پسې د موټر غاړه تازه کوله او سپارلیو ته یې داسې ښودل چې ژر راځئ چې روانیږو!! خوپه دې مهال څو تنه سره ملګري کسان رایوځای شول، ډرایور او سپارلیو ته یې وویل چې مونږ نه ځو ځکه موږ خپل مدعیان پیژندلي ترڅو مو چې خپل حق نه وي وصول کړی قدم هم نه اخلو.

د یوه ځوان په لاس کې کارت و او ویل یې دا چې کله د موټر له دروازې سره غلو د تلاشۍ په مهال په بېړه لاسونه د خلکو او بیا په خپلو جیبونو نویستل او





راایستل د یوه غله له جیب څخه دا کارت ولوېد او ما په پوره هوښیارۍ راپورته کړ، د نوموړي له دې خبرې سره مې کارت ته سودا شوه او ترې وامې خیست کارت په حقیقت کې یوه تصدیق نامه وه، د افغانستان بیرغ او نشان دغه راز د کورنیو چارو د وزارت ځانګړی رنګه نشان پرې لګیدلی و او په کمپیوټرایز بڼه جوړ شوی و. دا کارت د (ولی الله ولد خان بادشاه) په نوم و، چې څه موده وړاندې یې د کورنیو چارو د وزارت له خوا د پولیسو د روزنې او په ولسوالیو د سلطې حاصلولو په نوم په کوم روزنیز پروګرام کې ګډون کړی و او د روزنې له حاصلولو وروسته ورته وزارت دا کارت یا تصدیق نامه ورکړې وه. د کارت په لاندینۍ برخه کې د یوه خارجي جنرال مک آن ډونلډ، پاسوال ګل نبي احمدزي او د کورنیو چارو د وزیر په عنوان د محمدحنیف اتمر لاسلیکونه وو، دا کارت چې د ټولو مسافرو تر منځ لاس په لاس وګرځول شو د ټول دا شک په یقین بدل شو چې بیګانې شوکماران همدې سیمې ته نږدې د کومې پوستې پولیس دي چې دا یې د اعتبار کارت دی، په دې سره د ډرایور په شمول ټولو ومنله چې باید د شهرصفا ولسوالۍ ته ورشو او عریضه وکړو. د موټر مخه بیرته راوګرځول شوه او د شهرصفا ولسوالۍ مقام ته ورغلو، څو تنه مسافر چې ډیرې پیسې یې له لاسه ورکړې وې دغه راز د کټواز د جاني خیلو یو په خبره پوه سړی مو د هماغه سند سره یوځای وروليږل، ترڅو له ولسوال او قومندان سره ووینې او دغه ولي الله نومی غل پرې پیدا کړي.

ورغلي کسان خو لومړی ځکه د څو ساعتونو لپاره پسې ناوخته شول چې چارواکي له خوبه نه ول راویښ شوي او له څو ساعته انتظار وروسته چې راویښ شول، یوشناوی سړی چې د پولیسو جامې یې په تن وې اوښایي کوم قومندان یا څارنوال به و مخابره په لاس زموږ له کسانو سره د سرک غاړې ته راغی. دا مهال نو د موټر ټولې سوارلۍ له دې امله ورته راکوزې شوې چې ته ودرې څه به وفرمايي او یابه خپل حق ورکړي. خو هغه چارواکي د دې په ځای چې د خپل رسوا شوي

پولیس غله په اړه څه وایي په خلکو یې خوله پرې کړه چې د مازدیګر له څلور بجو وروسته ولې په دې لاره تګ راتګ کوئ، بیا کـه تاسـو غلـو پـه رښـتیا هـم شـکولی یاستئ مونږ خو څه د طالبانو د حکومت غوندې نه یو چې په غلو پسې به یـې منـډه کړه او همالته به یې وویشت. زموږ په قانون کې چې غله وهم وینو مونږ ته د ډزو یا الزام امر نشته که دا اوس زه درسره لاړ شم او دا غله پیدا هم کړو، تاسو به د قانون له مخې دوه کاله مقدمه ورسره چلوئ، شواهدبه راوړئ اوبیا به په هغه باندې ثبوت کیږي دا ډېر وخـت او جنجـال غـواړي او کیـدای شي تـر دې ډېـرې نـورې پیسـې موږې مصرف شي. ښه دا ده چې هسې ځان مه ستړی کوئ چې څه پیښ شول هغه پیښ دي، بادیګر په دې لاره ډېر پام کوئ. نومـوړي چـې دا خـبرې وکـړې زمـاسره نږدې یو مسافر راته په غوږ کې وویل مونږ والله عجب خلک یو چې له دغه.... نه د غلو پوښتنه کوو، زه چې په دې لاره څم هـره ورځ همداشـناوی ویـنم چـې لـه نـورو پولیسو سره یوځای دلته له لویو موټرو څخه پیسې شکوي او د سپینې ورځـې غـلا کوي نو مونږ ته به له دې پرته نو رڅه وایي.

شناوي قومندان له هغو کسانو څخه ثبوت (هغـه کـارت) هـم یـووړ او خلـک ساړه خپل موټر ته وختل، زما باور دی چې قومندان به په هماغه ورځ ولي الله او د پوستې ټول انډیوالان یې راغوښتي وي یو خو به یې دب یګانی شوکې حساب ورسره سپین کړی وي او بل به یې هماغه کارت په مخ ورویشتلی وي چې لـه دیپلـوم سره څوک دومره بې احتیاطي کوي تاسـو خـو خیـر زمـا پـه ګـډون مـو د ټولـو عسـکرو (دیپلوم لرونکوغلو) پرتوګونه راپه غاړه کړل.





## شبی که شبیخون صلیبی ها با خود داشت

۱۰/ اکتوبر /۲۰۱۵ م

علائم خزان بتازگی پدید آمده بود و گرمی تابستان داشت جـای را بـه سردی خزان و زمستان خالی میکرد، وزش بادهای سرد و ریـزش برگهـای درختـان چنـان می نمود که موسم زرد رنگ خزان آمدنی است، درسها و کتاب های مـا هـم رو بـه اتمام بودند وهمهٔ شاگردان مدرسه مصروف آمـادگی بـرای امتحانـات پایـان سـال بودند.

این شب کدام تفاوت خاص با شبهای دیگر نداشت، حسب معمول کتاب هـا خوانده ودرسها مطالعـه شـدند، نمـاز اقامـه و طعـام شـام صرف شـد طالبـان بـه خوابگاههای شان رفتند اما تا حال محو عالم خواب نشده بودند که ناگهـان غـرش طیارات جنگی در فضای آرام و آسمان پرستاره کشور طنین انداخت.

مدرسهٔ ما درموقعیتی بود که طیارات امریکایی که از بحر هند بسـوی کابـل راه می پیمودند از سر ما میگذشتند، آن شب چند دفعـه طیـارات جنگـی سـکوت آرام شب را شکستاندند. هیچ کس نمیفهمید چه در جریان است؟ هـرکس تحلیـل خود ابراز میکرد شاگردان کم سن مدرسه تا حدی ترسیده بودند که قسمت زیـاد شب به بیداری سپری کردند، صبح که شد بعد از ادای نماز تمام اسـاتذه و طـلاب مدرسه گرد همان یگانه رادیو حلقه زدند که در دفتر مدرسه بود، همه میخواستند از جریان دیشب و غرش و پرش طیارات جنگی خود را آگاه نمایند.

رادیوی بی بی سی در برنامه بامدادی خود گفت که طبق فرمان پریزیدنت (جورج دبلیو بوش) طیارات امریکایی شب گذشته برای نخستین بار افغانستان را مورد هجوم قرارداده در شهرهای کابل، قندهار، هرات، خوست و چندتا شهرهای دیگر اهداف متعدد را بمباران نموده است.

باآنکه از لحظ عمر کم سن بودم آما خوب بیادم است که از قندهار یک تن از مسؤلین امارت اسلامی بنام عبدالاحد جهانگیروال با بی بی سی مصاحبه نمود و در باره تلفات بمباران معلومات ارائه کرد.

به این ترتیب جنگ ناموجه و اشغال ننگین امریکایی ها از همان شبیخون ناجوانمردانه بر کشور ما آغاز گردید. مردم که غرش طیارات امریکایی و تبلیغات مغرورانهٔ دشمن می شنیدند نسبت به وضعیت آینده بیشتر وارخطا بودند هر کس میگفت کشور از آن امریکاییها شد، امریکا سوپر پاور، قدرت اتمی و یگانه ابر قدرت مطرح جهان است، حتی قدرت های بزرگ جهانی مثل چین و روسیه نمیتوانند در برابر امریکا قد علم نمایند، ما که کم سن بودیم و قدرت تحلیل اوضاع را نداشتیم با شنیدن این چنین سخن ها بیشتر روحیه را از دست میدادیم و بر حال وطن، جهاد، شهیدان و مهاجران که برای استقلال وطن و تاسیس نظام اسلامی متحمل مشقات و قربانی های بی مثال شده بودند حسرت میخوردیم و حالا وطن را نظاره میکردیم که در طلسم طاغوت اشغالگر امریکایی می افتد و مردم سلحشور افغانستان یک بار دیگر محبوس اشغال اجنبی ها میشوند.

صبح استاد کلان مدرسه (مرحوم مولوي اعظم گل صاحب) نسبت به دیگر روزها وقت به مدرسه آمد، طالبان را در صحن مدرسه جمع کردند و برایش به موعظه و بیان پرداخت، استاد مولوی صاحب قصهٔ اصحاب الاخدود که در سورهٔ البروج در قرانکریم ذکر شده است بتفصیل ارائه نمود و به برهان و دلیل واضح





این سخن را روشن ساخت که موفقیت و کامیابی همواره از آن حق و حقانیت است، باطل هر چند که بظاهر قوی، مغرور و هیبت ناک بنظر میرسد اما در میدان عمل نمیتواند با حق مقابله کند، موفقیت نهایی فقط و فقط مال اهل حق و مسلمانها ست.

مولوی صاحب همچنان بتاریخ پر افتخار و پندآموز کشور نیز روشنی انداخت از تهاجمات و اشغال انگلیس و شوروی یادآور شد و گفت که انگلیس و شوروی هم در عصر خود قدرت های بزرگ جهانی بودند حتی در باره انگلیس گفته میشد که بر تمام جهان سیطره دارد و آفتاب در مستعمرات شان غروب نمیکند. همچنان ارتش شوروی وقت یک ارتش شکست ناپذیر پنداشته میشد که آسیای مرکزی، قفقاز، اروپای شرقی و زمین های فراوان در دور وبر جهان فتح نموده و امپراطوری بزرگ و از لحاظ پهنا منحصر بفرد را تاسیس نموده است.

اما وقتیکه همین امپراطوری ها وسیع و بزرگ وارد جنگ با نیکان جهاد پرور ما شدند الله تعالی یک بار دیگر همان مقولهٔ درویش این سرزمین حضرت خواجه عبد الله انصاری رحمه الله را صادق ساخت که گفته بود: الهی هر که راخواهی براندازی با درویشان دراندازی.

اوراق تاریخ شاهد هستند که آنان درین سرزمین با شکست تاریخی و یاد ماندنی مواجه شدند تا حدیکه نه تنها خاک کشورما را ترک گفتند بلکه امپراطوری ها شان درخاک خود شان هم نتوانستند حیات خود را ادامه دهند، لذا بگونهٔ بسیار عبرت آموز از هم پاشیدند و شرمسار تاریخ و جهان شدند.

خوب بیادم هست که استاد ما مولوی صاحب همان روز وعده داد و گفت: من بتوکل به خدای لایزال برای شما نوید میدهم که ان شاءالله طاغوت امریکایی

نیز بسرنوشتی گرفتار خواهد شد کـه قبـل ازیـن انگلـیس و روس مـزۀ آن چشـیده است.

ای طالبان خردسال! من در ان زمان شاید زنده باشم و یا نه، مگر بیاد داشـته باشید که عساکر امریکاییها مغلوب خواهند شد و اموال و اسلحۀ ایشان بدست مـا غنیمت خواهند شد، شما و یا فرزنـدان شـما در پتلونهـای امریکـایی کـار و شـکار خواهید کرد.

در آن روزها برای همۀ سخنان استاد مدرسۀ ما باور ناکردنی بنظـر مـی آمـد حتی بعضی ها بطور مـذاق از آن یـادواری میکـرد و ملامـت هـم نبودنـد زیـرا کـه طاغوت امریکایی قدرت فراگیر داشت و طلسم تبلیغاتی شان تمام اذهان مردم را مسموم ساخته بودند.

اما قسیمکه گویند: قلندر هرچه گوید دیـده گویـد... اسـتاد فاضـل و ریـش سفید حالا در دنیا نیست اما ما بچشم خود می بینیم که سخنان اش یـک یـک بـه واقعیت می پیوندند، طاغوت امریکایی شکست خورده است، هزاران هزار عسـاکر شان فرار کرده است، تانکها، تفنگها، تجهیزات و حتـی بـیس هـای سربسـته شـان بدست مجاهدین غنیمت افتاده است، حالا امریکا یگانه ابرقـدرت جهـانی نیسـت بلکـه ارتـش امریکـا لشـکر شکسـت خـورده، نـاتوان و فـراری از جنـگ افغانسـتان پنداشته میشود، واین حقیقت و واقعیتی است کـه در شـب آغـازین اشـغال بـرای هیچ کس قابل باور نبود.

..................





## نازم بچشم خود که جمال تو دیده است

۲۰۱٦ /می/ ۱٦

انا لله و انا الیه راجعون. نن مې د هغه چا د وفات خبر واورېـد چـې لـه خپـل شخصي نظر او برداشته راته د دې زمانې تر ټولو ستر او رسیدلی انسـان ښـکارېده. د علم، عمل، اصلاح او ارشاد د ډګرونو میړنی د غزني ولایت اوسیدونکی (د واغـز په خلیفه صاحب مشهور) قطب المشائخ جناب خلیفه داد محمـد غزنـوي صـاحب. چې د هجران د رفع کولو لپاره یې د مولانا صالح خراساني له لاندنیو ابیاتو پرته نـور داسې توري نلرم چې دغه تأثرات پرې پیل کړم.

نـازم بـه چشـم خـود کـه جـمال تـو دیـده اسـت
افـتم بـه پـای خـود کـه بـه کویـت رسـیده اسـت
هـــر دم هـــزار بوســـه زنـــم دســـت خـــویش را
کـــو دامنـــت گرفتـــه بســـویم کشـــیده اســـت
در زر بگیـــــــرم از ره تعظـــــــیم گـــــــوش را
کـــآواز جـــانفزای تـــو روزی شـــنیده اســـت
هـــوش و خـــرد فـــدای دل خویشـــتن کـــنم
کـــز جـــام تـــو شراب محبـــت چشـــیده اســـت

مرګ حق دی، ټول به مرو، خو د ځینو انسانانو مرګ ځکه فـوق العـاده المیـه بلل کیدای شي چې په رحلت یې دنیا د معنوي افلاس په ټغر کیني، چې له همـدې ځایه بیا وایي: موت العالِم موت العالَم.

مرحوم قطب المشائخ خلیفه داد محمد (غفرله الصمد) واقعا د همداسې انسانانو له جملې څخه و، چې په تګ یې انساني جامعه خواره معلومیږي. نوموړی په دې زمانه کې چې د دین یوه بشپړه شعبه (د تصوف او تزکیې لاره) له خورا بحراني حالت سره مخامخ ده، د افراط او تفریط په غشو زخمي شوې او یوه لویه کتله مسلمانان ترې بشپړ انکار کوي، خو خلیفه داد محمد صاحب د هغو واقعي، باعلمه او معتدلو صوفیانو له جملې و، چې دا لاره یې له خپل ټول آب او تاب سره په خپله اصلي بڼه داسې پالله چې په لیدو، صحبت او تعلق یې هر چا د تسلیم او حق بللو سر خوځاوه.

## تصوف او د تزکیې لاره

د ځینو په وړاندې تر ټولو لوی سوال د تصوف تعریف، پیژندل او دیني توجیه ده چې آیا واقعا دغه لاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم وظیفه او میراث ده؟ یا کومه دیني ریښه لري او کنه؟

د دې پوښتنې د ځواب لپاره به په لنډو عرض کړو، چې تصوف د تزکیې دوهم نوم دی، تزکیه د انسان د باطن، زړه او روح تصفیې ته ویل کیږي، چې له باطني امراضو لکه کبر، حسد، ریا او نورو مضرو امراضو څخه تصفیه او تزکیه شي.

د ټولو پیغمبرانو او خصوصا زموږ او تاسو د پیغمبر صلی الله علیه وسلم وظیفه لکه څنګه چې د نازل شوي کتاب او حکمت تعلیم و همداسې یې د بندګانو تزکیه هم له اساسي دندو څخه وه چې الله تعالی ورته داسې اشاره کوي. (یعلمهم الکتاب والحکمة و یزکیهم) داسې پیغمبر چې خلکو ته کتاب او حکمت ورښیي او د هغوی تزکیه کوي.





رسول الله صلی الله علیه وسلم لکه څنګه چې صحابه کرامو ته قرآن کریم او دیني علم ورښود، د هغوی باطني تزکیه یې هم کوله، د ایمان راوړلو په مهال یې له ښځو او نارینه وو بیعت اخیست او په خپل صحبت سره یې د هغوی باطني اصلاح کوله. خو فرق دا و چې هغه پیغمبر او د ډیرو لوړو کمالاتو څښتن و، چې یوازې صحبت یې د ټولو باطني امراضو د تصفیې او د زړه او روح د تزکیې سبب ګرځیدو، له همدې امله خو صحابه کرام ټول د رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوازې مجلس او ملګرتیا د ولایت عالي مدارجو ته رسیدل او د رجالو د علم څښتنان په دې اتفاق لري چې صحابه ټول (عادلان) وو.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وفات سره چې د معصومو انسانانو (پیغمبرانو) دوره پای ته رسیږي او حتی دمحفوظو خلکو (صحابه کرامو) دور هم تیریږي. نو په انسانانو کې داسې د کمال څښتنان نه پیدا کیږي چې په یوازې صحبت سره یې نور انسانان له باطني امراضو تصفیه شي. دغه مهال لکه څنګه چې د قرآن د تعلیم لپاره د تدریس او د احادیثو د حفظ او اسناد بیلابیلې طریقې رامنځته کیږي، د تزکیې لپاره هم د وخت لویان د خپلو تجربو په بنیاد بیلابیلې طریقې رامنځته کوي. ځیني د سبا او ماښام د اذکارو په توسط د بندګانو باطني تصفیه کوي، څوک د ذکر د حلقو، اجتماعي ذکر، جهریه ذکر، معینه اندازه درود شریف یا کلمې طیبې په ویلو او یا هم نورو اذکارو په توسط د انسانانو باطني تزکیه او له امراضو خلاصون اغیزناک بولي او د نقشبندیه طریقې د مشائخو غونډې ځیني د تزکیې امامان خفیه او د پټې خولې ذکر په تزکیه کې تر ټولو مؤثر بولي. مطلب دا چې د تزکیې بیلابیلې طریقې چې مشهورې یې څلور دي، په اصل کې په تجربو بناء هغه نسخې دي چې بیلابیلو امامانو د تزکیې لپاره اغیزناکې بللې، لکه څنګه چې د ظاهري امراضو د شفاء لپاره حکیمانو جلا جلا نسخې رامنځته کړې، د باطني تزکیې لپاره دغسې بیلابیلې طریقې رامنځته شوې چې غایه او

مقصد د ټولو یو دی چې هغه پیغمبري وظیفه اداء کول اوله باطني مهلکو امراضو څخه دانسانانو تزکیه ده.

که په تصوف او تزکیه څوک دا سوال کوي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کې دغه طریقې ولې نه وې؟ د هغوی د ځواب لپاره کافي ده چې ووایو، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کې د تزکیې مروجه طریقې نه وې مګر تزکیه وه، لکه څنګه چې هغه وخت د تعلیم مروجه طریقې لکه، صنف واره مدارس، دورې، کورسونه او عالي تحصیلات نه ول مګر علم و او تعلیم یې هم روان و.

## قطب المشائخ رحمه الله

جناب خلیفه داد محمد صاحب د تصوف د نقشبندیه مجددیه طریقې مرشد و، دغې طریقې ته ځکه مجددیه وایي چې یو له لویو امامانو څخه یې د دوهمې زریزې نوښتګر امام رباني شیخ أحمد سرهندي رحمه الله دی. نوموړي ته ځکه مجدد الف ثاني صاحب وایي چې د دوهمې هجري زریزې په لومړیو کې، هغه مهال چې په هند کې د اکبر باچا د ګمراهیو اوپه نړیواله کچه د ځینو تش په نامه صوفیانو د اغراق او تفریط له امله اسلامي جامعه د سختې ګمراهۍ تل ته لویدلې وه، نوموړي د حقیقي تصوف په رابرسیره کولو او د تزکیې د مفاهیمو په تجدید سره یې د دین یوه بشپړه برخه د سقوط او انحراف له خطره وژغورله، نوموړي د وحدة الوجود د اغراق آمیزې مفکورې په ځای د وحدة الشهود مفکوره مطرح کړه او د وجودیه وو د (همه اوست) د مقولې په عوض یې د (همه از اوست) مقوله پرځای وبلله.

په افغانستان کې د نقشبندیه مجددیه طریقې مرشدین د کابل په شوربازار کې میشت حضرات وو چې وروسته یې د کابل لویدیځ ته قلعه جواد کې سکونت





اختیار کړ، د دوی د طریقې د ډېر محبوبیت او مستقیم پاته کیدلو یو لوی علت دا و چې د ارشاد کار یې د صالحو علماء کرامو په لاس کې و. هر جاهل امي، ټګ او بې عمله یې د خلافت دعوه نه شوی کولای، ځکه د دوی مخته د مجدد صاحب هغه قول پروت و چې: که د ولایت په کوم دعوه دار کې د یوه ویښته په اندازه د نبوي سنتو خلاف عمل موجود وي هم ولایت یې د اعتبار وړ نه دي.

د قلعه جواد د حضراتو جناب ضیاء المشائخ، رئیس صاحب او نورو رحمهم الله له جمعي شهادت وروسته په وروستیو کلونو کې د دې طریقې تر ټولو مشر- خلیفه جناب داد محمد خلیفه صاحب بلل کیده چې خپلو متعلقینو ورته د قطب المشائخ لقب ورکړی و.

جناب قطب المشائخ صاحب مې لومړی ځل په ۱۹۹۹ میلادي کال کې ولید، هغه وخت چې د غزني په نورالمدارس فاروقیه مدرسه کې مې د حفظ دور کاوه. خلیفه صاحب خورا خوشرویه، ملیح او ارام سړی و، چې همیشه به یې په منوره څیره موسکا غوړیدلې وه، د نورالمدارس مدرسې په انګړ کې یوه د څو اطاقونو ځانګړې ودانۍ ده چې (سلامخانه) یې بولي، دا د قلعه جواد د حضراتوکرامو خصوصي میشت ځای و، خلیفه صاحب د همدې ودانۍ په یوه کوچني یو نفره اطاق کې اوسېده، مازدیګر مهال به یې په مسجد کې ختم خواجګان کاوه، د ذکر دا مجلس به بشپړ آرام او روح بښونکی و، هیڅکله مې بې ځایه چیغه یا شور او شغف په کې نه دی لیدلی. له ماښام مخکې د نورالمدارس د څنګلورې دښتې هغه روح بښونکي فضاء چې اوس هم رایادوم نو زړه مې له شوقه په ټوپونو شي، د مدرسې لویدیځ او شمال پلو دښته کې به هلته طالبانو والیبال کاوه، بل ځای به د فوټ بال لوبه روانه وه، آخو دیخوا به یو یو طالب کتاب په لاس د قوانین زرادي، صرف میر یا کوم بل کتاب په حفظ بوخت و، چیرته به د کوم قاري د تلاوت او

ګردان غر هم تر غوږ کیده، هلته به د ناني کلي لخوا ځینې طالبان د توتو لـه میلـې په راستنېدو وو، لمر به ډوبیدونکی و، جنـاب خلیفـه صـاحب بـه د دښـتې پـه بلـه پیڅه کې چیرته دکاریز د سپرغې په غونډۍ خاورو ناست او په مینه ناک نظـر بـه یې ترهغو د طالباني ژوند د دې هیجاني نرۍ ننداره کوله چې د (نورالمسـاجد) لـه میناره به د ماښام د آذان ملکوتې انګازې راپورته شوې.

## وروستۍ دیدن

تیر کال همدا شپې ورځې وې، د شعبان میاشتې وروستۍ لسیزه وه، لـه څـو ملګرو سره مو غزني ښار ته د جناب خلیفه صـاحب د لیـدو پـه نیـت سـفر وکـړ، د غزني ښار په (پلان سه) سیمه کې مو په تکلیف د نوموړي د زوی کور پیـدا کـړ، دا مهال مجاهدینو په واغز کې د ولسوالۍ په مرکز برید کړی و، امریکایانو او عسکرو هم متقابل عملیات پیل کړي وو چې د جنګ له امله ځینو کورنیو د امن په خاطر د خلیفه صاحب کور ته پناه راوړې وه. خلیفه صاحب د ضعف پـه داسـې حـال کـې و چې د میلمه تر خونې نه شوای راتلای. خو زوی دي یي خیر یوسي زموږ د دیدن پـه وړاندې مانع نه شو، موږ یې کور ته د خلیفه صاحب د اوسیدو اطـاق تـه وروسـتلو، وروسته له کلونو مو یو ځل بیا په هغه خوشرویـه او روښـانه څیـره سـترګې خـوږې شوې. خلیفه صاحب دومره ضعیف و چې له ځایه یي حرکت نـه شـوای کـولای، پـه وجود کې یي یوازې هډونه، رګونه اوورباندې ویړ پوسـت پاتـه و. یـوه شـیبه ورسره کیناستو، د سترګو په اشاره او ضعیف غږ یـې لـه هـر ملګـري سره دوبـاره پوښـتنه وکړه. خلیفه صاحب مبارک ناروغۍ ډیر کمـزوری کـړی و، خـو پـه څـیره کـې یـې هماغه ملیحه موسکا لا هم پر ځای وه، په التفات کې یې لا هم د مینـې او عطوفـت ولولې په څپو وې، خلیفه صاحب د مجلس او خبرو نه و او موږ یې هم یـوازې مینـه





ناک نظر او یوه شیبه ناسته د ځان لپاره کـافي بللـه. پـه وروسـتي ځـل مـو لاسـونه ورښکل کړل او بیا مو ورسره د تل لپاره مخه ښه وکړه.

تیره ورځ خبر شوم چې هغه د الله تعالی رښتینی دوست نور په دې خاورینـه نړۍ کې نشته. رښتیا به هم نه وي، ځکه ددغسې عاشقانو لپاره یوازې الهي دیـدار اوجوار ښاییږي.

چنین قفس نه سزای چو من خوش الحانیست

روم بگلشن رضوان که مرغ آن چمنم

(رحمه الله تعالی)

# مرحوم سید محمد حقاني ولې ټولو ته محبوب و؟

د فرهنګي کمیسیون مرستیال مرحوم مولوي سید محمد حقاني مې له تیرو اوو کلونو راهیسې پېژاند، له ډېره وخته سره ملګري وو، د ۲۰۰۹م کال د اوړي له هغې ورځې چې لومړی ځل مو سره ولیدل، د یوه آسمانځک غره پر لمن، د پراخ راغه په غیږ کې د شګو په یوه جومات کې د مازدیګر له جماعت وروسته مو لومړنی مجلس وکړ او بیا تر پرون یکشنبې چې په اوښلنو سترګو مو د یوه تل یاد ملګري په حیث ورسره مخه ښه وکړه او د عقبی په خوا مو رخصت کړ. رحمه الله تعالی

د مرحوم مولوي سید محمد حقاني د وفات په اړه د ده د ملګرو او عامو هغو خلکو چې نوموړی یې پېژاند غبرګون او د محبت اظهار تر معمول حد زیات و، په فیسبوک، ویب پاڼو او عامو مجالسو کې ډېرو خلکو ورباندې افسوس وکړ او حتی هغو خلکو هم ورته خورا ډېره مینه ورکړه چې نوموړی په ژوند کې یوازې یو ځل لیدلی او یا یوه مجلس کې یې ورسره شرکت کړی و.

د نوموړي لپاره د مسلمانانو تر منځ دا محبوبیت ډېر ستر افتخار دی، ځکه د الله تعالی په نزد د یو چا د محبوبیت او مبغوضیت تر ټولو ستره علامه داده چې نوموړی د ځمکې د خلکو په زړونو کې څنګه ځای لري؟ که څوک د الله تعالی د مخلوق په زړونو کې محبوب وي نو بې له شکه د الله تعالی په نزد هم محبوب دی ځکه د بخاري او مسلم حدیث دی چې:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهم عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَقَالَ إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ قَالَ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ





فَيَقُولُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ قَالَ ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ وَإِذَا أَبْغَضَ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَيَقُولُ إِنِّي أُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضْهُ قَالَ فَيُبْغِضُهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي أَهْلِ السَّمَاءِ إِنَّ اللَّهَ يُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضُوهُ قَالَ فَيُبْغِضُونَهُ ثُمَّ تُوضَعُ لَهُ الْبَغْضَاءُ فِي الْأَرْضِ. متفق علیه بزیادة فی روایة مسلم

ابي هريرة رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې الله تعالی له یو چا سره محبت لري نو جبریل راوغواړي او ورته ووایي چې زه له فلان شخص سره محبت لرم ته هم ورسره محبت کوه، نو جبریل ورسره محبت کوي او بیا جبریل اهل السماء (ملائکو) ته ووایي چې الله تعالی له فلان شخص سره محبت لري تاسو هم ورسره محبت کوئ، بیا ملائکه هم له هغه شخص سره محبت لري تر دې چې وروسته دغه محبت ځمکې ته رانتقال شي او الله تعالی همدغه کس په ځمکه کې هم محبوب وګرځوي.

بالمقابل بغض یا بدایسیدل هم کټ مټ همداسې دي، د الله تعالی په نزد چې څوک مبغوض وي، نو د هغه کس په اړه حضرت جبریل ته ووایي چې فلانی زما بدایسي ته هم ورسره بغض کوه، بیا جبریل هغه شخص بد ایسوي تر دې چې جبریل نورو ملایکو ته ووایي چې فلان شخص د الله تعالی مبغوض دی بیا یې ملائکه هم بد ایسوي تر دې چې د نوموړي شخص په اړ بغض د ځمکې مخلوق ته رانقل شي او د ځمکې پر مخ هم هغه مبغوض شي او د هر چا نفرت ترې کیږي.

د دې متفق علیه حدیث له مخې په اسلامي ټولنه کې د یو چا لپاره عام محبوبیت د سعادت خورا ستره نښه ده چې د ډېر بختور شخص به په نصیب کیږي. دلته زه د حاضر او ناظر الله تعالی په وړاندې د مرحوم حقاني صاحب تزکیه نه کوم او نه یې هم معصوم بولم، مګر د خپلو ملګرو او عامو خلکو تر منځ د بې کچې محبوبیت درلودو له امله د لوړ حدیث شریف مضمون ته په پام سره د

نوموړي د عامه محبوبيت ځيني علتونه درسره شريکوم، که الله تعالی وکړي دغه صفات د يو مکلف انسان په حيث شخصا په ما او ټولو انسانانوکې پيدا کړي ترڅو د الله تعالی د محبت او مقبوليت وړ وګرځو او د الله تعالی د مخلوق د ازار، اذيت، تحقير او بالاخره عامه منفوريت په ځای له هغوی سره ښه تعامل ولرو او د يوه سالم، مثبت او ګټور شخص په حيث د ټولنې په سعادت، جوړښت او رفاه کې ونډه واخلو.

د حقاني صاحب يو ستر خوی شرافت او لوړه اخلاقي رويه وه، نوموړی د اداري سلسله مراتب له اړخه زموږ مشر و، مګر د څو کلنې ملګرتيا په ترڅ کې مې له نوموړي هيڅکله داسې قول، فعل يا چلند حس نه کړ چې ځان د نوموړي په نسبت حقير يا تر امر لاندې حس کړم. نوموړي په اداري ماحول کې له کارکوونکو سره په افقي تعامل باور درلود، تجربو ثابته کړې چې په اداري ماحول کې د عمودي تعامل په نسبت افقي چلند په مراتبو ښه اثر لري، په افقي چلند کې آمر خپلو تر لاس لاندې کسانو ته د مأمورينو نه بلکې د ملګرو په نظر ګوري. فرمان يې د أمر نه بلکې د التماس په لهجه وي او د ملګرتيا ماحول يې جوړ کړی وي، په اصل کې دا چلند د رسول الله صلی الله عليه وسلم طريقه ده، چې خپل تر لاس لاندې کسان يې (اصحاب) يعني ملګري بلل، له هغوی سره تعامل يې بشپړ طبعي او د لوړو ديني انساني اخلاقو او صميميت څخه مالامال و.

د مرحوم حقاني صاحب بل صفت چې له امله يې نوموړی په هر چا خوږ لګېده، خوشرويي، هميشنۍ موسکا او مينه ناک چلند و، هيڅکله يې غوسه او سخت ګيري نه کوله، د ترخو تجربو د زغم، له پامه غورځولو او هيرولو چل يې زده و.

نوموړي د شرافت او اخلاقو کرښو ته هميشنی تعهد درلود، هيڅکله په ټيټو او کم ارزښته موضوعاتو نه غږېده، هيڅکله مې د ضدبازۍ، سيالۍ، انتقام،





قومپالنې، منطقه پرستۍ، تاوېلي ماوېلي او دغسې نور مبتذل او بې ارزښته بحثونه حتی په ډېرو خصوصي مجالسو کې هم ترې وانه وريدل، د ګيلې، شکايت او غيبت عادت يې نه درلود او تر ډېره حده يې په اشخاصو بحث نه کاوه بلکې په موضوعاتو به غږېده.

په شخصي لحاظ پاک او حياناک و، له هميشني ظرافت سره سره مې نه يادېږي چې د بې باکۍ تر حده دې ټوکې کړې وي، له خلکو سره يې چلند د هغوی د عمر، منصب، استعداد او ټولنيز مقام په اساس نه بلکې د خپل شرافت او مروت په مبنی و، هر مسلمان ته په احترام قائل و، د مجلس په مهال يو ښه اوريدونکی و چې د مخاطب خبره به يې په پوره شوق او داد سره اورېده.

د جناب حقاني صاحب ښه چلند د ده ټولو متعلقينو ته معلوم و خو دلته مې دا موضوع ځکه راپورته کړه ترڅو يې د يوه حقيقت رابرسيره کولو لپاره بهانه کړم. نن سبا په انسانانو کې د استعدادونو کمی نشته، د ښه صورت، ځيرکۍ او بيلابيلو فني، علمي او تخنيکي استعدادونو کسان خورا ډېر دي، حتی ويل کيږي چې اوسنی انسان دومره هوښيار شوی چې د شپږم ټولګي شاګرد د دوه زريزې پخواني فيلسوف افلاطون په نسبت ډېر معلومات لري، خو نن سبا چې انسانان د کوم صفت له فقر سره مخامخ دي هغه انسانيت يا سړيتوب دی.

له ديني او منطقي اړخه د انسان د کمال صفت مروت دی، مروت له مرء يعني سړي لغت څخه اخيستل شوی چې مطلب يې سړيتوب يا جوانمردي ده. مروت چې له ديني اړخه د احاديثو د روايت او شهادت لپاره مهم شرط بلل شوی ټولو مکرمو اخلاقو ته شامل دی، مروت په انسان کې هغه ملکه يا قريحه ده چې انسان په هر حال کې د حسنه اخلاقو او ښه تعامل په کولو په طبعي شکل مجبوروي او له بدو، پستو او ناشايسته کړنو څخه يې راګرځوي.

نن سبا په دنيا کې تر ټولو ارزښتمن شی پیسه یا مال بلل کیږي اما د ځوانمردانو په قاموس کې د پیسې او دنیوي ګټې په نسبت سپېڅلتوب او اخلاقي حیثیت خورا ډېر ارزښت لري. د فارسي مشهور شاعر فردوسي همدې حقیقت ته داسې اشاره کړې:

ز بهر درم تنــد و بدخو مباش

تو باید که باشی درم گو مباش

یعني د پیسې یا درهم لپاره تند او بداخلاقه مه جوړېږه، ځکه (ته) باید وې، درهم که نه وي هم پروا يي نشته. مطلب دا چې اخلاقي حیثیت يو داسې ارزښت دی چې د هیڅ شي په مقابل کې هم باید له لاسه ورنکړل شي.

په پای کې به ووایم چې جناب حقاني صاحب خو نه دومره سرمایه دار و چې په خلکو يي خیراتونه او صدقې کړې وي او بیا د هغه له امله په خلکوکې محبوب شوی وي او نه يي هم منصب دومره اجتماعي او ستر و، خو نوموړی چې له هر چا سره مخ شوی یوازې ورسره په مسنونه طریقه، په پراخ تندي، په خوشرویه څېره اوهغوی ته په اهمیت ورکولو ورسره مخامخ شوی، چې له همدې امله ورته الله تعالی د مسلمانانو په زړونو کې داسې ځای ورکړ چې تصور يي نه کېدو.

الله تعالی دې په جناب حقاني رحم وکړي او برکات ته يي په ورونو او اولادونو کیږدي. آمین یا رب العلمین





## زه دوهم تن وم چې راووتلم...

د ۲۰۱۱ ميلادي کال د اپریل په ۲۵ مه طالبانو د کندهار مرکزي زندان (د سرپوزې محبس) مات کړ او ۵۴۱ تنه مجاهدين يې آزاد کړل. د دې زندان د ماتیدو کیسه ځکه ډېره جالبه وه چې مجاهدينو د پنځه میاشتني کار په توسط تر ځمکه لاندې سلګونه متره تونل وهلی او د سیاسي بندیانو بلاک ته يې تر ځمکه لاندې ځان رسولی وو، چې وروسته له همدې تونل څخه مجاهدين په شپه شپه کې را اویستل شول او د خلاصون لاره ورته برابره شوه. د پیښې په سبا مې له زندان څخه راوتلي څو مجاهدين د کندهار د مجاهدينو په یوه مرکز کې ولیدل چې د محمد ادریس په نوم له یوه مجاهد سره مې مرکه وکړه. دلته د نوموړي خبرې او د سترګو ليدلی حال درسره شریکوم چې د دې تاریخي پیښې په اړه جالب معلومات لري.

۲۳ کلن محمد ادریس چې د کندهار ښار اوسیدونکی دی او له څو کلونو راهیسې يې د اسلامي امارت تر سرپرستۍ لاندې د کندهار ښار په ښاري چریکي عملیاتو کې دنده ترسره کړې ده، له اوس څخه اووه میاشتې وړاندې د دښمن له خواپه کندهارښار کې ونیول شو او د کندهار زندان ته ولیږل شو. نوموړی وايي چې تراوسه يې محاکمه نه وه شوې او د نیولو له مهاله بیا تراوسه د کندهار د لوی محبس په نهم اطاق کې له ۱۵ تنو نورو مجاهدينو سره اوسیده، نوموړی د کندهارله زندانه د راخلاصو شویو سلګونو بندیانو په جمله کې دوهم کس وه، چې

له ایستل شوي تونل څخه ووت او هماغه معلوم کورته يې ځـان ورسـاوه، چـې دغـه تونل ترې وهل شوی و. نوموړي خپله نوره کیسه داسې راته تېره کړه.

د کندهار زندان جوړښت داسې دی، چې سیاسي بلاک په منځ کې یوجلا آزاد ځای یا صحن لري د ټولو کوټو دروازې همدې ځای ته راپرې دي، نو دلتـه يـوازې د دې بلاک عمومي دروازه تړلې وي او د بلاک دننه د اطاقو دروازې همیشـه خلاصـې وي، چې له همدې امله بندیان د یوه او بل اطاق ته آزادانـه ورتـلای شي، دغـه رقـم لمانځه ته هم ټول رایوځای کیږي.

د دوشنبې په شپه د زندان په همدې اطاق کې (چـې وروسـته د تونـل سـوری ورته راووت) زموږ بندي مجاهدینو ملګرو نورو ملګرو ته میلمسـتیا کـړې وه او لـه ټولو اطاقو يې یویو یا دوه کسان میلمانه کړي وو، دې میلمستیا ته، د همدې بـلاک د مسجد امام (چې یو بندي مولوي صاحب و) هم رابلل شـوی و، زمـوږ د اطـاق پـه نمایندګي زه ورغلی وم، نـو مـوږ ډوډی تـه ورغلـو ډوډی وخـوړل شـوه او وروسـته مولوي صاحب خبرې شروع کړې، له لږ نصیحت وروسـته مولـوي صـاحب حـاضر ملګري د خلاصیدو له پلان څخه خبر کړل، چې تردې مهاله ملګري ترې خبر نه ول، هغه په خبرو کې په همدې کوټه کې ناسـتو ملګروتـه وويـل چـې نـن شـپه زمـوږ د خلاصون عملیات ترسره کیږي، نوښه دا ده چې ورته اماده یو. ده وويل: هـر څـوک چې ووتل اصول دا دي، چې سبا تر غرمې پورې به لومړی کوشش کوي چـې تیلفـون خلاص نه کړي، بیا که په تیلفون خبره کـوي هـم دا بـه نـه وایـي چـې مـوږ داسـې راخلاص شوو. له دې خبرو وروسته هغه ناستو ملګرو تـه وويـل چـې ټـول پـه پـوره اخلاص د الله تعالی ذکر شروع کړي، تر څو الله تعالی دا پروګرام کامیـاب کـړي، بیا موږ ټولو اذکار پیل کړل، تقریبا نیم ساعت بـه ټـول ملګـري پـه همـدې اذکـارو





مشغول وو، وروسته هغو ملګرو چې له دې پلان څخه خبر وو، د کوټې په یوه برخـه کې توشکې او فرش ایسته کړل او غولی يې لغړ کړ، لږ وروسته له لاندې خوا څخـه همدا ځای راوټکول شو، او لږ شېبه بعد موږ ورته کتل چې لاندې ملګرو لـه همـدې ځایه (جیک) لاندې کړ، او په زور ورکولو سره يې د کوټې سیمټي فرش راپورته کـړ، څرنګه چې دا ځای ډېر ژور و، نو د جیک د زور د رسـیدلو لپـاره يـې څـو محکمـې پایې ورته جوړې کړې وې، همدا پایې به يې د جیک په سر کیښودلې، او بیا يې زور ورکاوه، دوی دری واره يې بیا هم جیک ورکړ، ترڅو يې پـه سـیمټي غـولي کـې ښـه آزاده خوله پرې کړه.

له دې وروسته لاندې ملګرو خپلو پاسنیو ارتباطي ملګرو ته، څومیله توپانچې، برچې او خنجران، او یو بکس راپورته کړ، په بکـس کـې مـا یـوه د ځمکنـي ټیلفـون دستګاه (غوږی) ولیدل او ځیني نور شیان هم وو چې ماسهي نه کړل. په دې مهـال چې ما لاندې تونل ته وکتل دوه مجاهدین مې ولیدل، چې یوه يې دا شیان راکړل او وروسته دواړو واپس له تونل څخه بلې خواته ووتل، دلته نو د بندیانو د ایستلو کـار په زندان کې همغو څوتنو معلومو کسانو ته وسپارل شو، دوی د تیلفون یومزی چې د تونل له بل سر څخه يې راتیر کړی وه، د تیلفون له غوږي سره وصل کړ او پـه دې طریقه د تونل د دواړو خواوو ترمنځ ارتباط قائم شو.

له دې وروسته ارتبـاطي کسـانو پـه خپلـو منځـو کـې توپـانچې او برچـې سره وویشلې او څوتنه خپل نور اعتمادي ملګري يې هم ورسره ملګري کړل، څرنګـه چـې له موږ سره په دې بلاک کې یوه دوه اطاقه جنـايي قیـدیان وه، دغـه رقـم پـه ځینـو کوټـو کـې حکومـت خپـل جاسوسـان هـم د بنـدیانو پـه نامـه راسره اچـولي وو، نومجاهدینو ویل که هغو څه جنجال جوړاوه یا يي غالمغال کاوه، نوپه دې وسلو او چړو به يې له منځه وړي. دغـه رقـم دوی ویـل چـې دا بیخـي یـو لـه انتظـاره لـرې

پروګرام ده، کیدای شي ځیني مجاهد ملګري به باور وربانـدي نـه کـوي او نـه بـه وځي، چې په دې صورت کې به په زور ایستل کیږي، دغه وخت نو همدې ارتبـاطي ملګرو موږ حاضرو کسانو ته تونل ته له ښکته کیدو مخکې وویل چې کلـه لـه تونـل څخه بل سرته وځئ هلته زموږ نور ملګري مجاهدین ولاړ دي، هغوی له تاسو اضـافه پیسې، تیلفونان او نورشیان اخلي، دغه راز تاسې خـبرو او تللـو تـه نـه پریـږدي نـو تاسې به له هغو ملګرو سره جنجال نه کوئ اوهرڅه چې درته وایي هغه به منئ، موږ ورته وویل سمه ده. نوپه دې وخت کې د ناستو کسانوله جملې لومړی یو بل ملګری تونل ته ورکوز شو او دوهم زه پسې ورښکته شوم، تونل آزاد وه، خو یـو مـخ هـم آزاد نه وه، یعني په ټیټه ملا او خاپوړو سړی ښـه هوسـا پـه کـې تلـلای شـوای، خوتونـل مجاهدینو ډېر عجیبه جوړ کړی وه، په لسو پنځلسو مترو کې یې یوه بتۍ لګولې وه چې له امله یې تونل بیخي رڼاوه، دغه رقم د هوا لپاره مجاهدینو د تونل له یـوه سره تر بله پورې تقریبا شپږ انچه غټ پایپ تیر کړی وه، د تونـل پـه بهـرني سرکـې یـې یوماشین چالو کړی و، چې هغه په دې پایپ کې هوا پمپوله، بیا دننه یې په مختلفو ځایونوکې په همدې غځیدلي پایپ کې سوري کړي و، چې له همدې امله تونل هیڅ نفس تنګي نه درلوده.

په تونل کې دوه لینه هم تیر شوي وه، چې یو خو د تیلفون و او بل نه پـوهیږم د برق و که د څه شي لین و، نو موږ په تونل کې تقریبا ۱۵ دقیقې مزل وکړ ترڅو بل سرته ورسیدو، له مانه یوکس مخکې و او تر شا مې نور هم ډېر کسان په تونـل کـې راروان ول. دلته چې د تونل خولې ته راورسیدو نو دلته هم تقریبا لس پنځلس تنـه مجاهدین له وسلو سره ولاړ وو، دوی له تونله راوتـونکي ټـول کسـان سـخت تـلاشي کول، له هر کس څخه یې ټیلفون او سیمکارت اخیست، دغه رقم که به لـه چـا سره پیسې وې، نوله درې زره روپۍ زیاتې پیسـې یـې هـم چاتـه نـه ورپریښـودلې، دوی همدلته یوڅادر نیولی وه او له دری زره اضافه روپۍ یـې لـه ټولـو کسـانو اخیسـتې





اوهغه څادره ته یې غورځولې، داد دې لپاره که به له کومو نورو بنـدیانو سره پیسـې نه وې، او یا به لـه درې زره نـه کمـې پیسـې ورسره ورسره وې، نـو دوی لـه همـدې څادره څخه دری زره روپۍ ورپوره کولې، چې دا د ټولـو ملګـرو د چلښـت او پیسـه دار کیدلو لپاره یو ډېره ښه لاره وه.

نو دلته چې راووتلو په دې کسانو کې څو نفره یې زما شـناخته مجاهـدین وو، هغو زه هم په خپل کار کې ورسره ملګری کړم، دلته پـه دې سرای کـې پنځـه شپږ لوی د سپارلۍ موټر ولاړ وو، نو موږ ته ملګرو هدایت وکړ چې کوم کسان لـه تونلـه راوځي، له تلاشي وروسته یې موټرو ته پورته کوئ او ورته وایئ چې خبرې او غـږ بـه نه کوي یوازې دي خفیه اذکاروایي، ځکه دلته د زندان یو برج دې سرای تـه بیخـې نږدې وه، او دوی ویل چې که شور وکړئ د عسکرو راپـام کیـږي، نوپـه دې طریقـه بندیان له تونل نه راوتل او موږ په موټرو کې کینول، کوم موټر به چې ډک شـو پـه هغه به مو ټاټ راکش کړ، وروسته چې ټول کسان راووتل مطلب راپوره شول، نوبیـا ملګرو وویل چې په موټرو کې ډېر ځای نشته ځیني ملګري چې پـه همـدې منطقـه کې ښه بلد دي ښه داده، چې د محله جات په خـوا پیـاده ولاړ شي، نـو د دې سرای مخ خوا خو د محبس په خوا خلاصه وه، نو د سرای شاخوا چې د محله جات پـه خـوا خلاصه علاقه ده، د سرای دغه دیوال مو سوری کـړ، وروسـته هغـه څوکسـه ملګـري چې غوښتل یې محله جات ته ولاړ شي، هغه له همـدې سـوري نـه ووتـل او پیـاده د محله جات په خوا لاړل، زه او څلور ملګري مې نـور چـې د ښـار و، مـوږ مشـوره سره وکړه چې دا موټر به خدایزده کومې خوا ته ځي، ښه دا ده چې موږ د ښار پـه خواپـه خپله ولاړ شو، په همدې وخت کې دغه له بندیانو ډک موټر هم له سرای نـه ووتـل، موږ پنځه ملګري لږ وروسته همدې عام سرک تـه راووتـو، د سرک پـه غـاړه مـو لـږ انتظار وکړ لږ وروسته یو ټکسي موټر راغی چې د ښار په خـوا روان و، مـوټر تـه مـو لاس ورکړ او ټول په کې سپاره شوو، دغه وخت د سهار تقریبا څلور بجې وې، د ښار

خواته چې راتلو په ډنډ چوک باندې پوليسو موټر ته بتـۍ را رڼـا کـړه، او اشـاره يـې وکړه چې ځئ، دغه رقم په مددچوک يې هم موټر ته بتۍ را رڼا کړه، مگر نور غـرض يې نه وکړ، نو بيا په دې طريقه ښار ته راغلو او الله تعالى مو نجات په نصيب کړ.

يوه خبره چې بايد ويې کړم دا ده چې د کندهار په محبس کې خو يو همـدا د سياسي بنديانو محبس دی، چې تقريبا ټول بنديان يې مجاهـدين وو، ورسره نـږدې د توقيف خانې په نامه يو بل جلا بلاک هم شته، په دې توقيف خانه کې هم زموږ د ملگرو (مجاهدو بنديانو) يوه کوټه وه، د دې تونل کينـدونکو مجاهـدينو د توقيـف خانې هغې کوټې ته هم له همدغه تونله يوجلا تونل ورايستلی و، چې پـه دې طريقـه لله الحمد له توقيف خانې څخه هم لـس پـنځلس تنـه مجاهـدين ملگـري راخـلاص شول.

په ښار کې چې د ورځې زه گرځيدلم او يا مې له سيمې نه معلومات کـاوه، تـر اتو بجو پورې عسکر نه وو خبر چې بنـديان تښـتيدلي دي، ځکـه تـر دې وختـه پـه منطقه کې هيڅ تلاشي نه وه، له اتو بجو وروسته د دوی منډې شروع شـوې، ځنگـه چـې عسکرو مـوږ پـه ورځ کـې دوه ځلې شـميرلو يـو ځـل سـهار اتـه بجـې او بيـا ماسپښين، نو زما په گومان په اته بجې چې دوی سياسي بلاک ته ورغلي دي، نو بـه يې ليدلي وي چې بنديان نشته او له هغه وروسته يې کوښښ شروع کړ.

ماچې هلته معلومات وکړ په سياسي بلاک کې يو تن مجاهد بندي هم نـه دی پاته شوی، يوازې هلته يوه کوټه وه، چې په هغه کې ليونيان بنديان وه، هغه ليونيان پاته شول، نور دسختو مريضانو او زخميانو په شمول ټو ل بنديان راويستل شول، تـر دې چې يو تن زخمي بندي چې په پښو کې يې سيخونه لرل، په تونل کې د مزلـه پـه وخت له ډېره درده بې هوښه شو، مگر ملگرو د بې هوښـي پـه حالـت کـې لـه تونـل څخه راويوست او په موټر کې يې انتقال کړ.





# د أحـــرار چيـــغې!

د هيواد په غرو کې وآزانگه...

٩/ ډسمبر/٢٠١٠م

نه پوهيږم له کومه يې پيل کړم، که رښتيا ووايم کله هم د يوې ليکنـې پـه اړه دومره تر احساساتو او هيجان لاندې نه يم واقع شوی، کمپيوټر ته ناست يـم، او تـر ځنگ مې سرپه سر درې کتابونه پراته دي، چې همدا تېر ماښام مې له يـوه ملگـري تر لاسه کړي خداې دې خير ورکړي:

دا لاسنيوی به يې تر ډېره يادومه!!

کتابونه د چا دي؟؟

که رښتيا ووايم، کتابونه د هغه چـــــــــا!! دې چې زه يې د هغه افسـانوي ليوني شهزاده په چم په ناليدلي مخ مين وم، داسې مين چـې يـوه ورځ يـې يـاد پـه مخه کړم، پـه داسـې حـال کـې چـې د وړې دورې طالـب وم، خپـل ټـول تکلـف او تصنعي تقوا مې هيره کړه او د هغه مشر ورور (شهيد محمدسعيد ملنگيار) تـه مـې دا ښېباکه مصرۍ په اړول شوې بڼه مسيج کړه چې:

مايې د ورور له ستـــرگو ځارکـــړې

ده به د ورور سترگو ته ډېر کتلي وينه

خو د تقدير پيرزو وه، چې د دې ناليدلي مخ ارمـان چـې مـا څـومره پـه آب او تاب د خپل بې تابه زړه په تاخ کې ساتلی و، همدومره پـه ناترسـۍ نـامراده شـو. آه خدايه! هغه څوک همداسې ناليدلی لاړ چې د خدای په دې دومـره وېـړه دنيـا کـې

مې د خپل (ایډیال) لقب پرې لوریدلی و، او له غرېو نیولي زړه ولاړیدونکي سوز یې په کوچنیوالي لا زما په زړه تغمې پرې ایښې وې.

دا تقریبا د ۱۳۷۵- ۷٦ لمریز کیسه ده، زه ماشوم وم او د پکتیا د ګردیز په یوه دارالحفاظ کې مې حفظ کاوه، د مدرسې اداري ته به کله د شریعت اوونیزه راتله، چې د استادانو له کتنې وروسته به ما راپټه کړه، او په غلا غلا به مې مطالعه کوله، هغه وخت چې د جنرال مالک په دسیسه کې په شمال کې زرګونه طالب العلمان په شهادت ورسیدل، د دې اونیزې مطالب خورا دردوونکي وه، په همدې ورځو کې په مجله کې یو مطلب راغلی و، چې عنوان یې و (سپینه پګړۍ چې ورانوې، دادومره خواره نه ده) لیکنې چې د شریعت دوهم مخ ټول نیولی و، د ملامحمدحسین مستسعد په قلم لیکل شوې وه، دې لیکنې د شریعت د نورو مطالبو په پرتله یو ځانګړی کیف درلود، داسې ښکاریده چې له یو ډېر دردمن زړه څخه راپورته شوې وي. دا لیکنه مې په بیا بیا ولوسته چې تنده مې نه پرې خړوبیده، له هماغه ورځې مې ملا محمدحسین مستسعد د یوه دردمن او سپیڅلي لیکوال په توګه په زړه کې ځای وموند، د وخت ارابه په چورلیدو وه، کله ناکله مې په مجلو او خپرونو کې د مستسعد صیب په لیکنو سترګې خوږېدې، تر دې چې یو ځل مې یې غږ هم هغه مهال د کابل له شریعت غږ رادیو څخه واورید، چې د امارت د وروستي جشن په مهال یې د عالیقدر امیر المؤمنین پیغام ولوست. له امریکایي یرغله وروسته قبایلي سیمې ته د دینې زدکړو په موخه راغلم چې دلته مې له یوه ملګري سره د (عزم) نامه یوه مجله ولیده چې له همکارانو یې یو هم ملامحمد حسین مستسعد و، د مجلې مطالب بیا هم زما هماغه احساس راتاند کړ، او پیښور ته په هر ځل تګ سره به مې یو ځل د قصه خوانۍ په کتابخانو کې د دې مجلې پوښتنه کوله. وروسته مستسعد صاحب د توکل په نوم مجله را وایسته چې د هماغه وخت له حالاتو سره سم خورا دلچسپ او معیاري مطالب یې درلودل. د دې





مجلو لیکنې په مستعارو نومونو خپریدلې خو ما په ډېره اسانۍ په کې د مستسعد صیب لیکنې را ایستلی شوای، چې یو ځانګړی سوز او ګداز یې درلود، له دې مهاله څه موده وروسته په داسې حال چې د نوموړي د شخصیت او فن په اړه زما علاقه او مینه لاپه خپل حال ترې پاته وه، یوه ورځ مې چې د هیواد په یوه غرنۍ سیمه کې خپله جیبي رادیو روښانه کړه، د آزادۍ د بدمرغې رادیو نه مې دا خبر واورید چې د طالبانو د وخت د علومو د اکاډمۍ سرپرست ملامحمد حسین مستسعد د زابل په شملزو کې په شهادت رسیدلی!!

دې دردناک خبر ته هغه مهال زما غبرګون خورا بیړنی او کوتا و، یو څو ساړه آهونه، څه شیبه د پښتیو د قفس دننه نااراموونکی درد او یو لنډکی نظم چې اوس رانه نادرکه شوی دی خو د سر کړۍ مې یي یاد دي.

اې د حسین غوندې په سره څادره کې
تـــر خپلـــه خدایـــه رســـیدلیه یـــاره!
ناز به مې اخلې په سلام دې لمانځم
سرکـــــړه راپورتـــــه خوبولیـــــه یـــــاره!
او....

خو وروسته پوه شوم، چې هر دروند غم په لومړیو کې سپک ښکاري او هغه وخت سړی ځوروي چې لږ په کې فکر وهلو او تحلیلولو ته یې خلاص شي، زه په یقین دا ویلای شم چې د نالیدلي شهید مستسعد غم زه د خپلو ټولو هغو ملګرو چې د لوبو، سیپارو، کتابونو، مدرسې او بیا جهاد ملګري مو پاته شوي وه د هجران په پرتله ډېر کړولی او ځورولی یم.

ما شهیدمستسعد نه و لیدلی، خو د نوموړي له اشعارو او لیکنو څخه مې د نوموړي د شخصیت سپیڅلتیا، عقیدوي متانت او باطني درد او کرب په بشپړه

توگه درک کړي وو، په ځانگړي ډول په توکل او عزم مجلو کې د نومـوړي سیاسي لیکنو د هغه مهال په ابتدایي امتحاني شرایطو کې پرهـرژلي زړونـه پـه وړیـا توگـه پټې کولای شوای. د نوموړي د هغه مهال انتقـادي نـثر چـې اوس هـم زه مطالعـه کوم نو د رومانتیک داستان غوندې مې ورسره لاهو کړي. هغه مهال چـې د صلیبي قیامت په رانازلیدو سره هر څوک د ځان غم اخیستي و او د هر چا یـوازې (نفسي-نفسي) ته خوله جوړیدله، شهید مستسعد په پوره عزم او متانت سر په تلي کیښود او د دښمن په وړاندې یې د قلمي مبارزې بنسټ وکینده. نوموړي په خپلـو لیکنـو کې د داسې شرایطو په اړه د قرآن او نبوي احادیثو روح بښونکي مضامین رابرسیره کړل او د خپل نثر او شعر په اورنۍ ژبه یې د نهیلو افغانانو پـه سـړو هډونـه کـې د ایمان جذبه پو کړله. هغه مهال چې د صلیبي دجال په مرداریو (ډالرو) چـور گـډ و او زموږ د پخواني مقاومـت د قلموالـو پـه شـمول ډیـری د درنـو نومونـو پوهـانو او لیکوالو پرې ټونگې وهلې، شهید مستسعد یې پـه دفـاع او ټکولـو کـې خپـل د قلـم نشتر خورا په میړانه وچلاوه، زما په یاد دي چې د عزم او توکل په هره گڼـه کـې بـه یې یو د صلیب په آخور جایبند اجرتي لیکوال د سپو ترکلي تېر کـړی او پـه سـپینه ورځ بـه یـې سـتوري پـرې گـڼلي وه. هغـه وخـت ډېـرو ژبـورو ډالرخـورو د شهیدمستسعد درانه قلمي وارونه وزغمل چې د ځواب لپاره یـې د درسـتو پـه ژبـو لاړې وچې وې.

شهید مستسعد چې هغه مهال ډېرې لیکنې د احرار شملزي په نامـه کـولې د نثر غوندې یې شعر هم خورا اورنۍ او غرېو نیـولی وه، هغـه وخـت د یـوې ښـځینه شاعرې (مریم ناصري) په ځواب کې ډېرو شـاعرانو خپلـه فنکـاري وآزمېیلـه، خـو د نوموړې د پیغور آمیز شعر ځواب مستسعدصیب په دې غزل سره د بل هـر چـا پـه نسبت په ښه توگه وکړ چې:





دعـا د پلـو سـتامې د پگـړۍ ولونـه خونـدي سـاتي
مـه ژړېـره خـورې! لاهـم دا خـاوره زلمـي سـاتي

ودریدمـه اور تـه سـپیلني غونـدې قربـان شـومه
ډار د غلـیم زړه کـې لاهـم زمـا د تـن لـوگي سـاتي

شرنگ د زولنـو مـې شته بنگـړو تـه لا وخـت ډېـر پـاتې
هلتـه پـه کیوبـا کـې لا هـم بـرم طـالبي سـاتي

دا د احـرار هـوډ دی چـې حریـت بـه پـه خپـل سر گټـي
دلتـه ټـول زلمـي د ځـان پـه وینـو خپلـواکي سـاتي

رښتیاهم دا د احرار هوډ و، نومـوړي زمـوږ د زیـاتره شـاعرانو غونـدې یـوازې هوایي لاپه نه وه توغولې بلکې لکه څرنگه یې چې ویلي وهمداسې یې د حریـت پـه ډغره کې خپله ککرۍ قربان کړه!!

این سعادت به زور بازو نیست
تا نبخشد خـدای بخشـنده

د ښاغلي مستسعد یوه بل ځانگړتیا چې تراوسه ما حس کړې د نومـوړي عامـه محبوبیت او قبولیت و. دا زه د نوموړي یوه ځانگړتیا بولم چې د هیواد په مختلفـو سیمو کې مې د مختلفو قشرونو لـه خلکـو چـې دی یـې پیژانـد د نومـوړي د تقـوا، للهیت، اخلاص، ایماني جرأت، او علمي کمال صفت اوریدلی، د همدې معلوماتو له مخې ویل کیږي چې نوموړی د یوه ژور علمي او فکـري اسـتعداد لـه درلودلـو سره

سره له خدایه یو تروروستی، کچې ویریدونکی او زاهد انسان هم و، دغه راز د خاموشي او گوشه نشیني له وصف سره یې د حق گویي اورنی او سرشار استعداد هم درلود، له توپاني قلم سره یې د ننگ په میدان کې د ودریدو او له مرگي سره د سترگو جنگولو هنر هم له ځانه کم نه و، که له یوې خوا یې د خدای په دښمنانو او اجرتي قلموالو باندې زړه نه سړیده له بلې خوا یې زړه داسې نری و چې په کوچنۍ خبره هم ورته غرېو دریده او اوښکې یې څڅولې.

دابه ښایي زما په شمول د نوموړي د مینه والو بخت وي، چې د نوموړي اشعار او لیکنې له چاپېدو سره همیشنۍ کیږي او له مونږ سره د نوموړي د تلپاتې یادگارونو په توگه پاته کیږي، همداوس د نوموړي شهید د درنو ورونو له خوا د ښاغلي ملامحمد حسین مستسعد درې کتابونه:

۱: (دسنگرطالبه مبارکۍ ته به درځم) په ۱۸۴ مخونو کې د مقالوټولگه

۲: (شپیلۍ مې مه ماتوئ) په ۱٦۸ مخونو کې د شعرونو ټولگه

۳: (د تودو وینو حمام افغانستان شو) د اروابناد علامه رشاد شعري اثر د مستسعد صیب له زیاتونې سره

تازه د چاپ په گاڼه پسولل شوي او د مینه والو ترلاسونو رسیدونکي دي. د مستسعد صیب دا درې آثار چې تراوسه مې یوازې سرسري کتلي د نوموړي د ټولو لیکنو غوندې له هماغه ځانگړی کیف او افادیت څخه برخمن دي، د نوموړي دا لیکنې زیاتره هغه وخت لیکل شوې چې په هیواد مو صلیبي یرغل تازه دمی و نو ځکه په خورا اغیزمن او دردوونکي انداز کښل شوې دي. دا کتابونه چې تر لوستونکو رسیدونکي دي په اړه یې نورڅه ویل نه غواړم، خو په روان جهادي مطبوعاتي بهیر یې یوه ستره زیاتونه بولم، د ښاغلي مستسعد وروڼوته د دې ستر





کار مبارکي وایم او له خدای تعالی نه ورته مزید توفیق غواړم چې د نوموړي شهید د یتیمانو د ښې پالنې تر څنگ د نوموړي آثارهم وپالي او وخت په وخت یې د چاپ په گاڼه وپسولي.

په پای کې دا چې زموږ د شهیداحرار (ملامحمد حسین مستسعد) دا چیغې (تازه چاپ شوي آثار) داسې مهال د هیواد والو ترلاسو رسیږي چې له نیکمرغه په کور راختلی دښمن مو د زوال په کړنگ ولاړ او تیښتې ته تیاري نیسي- نو زه هم خپل زړه تشوم او په دې حساسو شیبوکې خپله دا کریغه نه سپموم چې:

داحرار چیغې! د هیواد په غروکې وازانگه!

غلیم وتېښتې ته چمتو دی اوس روغ سر رانه وړي

واک مې په زور، توره په فرېب، دین په منتر رانه وړي

پای

## اربکیه لاس دې مات شه!

٢٦/نومبر/٢٠١٢

له نن څخه کابو څوارلس کاله وړاندې، د غـزني د ښلگر پـه تـاریخي مدرسـه نورالمدارس الفاروقیه کې مې د قرانکریم حفظ کاوه، ما ډېرې مدرسـې لیـدلې دي خو دې مدرسې یو ځانگړی کیف درلود، دا مدرسه چې د بنسټ ډبره یې نږدې اتیا کاله وړاندې د شوربازار د حضرت نورالمشائخ فضل عمر مجددي پـه لاس ایښـودل شوي ده، د افغانستان د مدارسو په تاریخ کې یو ښېل او امتیازي مقام لري.

اوس چې د هماغه مهال په نورالمدارس کې د شـپو تیرولـو خـاطرې راپـه زړه کوم، نو داسې فکر کوم لکه کوم خوندور خوب چې وینم، سهار به چې په مـلا آذان را ویښ شوې او د اوداسه په موخه به د حوض به خوا روان وې نو د مدرسې د انگـړ په ونو کې به مرغیو داسې شور جوړ کړی وو چې بل هیڅ غږ به نه اوریدل کیده، ما د مرغانو داسې خوږ او موزون غالمغال بل ځای کلـه هـم نـه دی اوریـدلی. کـه بـه مسجد ته ورغلې نو د سپین قاري صاحب (مرحوم قاري عبدالفتاح) پـه امامـت بـه جماعت ولاړ و، قاري عبدالفتاح د غزني د اسپندې هغه سپین روبی قـاري چـې لـه دې مدرسې څه په عمـر دوه لسـیزې مشر- وو او د مـرگ تـر ورځـې یـې د همـدې مدرسې دجومات (نورالمساجد) امامت وپاله.

قاري عبدالفتاح به طوال المفصل سورتونه د سهار په لمانځه کې ویل، پـه تېـه تیاره به یې جماعت وداروه او تر هغو به یې تلاوت کـاوه چـې رڼـا بـه شـوه او دواړه مساجد به له طالبانو ډک شول.





د ورځې به په مسجد کې د قرانکریم د حفظ د شاگردانو ملکـوتي انگـازې وې او په صنفونو کې به درسونه روان وو، ماسپښین به د مدرسـې پـه انگـړ او شـاوخوا کې تکرارونه، گردانونه او مطالعې روانې وې، مازدیگر به یـو بـل هیښـوونکی او لـه هیجانه ډک منظر و، یوه ډله طالبان به د مدرسې په شـاوخوا کـې پـه فوټبـال، والي بال یا بله سپورتي لوبه بوخت وو، څوک به په مسجد کې په خواجه خـتم وظیفـو او مراقبو بوخت وو او نورو ډېرو به په دښته کې هاخوا دېخوا قدم واهه، وطن بـه یـې ښایسته کړی وو.

د نورالمدارس د طالبانو په منځ کې ما ډېر داسې متقـي او کمالـداره طالبـان ولیدل چې د ولایت او روحاني نبوغ علامې په کـې روښـانه اولـه ورایـه ځلیـدلې، د هغوی له جملې یو د غزني د قره باغ د باران کلا عبدالرؤف و، چې په عمر کشر خـو د تصوف خورا اوږده مدارج یې طی کړي وو. عبدالرؤف په ښه غـږ، ښـه صـورت او ښه سیرت سربیره یو لایق طالب هم و چې په دې کال د شپږم صـنف پـه اول نمـره مشهور و. د عبدالرؤف کشر عمر، عالي صفات او استعداد چې ما لید نو د دیـن او وطن د راتلونکې ستره سرمایه مې باله، خو څه خبر چې داسې اوښتون به راځي چې زموږ ډېر درنې سرمایې به په بې توبیره توگه رژوي، عبدالرؤف له تیرو شپږو کلونو راهیسې د پل چرخي په زندان کـې بنـدي دی، او درې کالـه وړانـدې یـې د کـرزي رژیم د پولیسو د گازې برید له امله دواړه سترگې هم له لاسه ورکړې، خـو د خـدای تعالی دا نازولی او پرهیزگار بنده په داسې حال کې چې دواړه سترگې یې لـه لاسـه ورکـړې لا هـم د بشر- د مـدعیانو پـه محکمـه کـې د ښېـنې وړ نـه دی، نـو ځکـه ترنامعلومې نیټه زندان ته اچول شوی دی.

د نورالمدارس یو بل طالب چې پـه هغـه کـال د یوولسم صـنف دوهـم نمـره یادیده، مـلا اسـحاق د انـدړو اوسیدونکی و، رینگـړی ډېـره اوږدې څڼـې او غلـی

طبیعت مې یې اوس هم نه دی هېر، د ملا اسحاق په اړه مې بیا واورېدل چې د امریکایي یرغل په لومړیو کلونو کې یې د شهادت جام نوش جان کړ.

خو یو بل طالب چې زه یې فراق د دې کرښو لیکلو ته اړ ایستم ملاذبیح الله زهیر و، د ماښام له لمانځه وروسته به چې موږ د نورالمدارس په مسجد کې د قرانکریم د حفظ په نیت قران کریمونه راواخیستل، نو یو طالب چې اکثره وخت به یې توره پګړۍ تړلې وه تر ډېره به د لمانځه په ځای مراقبه ناست و، وروسته به یې له سره پټو ایسته کړ، د روښانه تندي خولې به د مسجد د برق رڼا ته وځلېدې، او په آهسته ګامونو به د دروازې په خوا روان شو، ملا ذبیح الله چې همدا یې د فراغت کال و په خپل صنف دولسم کې دوهم نمره و، نه یوازې یې علمي نبوغ او ذکاوت درلود بلکې د سیرت ښکلا او باطني کمال یې هم درلود، له وچو هډوکو جوړ دا خوش اخلاقه طالب به زموږ اطاق ډېر راته، زموږ د اطاق یو طالب (ملا امان الله د یوولسم صنف صنف اول نمره) د نوموړي خوږ ملګری و، د ده خوږ مجلس او د ټیټ غږ خبرې زما اوس هم په زړه دي، ملا ذبیح الله د غزني د اندړو ولسوالۍ د مرکز میري اوسیدونکی و، چې الله تعالی پرې د ظاهري او باطني ښګینو باران په شیبو شیبو ورولی و.

لوړ علمي استعداد، ژور باطني نبوغ، ښایسته اخلاق، عجز، درنښت او تر وروستۍ کچې تقوی د ملا ذبیح الله هغه صفات وو چې نوموړی یې په ډېرو زړونو منلی و.

په هغه ورځ چې ملا ذبیح الله زهیر د نورالمدارس مدرسې څخه د دولسم صنف د فراغت سند ترلاسه کاوه او لویه جلسه رابلل شوې وه، نوموړي له دې سره چې د فارغینو په کتار کې و، د فراغت چپنه یې اغوستې او پګړۍ یې ترسر وه، د جلسې د انانس دنده یې هم پرمخ وړه، د نوموړي شاعرانه او ادبي استعداد مې په





همدې ورځ ولید کله یې چې په مسلکي ویاندۍ او في البدیهه شاعرۍ سره د ستېج نظامت دندې ته په زړه پورې رنګیني وربښلې وه.

د خدای تعالی په دې رښتني او تقوا داربنده باندې مې وروستی ځل سترګې په هماغه ورځ خوږې شوې، ملا ذبیح الله زهیر له دیني فنونو د فراغت دستار ترسر کړ، وروسته مې له لرې لرې د نوموړي پوښتنه کوله، چې اوریدل مې ښه دی او په تعلیم او تعلم بوخت دی، وروستی ځل مې واورېدل چې ملا ذبیح الله زهیر له خپل کلي میري څخه تللی او د ګیرو ولسوالۍ د شیلې په کلي کې یې امامت نیولی او یوه کلیواله مدرسه یې هم جوړه کړې چې ډېر طالبان ورسره دیني کتابونه وایي.

څو ورځې وړاندې مې په نن ټکی اسیا ویب پاڼه کې ولوستل چې په ګیرو کې د شلګر اربکیانو د ملا ذبیح الله په نامه یو دیني عالم له خپلو څو طالبانو سره شهید کړی دی، مګر نن راته چا وویل چې شهید شوی تن هماغه مولوي ذبیح الله زهیر دی.

د دې خبرې په اوریدو مې باور وکړه زړه داسې درد وکړ، لکه دځمکې په سر مې چې تر ټولو سکه قریب چا وژلی وي، څو شیبې د دې سپېڅلي طالب په تیرو یادونو کې ډوب شوم او وروسته مې پوښتنه وکړه چې دا د خدای تعالی رښتینی دوست کومو ظالمانو شهید کړ او په څه ګناه؟؟

د اوریدو له قراره کیسه داسې وه چې د ۲۰۱۲ کال د نومبر په ۱۸ نیټه یو ډله د شلګر اربکیان د امریکایي ټانګونو سره یوځای په شپه کې د ګیرو ولسوالۍ د شیلې کلي ته ورغلي دي، سهار مولوي صاحب ذبیح الله له کوره مسجد ته راغلی چې کلیوالو ته د سهار د لمانځه امامت وکړي، کله چې مولوي ذبیح الله د لمانځه تکبیر ویلی په داسې حال کې چې د سهار لمونځ یې پای ته نه دی رسولی یو ډله

اربکیان په مسجد ورننوتي او په مولوي ذبیح الله یې د لمانځه په مابین کې برید کړی، نوموړی یې نیولی لاسونه یې ورتړلي او له څو طالبانو او کلیوالو سره یې یو ځای له ځانه سره بیولی دی، څنګه چې له امریکایانو پرته اربکیان په دې سیمه کې ګوزاره نه شي کولای نو د امریکایي قواوو له تګ سره اربکیان هم له سیمې تللي دي. له دې پیښې دوه ورځې وروسته د مولوي ذبیح الله زهیر شهید جسد د شلګر د اربکیانو په یوه کلي ابراهیم خیلو کې په داسې مهال موندل شوی، چې لاسونه او د بدن هډوکي یې د وهلو له امله مات شوي، په مخ او سترګو په مرمیو ویشتل شوی او په سخته بې دردۍ په شهادت رسول شوی دی (انا لله وانا الیه راجعون)

لوستونکو! تاسو به هغه حدیث قدسي اوریدلی وي چې الله تعالی فرمایي (من عادا لي ولیا فقد آذنته بالحرب) (څوک چې زما له ولي سره دښمني وکړي، نو زما لخوا ورته جنګ اعلان دی)

زه قسم درته کوم چې ملا ذبیح الله نه په نسب راشریک دی، نه په قوم راګډ دی نه په ولایت یا ولسوالۍ راګډ دی او نه یې په ټول عمر دیوې تسپې دنیوي ګټه رارسیدلې ده، خو خاص د هغه ذات په خاطر وایم چې شهید ملا ذبیح الله زهیر یې بندګي قبوله کړې وه او په زړه کې یې ورسره محبت ساته، چې د خدای تعالی دغه پاک بنده له سوچه (ولی الله) پرته بل څه نه و، د دې خبرې د ثبوت لپاره دا کافي ده چې د نوموړي د خیرې په لیدلو به الله تعالی دریادیده، او باطني پاکوالي یې په هر مجلس کوونکي داسې اثر ښنده چې په سترګو به لیدل کیده.

مګر نن په خاک پاک اولیاء (غزني) یا ټول افغانستان کې حالات دې ته ورسیدل چې د خدای تعالی داسې سپیڅلي بندګان تر ټولو د اشد مجازات او بوږنوونکي قتل لائق بلل کیږي.





زه دلته دا بحث نه راسپړم چې د مولوي ذبیح الله قرآني سینه چا په مرمیو غلبېل کړه او په دې وحشي جنایت کې مباشر لاس دچا و؟؟ خبره دا کوم چې چا حالات تر دې سرحده ورسول چې د انسان په بڼه یو وحشي ځناور راولاړیږي، او د ځمکې د سر په تر ټولو سپیڅلي زړه وارونه کوي.

زه چې د شلګر یا ټول افغانستان خلک پیژنم دوی د بل هر چا په نسبت د عالم، امام او هر مسلمان او متدین قدر او منزلت ښه پیژني، مګر نن چې په همدې خاوره کې د همدې سیمې یو تر ټولو پاک، مسلمان او متدین بچی په سپینه ورځ د الهي مناجات له منځه راپورته کیږي، بې له پوښتنې وهل کیږي، تعذیبیږي او له ایمانه ډکه سینه یې په مرمیو غلبېل کیږي او دومره څوک نشته چې پوښتنه یې وکړي، چې ولې، چا او په کوم جرم؟؟؟ آیا دا د تأمل وړ نه ده.

د شهید ملا ذبیح الله زهیر په اړه کره معلومات دادي چې د شلګر اربکیانو په شهادت ورساوه، اربکیان د امریکایي جنرال پیټراییس د پروګرام له مخې د کابل رژیم لخوا د پخوانیو جګړه مارانو په ملاتړ رامنځته شول. اربکیان زیاتره هغه لاابالي ټوپکمار دي چې په بحث او خبرو نه ارزي، نو ځکه زما خبرې هغو ته راجع دي، چې د اربکیانو، امریکایي یرغل او په ټوله کې دکرزي د اربکي رژیم اخلاقي ملاتړ کوي او په یوه قسم د اقسامو یې تنخوا خوري او ورته خدمت کوي.

دوی که پوهان دي یا ناپوهان، که لیکوالان دي که شاعران، که عالمان دي او که امیان، که د مدرسې فارغین دي که د پوهنتون، که ځان غرب پال بولي که اسلامپال او یا که بل هر څوک دي، باید په دې پوه شي چې د داسې ورځنیو جنایاتو له دنیاوي، تاریخي او اخروي مواخذې څخه کله هم په دې ځان نشي خلاصولی چې دوی په دې ورځنیو جنایاتو کې مباشر لاس نه لري.

دغه د مغزو خاوندان چې ځان ته خورا درنې ډبرې ږدي، هره ورځ د (تو مرا ملا بگو مه تو را حاجي) په دود يو بل سره لمانځي او په ټولنيز حيثيت کې يې له ځانه د پاچا خوسکيان جوړ کړي دي، خو بيغمه د اربکي رژيم تنخواګانې هضموي او د دې ظالمانه رژيم د ماشين دپرزو رول ادا کوي، کله به هم د مظلوم ذبيح الله غوندې د زرګونو افغانانو د وينو له پور څخه ځان خلاص نه کړای شي، دوی که هرڅو خپلې لمنې سپينې بولي مګر د دوی لمنې زموږ د هر شهيد په وينو سرې دي، دوی زموږ د هرې کونډې په څور، زموږ د هريتيم په کريکو او د هرشهيد په شهادت کې لاس لري.

په پای کې به د اربکي رژيم او صليبي يرغل ټولو سيده او ناسيده ملاتړو ته ووايم چې تاسو د ملا ذبيح الله زهير غوندې د الله تعالی د يوه ربښتيني دوست په شهادت رسولو سره په مستقيم يا نامستقيم ډول دومره ستر قتل، داسې لويه ګناه او دومره ظالمانه جنايت کړی، چې که الله تعالی ته رجوع ونه کړئ او توبه ونه باسئ نو د ټولو جهنم ته دغورځيدلو لپاره کافي دی، ځکه الله تعالی ته د درستې نړۍ پناه کيدل دومره اهميت نه لري لکه د يوه مظلوم د وينې ناحقه تويول.

که غواړئ چې له ابدي هلاکت او دغو ورځنيو مظالمو کې له شرکت څخه ځان خلاص کړئ، بايد چې له کفارو او اجيرانو سره يې پريکون وکړئ او که بيا هم په دې اتڼ کې پاته کيږئ، نو باخبر چې جنايات او قتلونه به اربکيان کوي مګر د صف د ملګرتيا له امله به تاسو هم په کې ککړ او مسؤل ياست.





## شهيد خالد حسن، هاغه د واورينو درو مسافر

د تېرې جمعې په ناوخته ماښام، د ۲۰۱۸ م کال د اکتوبر په ۲۷ مه، يوې امريکايي ډرون الوتکې د پکتيا په زرمت کې يو موټر په نښه کړ او هغه زلمي طالب يې په کې شهيد کړ چې له اوس نه اوولس کاله وړاندې د امريکايي (اناکونډا) عملياتو په مهال په ټپي حالت کې د بې شميره امريکايي ځارګرو او بمبارګرو الوتکو له هجوم څخه ژوندی وتلی و. دلته درسره د شهيد خالد حسن هغه کيسه شريکوم چې له ده مې اوريدلې او بيا يادداشت کړې وه، ګوندې زموږ د پرتمين جهاد د افسانه وزمه حوادثو د يوې وړې نمونې په حيث د تاريخ برخه شي.

امريکايانو د ۲۰۰۱ م کال د مارچ په مياشت کې چې د پکتيا غرونه تر سختو واورو لاندې وو، د دې ولايت په شاهيکوټ دره کې په هغو طالبانو عمليات پيل کړل چې دلته يې سنګر نيولی و. ملا خالد حسن چې هغه وخت تنکی ځوان و، د دې سختې غزا له ګډونوالو څخه و. هغه خپله کيسه داسې کوي:

د جګړې له ورځو يوه ورځ غرمه مهال ملا سيف الرحمن منصور زموږ سنګر (بلال سر) ته راوخوت، د قاري افتخار په نوم يو سواتی مجاهد هم ورسره و. سره له دې چې په موږ فشار ډېر او د ډېر جنګ او بمبار له امله د ټولو ملګرو سرونه خوږيدل خو د مشر په ليدو مو حوصله لوړه شوه. د مشر روحيه ډېره پرځای وه، د جنګ له وضعيت نه راضي و او داسې معلوميده چې په امريکايي تلفاتو يې زړه يخ شوی وي. غږ يې وکړ: څوک به چای تيار کړي.

زه او بهايي جان (يو مجاهد) لاړو، اوبه مو راوړې، کله چې د ګاز ډبې لپاره اطاق ته ورغلو، نو اطاق بمبار نيم نړولی و. خو ګاز ډبه مو راوايسته. بيرته راغلو

سنگر ته، دلته مو د بمبار او الوتکو تر غرهار لاندې د زيکويک په مورچه کې له مشر (ملا سيف الرحمن منصور) سره چای نوش کړ. مشر تر ماښامه همدلته له موږ سره و، ماخستن ناوخته يې وويل چې ډېر بې خوبه يم، دا ډېر وخت مې خوب نه دی کړی، لږ آرام ځای نه لرئ؟ بيا مو لاندې يوه گاره کې د خوب ځای ورته آماده کړ. شپه يې زموږ تر سنگر لږ لاندې گاره کې شوه. خو د شپې په دې ځای بمبار خورا زور واخيست. گارې ته نږدې بمونه ولوېدل، زما ملگری محمد ايوب شهيد شو او زه ټپي شوم. د مرستې لپاره مې ځو اوازونه وکړل خو چا ځواب رانکړ. اخر مې له پاسه په ډېر تکليف ځان لاندې وښوياوه. د گارې تر خولې ورسيدم. قومندان منصور صاحب چې د نږدې بمبار له امله راويښ شوی و په تياره کې يې غږ راباندې وکړ، کوم يو يې؟ ځواب مې ورکړ: زه يم، محمد ايوب شهيد شو او زه زخمي شوم. بيا يې له نورو ملگرو سره رابطه وکړه او امر يې وکړ چې زخميان د ايجنسۍ په نوم شرق اړخ ته يوه غرني مرکز ته ورسوي، ځکه هلته څه بهرني مجاهدين وو چې ورسره ډاکټران هم ول.

دغه وخت زما يو بل ملگری جيلاني هم ټپي شوی و. موږ يې د ايجنسۍ په نوم مرکز ته ورسولو، خو هلته هم د علاج وسائل او درمل نه وو. دغه وخت هغې خواته هم بمبار او جنگ زيات شوی و. له قومندان منصور صاحب سره مو رابطه وکړه، هغه وويل: که روغ ياست پاته شئ اومقاومت وکړئ او که زخميان ياست، نو هرې خواته چې ځان ايستلی شئ ووځئ.

همدلته مو بله شپه هم په داسې حال تېره کړه، چې سخت يخ و، د واورې له اورښت سره بمونه هم اوريدل او د خوراک لپاره هم څه نه وو. په سبا د دوو نورو ملگرو بهايي جان او قاري حبيب په همکارۍ موږ دوه تنه زخميان (زه او جيلاني) جنوب شرق اړخ ته د ځنگلي غرونو پر خوا روان شوو. په داسې حال چې هيڅ لاره او لوری نه رامعلومېده د پکتيا ولايت د ځدراڼو دغرونو په سلسلو کې د نامعلوم





منزل په خوا رهي شوو. له ما او جيلاني سره وسلې وې او دوه نور ملگري (بهايي جان او قاري حبيب الله) بې وسلې وو.

زما چې زخم ژور و د تگ په وخت کمزوري راباندې راتله، يو شواروز مو څه شی نه و خوړلي، يوازينی خوراک مو واوره وه، خو د واورې خوراک مو هم وروسته ستوني را خراب کړل، د بهايي جان بيا پښې وسوځيدې، په غرونو او گړنگونو روان وو او سخته واوره هم اوريدله، دا درک هم نه معلوميده چې موږ کومې خواته ځو، د مزل په جريان کې داسې وخت راغی چې زه او بهايي جان له نور تگ څخه ولوېدو.، جيلاني او قاري حبيب تکړه وو.

هغوی ته مو وويل چې موږ نور مزل نه شو کولای، نو تاسې ولې له ځان سره هلاکوو، تاسو چې تکړه ياست در روان شئ، شايد يوه کلي ته ځان وباسئ، که موږ ژوندي پاته شوو او سبک را په کې و، پسې دربه شو او که درنغلو، نو حد اقل تاسو ته خو به دومره درک معلوم وي چې موږ په دې ځای کې پاته شوي يو.

په هر حال جيلاني او قاري صاحب ته مو اجازه ورکړه او دوی لاړل، زه او بهايي جان پاته شوو، چې ډېر کرار کرار او په متېه خوارۍ مو مزل واهه، يو وخت چې ماښام رابريدونکی و، په غره کې مو د ځنغوزيو د ټولوونکو زړه څپره يا ځاله پيدا کړه، له واورې مو همدې ځالې ته پناه ورووړه، سخت يخ و، لوږې او د غرونو مزل مو بدنونه بې سيکه کړي وو.

د يخ د دفع کولو لپاره مو د اور بلولو کوښښ وکړ، د جهادي تعليم په وخت به موږ ته شهيد فدا محمد جواد صاحب هميشه ويل چې ځيني ضروري شيان لکه د اورلگيت کوتی، چاقو او داسې ځيني نور شيان هميشه درسره گرځوئ چې يو وخت په کار درځي. ما چې خپله چانټه ولټوله، د اورلگيت کوتی مې پيدا کړ. د ځالې په منځ او شاوخوا کې ځو غټ غټ لرگي پراته وو. اول مې فکر نه کاوه چې

په آسانۍ به اور واخلي، خو چې خلې مې ورته وواهه، لرګي غوړ و او سمدستي يې اور واخيست، په اور مو نور لرګي هم باندې کړل او نږدې ورته کيناستو، په يوه شيبه کې تاوده شوو او حتی ټوله ځاله داسې توده شوه چې د بام واورې يې ويلې شوې او څڅوبی شروع شو. تر سهاره له اور سره ناست وو. بدن مو تود شو او داسې تکړه شوو لکه تازه وينه چې را پکې چليدلې وي.

تر سهاره همدلته و او سهار چې تر پخوا تکړه شوي وو يو ځل بيا مو مزل پيل کړ، په غرونو کرار کرار واوښتو، دهيڅ انسان پل او نښه نه معلوميده، د لارې درک هم نه و، د ځمکې مخ ټول سپينو واورو نيولی و، موږ هڅه کوله د تلليو ملګرو پل پيدا کړو، خو هيڅ درک يې نه و، يو وخت چې له يوه اړخي واوښتو له لرې مو د مخامخ غره په ډډه کې د منځ په شان لاره تر سترګو شوه، په همدې ګمان ور روان شو خو يقين مو نه و، کله چې ورنږدې شوو او مو ليدل چې د انسانانو پلونو تير شوي، داسې خوشاله شوو، لکه لويه ورکه مو چې موندلي وي، همدا پلونه مو پسې واخيستل، چې ناڅاپه له مخامخ لورې قاري حبيب الله راواوښت، چې کله يې په موږ سترګې ولګيدې نو له ډېرې خوشالۍ يې وژړل او سلګو واخيست. دوی غالبا زموږ د ژوند ډېره تمه نه درلوده. قاري صاحب وويل راځئ، دلته مو يو د امن ځای پيدا کړی دی.

دوی چې له موږ وړاندې دې سيمې ته را رسيدلي وو، نو دلته د سرانې په سيمه کې (چې د مولوي جلال الدين حقاني صاحب اصلي سيمه ده) له يوه مخلص پخواني مجاهد سره مخامخ شوي وو. هغه ورته ويلي و چې که وړاندې لاړ شئ کيدای شي د پاچا خان ځدران له کسانو سره مخ شئ او يا به مو هم هغه امريکايي جاسوسان کشف کړي چې امريکايانو په دې سيمه کې موظف کړي تر څو له شاهيکوټه را اوښتونکي مجاهدين ونيسي او امريکايانو ته يې په لاس ورکړي. نو ښه





دا ده چې له ماسره کور ته لاړ شئ. دوی دا خبره ورسره منلې وه او موږ هم د قاري حبيب صاحب په رهنمايي هماغه کور ته ورغلو.

د کور څښتن نهايت مخلص او مسلمان سړی و، موږ ته يې په کور کې دننه د اوسيدو ځای برابر کړ، په همدې غرمه يې چرګ حلال کړ او ښه ښوروا يې برابره کړه. خو د ډوډۍ په وخت زما او بل ملګري ستوني د ډېرو واورو خوړلو له امله داسې بند و چې خوراک مو نه شوای کولای. کوربنو لکه چې تجربه درلوده، ويل يې اول ځان ښه تود او لږ خوب وکړئ، د ماسپښين له لمانځه وروسته ويده شوو او تر مازديګره مو خوندور خوب وکړ، کوربنو مازديګر بيا دسترخوان ويړ کړ او هماغه غرمنۍ ډوډۍ يې راوړه، خو دا وار مو ډېره ښه وخوړله او ايله پر خپل حال شوو.

کوربانه ډېر اخلاصمند او خواخوږي خلک معلوميدل، موږ ته يې ويل چې بهر مه وځئ خطر دی، ځکه خلک اکثره بدل شوي، د امريکا جاسوسان هم ډېر دي او ځيني خلک د طالبانو سره ضد شوي دي، دوی ويل که خدای مکړه چيغه درپسې راووځي بيا مو موږ هم نه شو خلاصولی. په دې کور کې مو څو شپې وکړې، د کور خلکو به له بهر دا ويروونکي خبرونه هم را رسول چې نن په پلاني کنډو مجاهدين راواوښتل، خلکو وسلې ترې يووړې، يا د امريکا د ملګرو عسکرو لخوا ونيول شول. موږ او دوی به په دې هم مجلس کاوه چې له دې ځايه څرنګه وتلی شو. د کور خلکو ويل چې له دې ځايه مسلح وتل امکان نه لري، ځکه خلک مو دستي پيژني او ګوډاګي عسکر خبريږي. نو د وتلو يوه لاره شته، چې خپلې وسلې دلته پريږدئ او بيا به مو موږ په يوه طريقه وباسو. خو زموږ يو ملګری ډېر شکاکي وو، هغه به له موږ سره دا خبره نه منله چې وسلې د کور خلکو ته وسپارو، تر دې وخته موږ خپلې وسلې او چانتې له ځان سره ساتلې وې، هغه ويل چې که وسلې ورکړو هسې نه چې حکومت ته مو په لاس ورکړي. هغه هم ځکه ملامت نه و، چې د کابل له سقوط وروسته داسې ډېرې پيښې وشوې، حتی په دې طريقه ډېر خارجي مجاهدين په

امریکایانو خرڅ شوي وو، دا کیسې چې هغه وخت موږ تازه اوریدلې وې نو په هر چا شک کیده. خو موږ به چې د دې خلکو اخلاص لید نو به مو خپل ملګري ته ویل چې دا ډېر مخلص خلک دي که داسې څه وای بیا به یې موږ ته پناه نه راکوله. خو په همدې خبرو کې څو ورځې ووتې.

یوه ورځ چې په همدې سره غږیدو د کور والا وویل چې یو کارکیږي چې خپلې وسلې دلته پریږدئ بیا به مو په تیاره کې موږ د خوست – ګردیز تر لارې پورې ورسوو او له هغه ځایه به په موټر کې ګردیز ته لاړ شئ. دا وخت زموږ د یوه ملګري له خولې دا خبره ورووته چې موږ خو والله له تاسو هم لږ لږ ډاریږو چې که وسلې درکړو هسې نه زیان راته ورسوئ. په دې خبره دوی ډېر خپه شول او بیا یې ډېر شدید قسمونه او تعهد وکړ چې داسې به نه کیږي. د کوروال وویل چې زه درسره د ګردیز تر لارې د میراجان تر دوکانو په شپه کې ځم، هلته مو موټر ته هم پورته کوم، خو په دې شرط چې وسلې دلته پریږدئ، ځکه له وسلو سره هر ځای مشکل درته جوړیږي.

ټینګ تعهد مو سره وکړ او د وسلو د امانت ایښودلو خطونه مو سره ولیکل، دوی وویل ستاسو وسلې به له موږ سره امانت وي، چې هر وخت راغلئ در به یې کړو. خو د وسلو د ورکړې په وخت کې ما درې حلقې لاسي بمونه د کوټ په جیبونو کې راسره کیښودل او حتی خپل ملګري مې هم خبر نه کړل. بله شپه د کور وال تر مخ او موږ ورپسې له کوره ووتلو، په شپه شپه کې یې د میراجان دوکانو ساحه کې د خوست - ګردیز سرک ته وایستو، چې میراجان دوکانو ته ورسیدو د کور وال زموږ ملګري جیلاني ته مخ راواړاوه، د پنځه سوو کلدارو نوټ یې په لاس کې ورته ونیو او بیا یې په قسم وویل چې په کور کې مو یوازې همدا نغدې روپې وې او نورې نه وې، دا درسره واخلئ کرایه به مو شي. دا صحنه او د هغه ناپیژندویه ناداره افغان اخلاص او مسلماني هغه څه وه چې هیڅکله له یاده نه





وځي. د میرا جان دوکانو سیمه کې سهار وختي یوه هوټل ته پورته شوو او تر څو چې مو چای خوړل کوربه ملګري را غږ کړل چې راځئ موټر تیار دی.

چې را ووتو دوه موټر ولاړل ول، قاري حبیب او بهایي جان ډاټسن ته وختل، زه او جیلاني کاسټر موټر ته پورته شوو چې راسره کوربه ملګری هم و او ویل یې تر ګردیزه درسره ځم، کله چې وختلو، ګورم چې کاسټر کې زیاتره مسلح کسان سپاره دي او په لوړ اواز یې د سندرو فیته وراچولې ده. په زړه کې راتیره شوه چې اوس کار خراب شو، د کور وال ته مې وویل چې دلته راشه، هغه مې څنګ ته راغی او اندیښنه مې ورته وویله، هغه ویل چې دا د پاچا خان ځدراڼ مسلح کسان دي، ګردیز ته ځي، هلته د امریکایانو سره په ګډه د طالبانو په ضد عملیات کوي. په موټر کې ځیني د لارې خلک هم ورسره سپاره دي. هیڅ اندیښنه مه کوه، زموږ تاسو لپاره تر دې ښه موټر نشته، تر ګردیزه به هیڅوک هم پوښتنه درنه ونکړي. زه هم چې اول ویریدلی وم دې خبرې لږ مطمئن کړم. خو بیخي عجیبه راته معلومیده، د پاچا خان زوی عبدالولي د شاهیکوټ په جنګ کې د یوه محاذ مسؤل و او د امریکایانو ملګری و، اوس بیا موږ مجاهدین د ده له کسانو سره په موټر کې سپاره وو خو نه یې پیژندلو. هغوی ګردیز ته روان و تر څو له امریکایانو سره په ګډه د طالبانو په ضد عملیات وکړي. خو خبر نه و چې طالبان ورسره په موټر کې سپاره دي، د پاچا خان کسانو موټر ته د سندرو کیسټ ور اچولې وه چې هغه وخت تازه امارت سقوط کړی و او سندرې ډېرې بدې لګیدلې، ځکه زړونه ډېر غمجن و او کلونه کلونه دغه آواز چا نه و اوریدلی، هغه وخت چې د نوي ځواني احساسات وو یو ځل خو دومره غوسه راغله چې په زړه کې راتیره شوه، راځه په همدې موټر کې په په جیب کې راسره ګرنیټونه وغورځاوه چې د پاچا خان کسان ټول له منځه لاړ شي. خو بیا مې چې کتل ځیني عام د لارې خلک هم په موټر کې سپاره وو.

په همدې ډول له ستړو کنډو پورته شوو، د بنوزو سيمې ته ورسيدو، هلته موټر ودريدل او موږ ښکته شو، چې ګورم پاچاخان ولاړ دی او خپلو ټوپکيانو ته منتظر و، پاچا خان وويل چې د لارې خلک بيل شئ، موږ هم له څو نورو کسانو سره بيل شوو او لږ ساعت وروسته مو ډاټسن موټر پيدا کړ تر څو مو ګرديز ښار ته ورسوي، چې د ګرديز ښار ته رانږدې شوو، ګورو چې د خوست لين له پله سره د امريکايانو پيره ولاړه ه، له خلګو پوښتنې او تلاشي کوي.

دلته مې نو ټينګ قصد وکړ او د ګرنيټ ګوزار ته مې ځان آماده کړ چې که يې وويل چې را ښکته شه يا تلاشي را کړه نو وار به وربانـدې مخکې کوم. خو امريکايانو او ورسره ترجمانانو زموږ په منځ کې له جيلاني پوښتنه وکړه، چې له کوم ځايه راغلې او څه کار کوې؟؟ هغه ورته وويل له ګردې څېرې راغلم، هلته مې اوزې اخيستې. دوی هم وويل چې ځئ. په دې ډول د امريکايانو له تلاشي هم تېر شوو. ګرديز ښار ته ورسيدو او له هغه ځايه مو د زرمت موټر پيدا کړ او خپلې سيمې ته راورسيدو.

(شهيد خالد حسن له هغه وخته پوره اوولس کاله نور هم د امريکايي اشغال په وړاندې جهاد وکړ، دوه ځله بندي او يو ځل ټپي شو. تر دې چې آخر يې هم هغسې انجام (شهادت) په نصيب شو چې دغه باعزمه زلمی ورسره ښايېده.

بنا کردند خوش رسمی بخاک و خون غلطيدن

خدا رحمت کند اين عاشـــقان پاک طينت را

(تقبله الله فی اعلی عليين)